مکمل او مدلل

# دلمانځه مسئلي

دقرآن او احادیثو په رڼا کې




مؤلف

مولنا محمد رفعت قاسمي

د دیوبند د دارالعلوم اوستاذ


پښتو ترجمه

مولوی میرزا محمد شکیب


مکتبه رحمانیه

ارګ بازار کندهار افغانستان

180

1

مکمل او مدلل

# دلمانځه مسئلې

دقرآن او احادیثو په رڼاکې

مؤلف

مولنا محمد رفعت قاسمی
ددیوبند د دارالعلوم اوستاذ

پښتو ترجمه

مولوی میرزا محمد شکیب

خپروونکی

رشیدیه کتابخانه سرکی روډ کوټه

## دکتاب پېژندنه :-

| | |
|---|---|
| دکتاب نوم | **دلمانځه مسئلي** |
| مؤلف | مولانامحمدرفعت قاسمی |
| پښتوترجمه | مولوی میرزامحمدشکیب |
| دکمپوزاوترجمې چاري | دنورالقرآن ادارې دکمپوزځانګه |
| خپرونکی | رشیدیه کتابخانه سرکی روډ کوټه |
| تصحیح اوډیزاین | ابوخالدمولوی عبدالاحد «مجروح» |
| دوهم چاپ | ۲۰۰۰ټوکه |
| چاپ ځای | لاهور |
| دچاپ کال | ۲۰۰۸ دجولايي مياشت |
| خپرونکی | محمدساجد |

اللهم اختم لنا بالخير والسعادة والبشارة والايمان

ددعامحتاج «ابوخالد»



## د مؤلف خبري

الحمدلله رب العلمين والصلوة والسلام على سيدالمرسلين وعلى آله و اصحابه اجمعين

**اما بعد**: د الله تعالی عظیم احسان او مهربانی ده چې د مسائلو د انتخاب دا سلسله په عوامو او خواصو کې نه یوازی دا چې مقبوله ګرزیدلي بلکې د دوی ګټورو مشورو موږ ته هم ښه حوصله او توانمندي رابخښلي ده. فجزاهم الله خيرالجزاء .

د لوی خدای ﷻ په مرسته د دې لړۍ دغه دیارلسم کتاب دی چې ستاسو محترمو لوستونکو په وړاندی یې ږدو . په دې کتاب کې د لمانځه په اړه له تکبیر تحریمه څخه نیولي تر دعاء پوری ټول ضروري مسائل راغونډ کړل شوي دي چې مجموعي شمېر یې تقریبا ۱۵ سوه مسائلو ته رسیږی .

دا ټول د الله تعالی فضل وکرم او د محترمو استاذانو پاملرنه او د هغوی د دعاء ګانو برکت دی خصوصا د فقیه الامت حضرت مولانامفتی محمودحسن صاحب دامت برکاتهم د زیات شفقت اولارښوونو نتیجه ده . الله تعالی دې د دوی ټولو د عاطفت سایه تر ډېره زمونږ پر سرونو ولري . آمین څرنګه چې هیڅ بشر له هیری او خطا څخه معصوم نه دی ،خو ما تر ډېره حده پوره زیار ایستلی چې غلطۍ ونلري ؛ ولی بیا هم کیدای شی څه غلطي تاسی ته په مخه درشی ، نو که له هغی څخه مو خبر کړئ عندالله به ماجور یاست . ان شاء الله

محمدرفعت قاسمی

خادم التدریس دارالعلوم دیوبند نیتهه ۲۷/ رمضان المبارک / ۱۴۱۶ھ

مطابق ۱۷ / فروري / ۱۹۹۶ میلادي

## د کتاب په اړه د مترجم څو خبرې

حامداً ومصلیاً -------- وبعد :

قَالَ رسولَ الله ﷺ : ان أول مایحاسب به العبد یوم القیامة من عمله صَلوته فان صلحت فقد أفلح وأنجح و ان فسدت فقد خاب وخسر »

بی له شکه چې د قیامت په ورځ به له بنده سره ترهرڅه لومړی د لمانځه حساب کتاب کیږي ، که چیرې هغه په دې خپل عمل کې کامیاب وی نو د نجات یوه نیکمرغه لاره یې وموندله او که داسی نه وی نو یوه لویه بدمرغي یې په برخه شوه .

حقیقت دا دی چې لمونځ ام الاعمال بلل شوی ، د دین بنیادی ستن بلل شوی ، د الله تعالی د ټولو عباداتو یوه بهترینه مجموعه ګڼله شوي . او د مؤمن معراج بلل شوی دی . لمونځ د الله تعالی د محبت او رحمت یوه عظیمه وسیله ده . د ګناهونو کفاره ده . لمونځ انسان د اخروی تجلیاتو قابل ګرځوی . لکه چې رسول کریم ﷺ فرمایی : نژدې ده ، تاسو به خپل خالق ووینئ ، پس که پر تاسو باندی (دنیاوی) مشاغل غلبه ونه مومی نو له لمرختو او لمر لویدو مخکې ټول لمونځونه په ښه توګه اداء کړئ »

که څوك د دې ستر عبادة په حقیقت پوهه شی او هغه له خپلو ټولو حقوقو سره یه ښه توګه اداء کړي نو هغه بنده به د الله تعالی په ذمه کې وی ، په دنیا کې به یې رزق ور زیاتوی ، د قبر له عذابه به نجات مومی ، جنت ته به یې الله تعالی داخلوی او بالاخره د دنیا او آخرت نیکمرغي به یې په برخه وی . خو د لمانځه په سبب به د دې ټولو انعاماتو مستحق هغه څوك وی چې د لمانځه په ټول حقیقت او مسائلو باندی پوهه وی او هغه له خپلو ټولو حقوقو سره اداء کوی .



کله خو داسی هم وی چې ځینی خلکو ته دا خپل لمونځ د غاړې طوق وی ، هغه له دې کبله چې دوی لمونځ په ښه توګه نه وی اداء کړی او نه یې د هغه په ضروري مسائلو ځان پوهه کړی وی . او په دې توګه یې د ټول عمر کړی عبادة عبث شی .

په هر حال د لمانځه په اړه فضائل او حکمتونه په کتابونو کې ډیر زیات بیان شوی دی چې دلته د ټولو ذکر کول ناشونی کار دی . خو موږ به صرف د دې کتاب په اړه څو لنډې خبرې وکړو :

دغه ستاسو په لاس کې کتاب «د لمانځه مسائل» دا د حضرت مولانا محمدرفعت قاسمی صاحب تألیف دی . نوموړی چې د هندوستان د «دارالعلوم دیوبند» مدرس دی . د خپل عصر یو جید نامتو محدث او فقیه عالم دی ؛ ده پر هره دیني موضوع باندی مستقل کتاب لیکلی چې په دې یوه (فقهي) سلسله کې یې د تألیفاتو شمیر اوس ۱۸ ته رسیږی .

پر دې کتاب باندی چونکه ډیرو زیاتو جیدوعلماء کرامو جدا جدا تقریظونه کړیدی لکه : حضرت مولانا مفتی محمودحسن صاحب مفتی اعظم دارالعلوم دیوبند ، مولانا مفتی نظام الدین صاحب بانی ومفتی دارالعلوم دیوبند ، حضرت مولانا مفتی محمد ظفیرالدین صاحب مرتب فتاوی دارالعلوم دیوبند ، مفتی محمد سعید احمد صاحب محدث دارالعلوم دیوبند او داسی نور... چې د داسی جیدو علماؤ له نظره هم دا کتاب د ډیر اهمیت درلودونکی دی . خو موږ د هغوی تقریظونه ځکه ټول رانقل نکړل چې د کتاب حجم زیاتوی . او دلته یوازی د هغوی پر یادونه اکتفاء کوو .

نو د دې لپاره چې دغه ګټور کتابونه له اردو ژبې څخه پښتو ته وژباړل شي او زموږ مسلمانان ورونه ورڅخه استفاده وکړي ؛ د « نورالقرآن اداری » د تأليف او ترجمې څانګې دې کار ته ملا تړلې ترڅو لومړی دغه اتلس فقهي کتابونه او بيا وروسته نور ګڼ مختلف کتابونه په پښتو ژبه ترجمه ، کمپوز او چاپ ته تيار کړي . چې د چاپ لګښت او د هغوی خپرول به د « رشيديې کتابخانی » لخوا ترسره کيږي .

نو « **دلمانځه مسائل** » د دې سلسلې لومړنی کتاب دی چې دا دی اوس له چاپه راوتلی دی او وروسته يې نور کتابونه لکه «د زکوة مسائل» ، « د روژې مسائل » ،«د امامت مسائل» او داسې نور ... » چاپ ته چمتو دی .

له لوی خدای ﷻ څخه مو ارزو دا ده چې زموږ مسلمانان ورونه له دې کتاب څخه اعظمي استفاده وکړي ترڅو د لمانځه او دغه رنګه د دين په نورو فريضه او وجيبه مسائلو څان پوهـ کړي او په هغوی باندې عمل وکړي . آمين .

په اخير کې مو له درنو لوستونکو څخه هيله ده چې د مؤلف ، ژباړونکي ، خپروونکي او نورو ټولو هغو ورونو په حق کې چې په دې کار کې يې خواري کښلې ؛ د اجر او مغفرت دعاګانې وکړي .

والسلام

ژباړونکی

تاريخ //..../۱۳۸۵/ حمل /هش

۱۴۲۷/ربيع الأول/هق

۲۰۰۶/مارچ/ميلادي





# دنورالقرآن اداري يادښت

## دلمانځه مسئلې دوهم چاپ

لوی خدای ﷻ لره دی حمدوي چې دنورالقرآن اداره په خپل هوډ کې دلوی خدای ﷻ په پوره مرسته کاميابه اوسوبمنه شوه ،مذادمسائلو کتابونه يادوو چې دلمانځه مسائل ددې لړۍ اولنی کتاب وو چې يو چاپ ئي ختم اواوس ددوهم ځل لپاره چاپيږي ،اوداهم په داسې وخت کې چې ددې کتاب په سريزه کي موږ يادونه کړي وه چې دنورالقرآن اداره هوډ لري چې درفعت قاسمی صاحب اتلس کتابونه ټول په پښتو ترجمه کړي نودلوی خدای ﷻ په مرسته داکاروشوچې دحج اوعمرې مسائل ئي اخيرنی کتاب دی چې ترچاپ لاندې دی .

محترمو لوستونکوڅرنګه چې دالړۍ پای ته ورسيده لله الحمد،ددې کتابونودومره محبوبيت پيداکړچې موږ ئي اټکل نشوکولای نوموږ هم اراده لروچې ددې کتابونويه تصحيح اوچاپ کې نورزيات زيارو باسو چې تردې مخکې د(قرباني مسئلې ) هم دوهم ځل تصحيح اوچاپ شوي اودادي اوس دلمانځه مسئلې ددوهم ځل لپاره تصحيح اوچاپيږي له تاسو محترمومومخکي هم خواست کړی وو: چې که تاسوته غلطي په نظردرځي موږ ترې خبر کړي څکه داکتابونه زموږ په کمپيوټري کتابتون کي تروخته وخته انشاء الله پراته وي چې ددوهم چاپ له مخې ئی نوي اصلاح کولای شو. په همدې پسی به انشاء الله ټول کتابونه ورو ،ورو ددوهم چاپ لپاره نوي اصلاح اوتصحيح کيږي داکارزموږ په توان نه بلکه دلوی خدای ﷻ په مرسته اوستاسو ددعاګانو په برکت .

دنورالقرآن اداري خادم

ابوخالد مولوی عبدالاحد «مجروح»

دهجرت مينه پښتون آباد کوټه

۲۰۰۸ميلادی کال / دجولائي مياشت

# د لمانځه پیژندنه

أَقِيمُوا الصَّلَوٰةَ وَلَا تَكُونُوا مِنَ الْمُشْرِكِينَ

(لمونځ قائم کړئ او له مشرکینو څخه مه کېږئ)

لمونځ یو داسې عبادت دی چې د ټولو انبیاؤ په ... یعنې ټولو کې موجود وو، له حضرت آدم علیه السلام څخه نیولې تردې وخته پورې د هر نبي پر امت باندې لمونځ فرض دی البته په کیفیت او د اداء کولو په طریقه کې یې تغیر شته.

د نبي کریم ﷺ پر امت باندې په لومړي سر کې دوه وخته لمونځ فرض و، یو د لمر ختلو نه مخکې. او بل یې د لویدلو نه مخکې ادا کیده.

خو د هجرت څخه یو نیم کال وړاندې د نبي کریم ﷺ معراج ته د تللو پر مهال بیا لمونځ پنځه وخته فرض کړی شو.

سهار، ماپښین، مازیګر، ماښام او ماخستن. چې دا پنځه وخته لمونځونه یوازې په همدې امت پورې خاص دي. ولې پر نورو امتونو، پر چا باندې صرف د سهار لمونځ فرض و، پر چا د ماپښین او پر چا د مازیګر. (علم الفقه ص۱ ج۲)

لمونځ د اسلام یو ستر رکن دی. حتی چې د اسلام دارمدار پر لمانځه باندې دی پر هر بالغ، عاقل مسلمان باندې په هره ورځ کې ۵ ځله لمونځ فرض عین دی. که امیر وي، که فقیر وي، روغ وي یا ناروغ، مسافر وي که مقیم. تردې چې کله د دښمن سره جګړه روانه وي، هغه مهال هم د لمانځه پرېښودل جائز نه دي. ښځې ته د ولادت پر وخت چې یو سخت مصیبت دی؛ هم لمونځ پرېښودل روا نه دي. او



کوم څوک چې د لمانځه له فرضیت نه منکر شي، نو یقینا هغه کافر دی، د لمانځه د تاکید او د هغه د فضائلو په اړه په قرآنکریم او احادیثو کې ډېر زیات آثار موجود دي. چې د لمانځه په پرتله د بل عبادت دومره تاکید نه دی شوی.

د نبي کریم ﷺ عظیم صحابي، امیر المؤمنین حضرت عمر فاروق رضی الله تعالی عنه د لمانځه پرېښودونکي ته کافر ویلی. د نورو صحابه کرامو او امام احمد رحمه الله هم همدا مسلک دی. دا راز امام شافعي رحمه الله د هغه د قتل (وژلو) فتوی ورکړې، د امام اعظم أبو حنیفه رحمه الله په نزد که څه هم لمونځ پرېښودونکی کافر نه دی، مګر د سخت تعزیر قول ورځینې رانقل شویدي.

کوم احادیث چې د لمانځه تاکید او فضیلت په کې بیان شوی؛ که سره یوځای کړل شي؛ نو هرو مرو دا نتیجه ورڅخه راوځي چې لمونځ پرېښودونکی د خدای او رسول ستر دښمن ډېر ګناهکار او نافرمانه بنده دی. (علم الفقه ص۳ ج۲، درمختار ص۹ ج۱ کتاب الصلوة)

**د صلوة معنی**: صلوة په لغت کې دعا ته وایي او په شریعت کې د هغه ځانګړي عبادت نوم دی چې له یو شمېر ارکانو او شرایطو سره د خو مخصوصو اقوالو او افعالو په صورت کې ادا کیږي. چې په تکبیر سره پیل او په سلام سره پای ته رسیږي. چې په پښتو کې ورته لمونځ ویل کیږي. (مظاهر حق ص۱۰۵ ج۱)

## د پنځو لمونځونو ثبوت:

الله ﷻ فرمایي: «إِنَّ الصَّلَوٰةَ كَانَتْ عَلَى الْمُؤْمِنِينَ كِتَابًا مَّوْقُوتًا»

(بیشکه، لمونځ پر مؤمنانو فرض کړل شوی دی، چې وختونه یې ټاکل شویدی)

په دې آیة کې کتابا په معنی د مکتوب یعنی مفروض دی. یعنی هرهغه امر چې فرض کړل شوی وی. او د موقوت د لفظ معنی دا ده چې ګویا په دی کې د هریوه لپاره د وخت حد مقرر شوی دی. په دی آیة کریمه کې ویل شوی چې لمونځ پرمسلمانانو فرض کړل شوی او په وختونو یې رسول کریم ﷺ خبر او عالم دی. او الله ﷻ هغه ته حکم کړی چې په دې اړه چې د الله تعالی له لوری هرڅه ورباندی نازل شی ، هغه دی خلکو ته ورسوی.

کیدای شی له ځینی خلکو سره دا پوښتنه وی چې په قرآنکریم کې خو یوازی د لمانځه فرضیت ثابت دی. خو د رکعتونو او وختونو د شمېراو په خاصه طریقه سره یې د ادا کولو په باره کې قرآنکریم هیڅ نه دی ویلی؟

د دې لپاره جواب دا دی چې نبی کریم ﷺ ته حکم دا دی چې څه شی د الله له لوری رانازلیږی ؛ هغه خلکو ته ووایی او ورسره خلکو ته هم دا حکم شوی چې د رسول کریم ﷺ په هرڅه کې پیروی وکړی. الله ﷻ فرمایی: «وَمَا آتَاكُمُ الرَّسُولُ فَخُذُوهُ وَمَا نَهَاكُمْ عَنْهُ فَانْتَهُوا». (پ۲۸ سورة الحشر)

(هغه څه چې د رسول الله ﷺ فرمان وی ، پرهغه عمل وکړئ او له کومی خبری چې منع راغلی وی ، له هغه نه ځان وساتئ.

له همدی کبله ده چې هرڅه رسول کریم ﷺ د الله تعالی له خوا بیان کړی ، ګویا هغه عینا له قرآن څخه ثابت دی. له ډیرو صحیح احادیثو



نه دا ثابته ده چې د لمونځونو وختونه پنځه دی؟او دا احادیث تول د متواتر په درجه کې دی. چې دا ورځینی ثابتیږی چې لمونځونه پنځه ۵ دی.

(کتاب الفقه علی المذاهب الأربعة ص۲۸۶، درمختار ص۶ج۱، فتاوی دارالعلوم ص۳۳ج۲)

## لمونځ ترټولو لومړی چا اداء کړ؟

د هدایې په شرح «عینی» کې راغلی چې د سهار لمونځ ترټولو لومړی حضرت آدم علیه السلام هغه مهال اداء کړ چې له جنت څخه رادباندی شو او د شپې د تیارې نه وروسته سهارشو. او د ماپښین لمونځ ترټولو لومړی ابراهیم علیه السلام هغه وخت ادا کړ چې کله ورته د خپل ګران زوی حضرت اسماعیل علیه السلام د ذبح کولو حکم راغی. او د مازیګر لمونځ ترټولو اول حضرت یونس علیه السلام هغه مهال ادا کړ چې کله نوموړی د ماهی له ګیډی څخه روغ رمټ راووتی. او د دوهم ځل لپاره یې ژوند په برخه شو.

او د ماښام لمونځ ترټولو له مخه حضرت عیسی علیه السلام د شکرېې په توګه ادا کړ او د ماخوستن لمونځ حضرت موسی علیه السلام هغه وخت ادا کړ کله چې له مدین څخه بهر ووتی. نو اوس پرموږ ټولو مسلمانانو بادی دا پنځه وخته لمونځونه فرض دی.

(درمختار ص۷ج۱- کتاب الصلوة)

**د لمانځه فضیلت:** نبی کریم ﷺ فرمایلی چې د اسلام بنیاد پر پنځو شیانو دی: ۱- د توحید او رسالت اقرار کول ۲- لمونځ ادا کول ۳ زکوة ورکول ۴- د رمضان المبارک روژی نیول ۵- (د قدرت لرلو په شرط) حج کول. (بخاری او مسلم)

نبی کریم ﷺ فرمایلي چې د ایمان او کفر ترمنځ حد فاصل یوازې لمونځ دی.
(مسلم)

همدا راز نبی کریم ﷺ فرمايي: چاچې لمونځ په قصدي توګه پرېښود ، هغه کافر سو. (مشکوة)

حضرت أبوذر رضی الله عنه فرمايي: یوه ورځ نبی کریم ﷺ د خزان په موسم کې چې د یخنۍ شپې ورځې وې؛ دباندې راووت او د یوې ونې دوې ښاخلې (څانګې) یې ونیوې او ویې ښورولې چې د هرې پاڼې ورځینې راتوی شوې بیا هغه ﷺ وفرمایل: ای ابوذره ! څوک چې د زړه له اخلاصه لمونځ ادا کوي نو د هغه ګناهونه به دا ډول توئیږي لکه د دې ونې پاڼې چې توئیږي. (مسند امام احمد)

حضرت ابن مسعود رضی الله تعالی عنه فرمايي چې ما یو ځل له نبی کریم ﷺ څخه وپوښتل چې الله تعالی ته ترټولو غوره عبادت کوم یو دی ؟ هغه ﷺ وفرمایل: لمونځ. (بخاري ومسلم ، علم الفقه ص۵ ج۲)

د الله ﷻ په نزد ترټولو ستر عبادت لمونځ دی. پرخپلو بندګانو یې پنځه وخته فرض کړی ؛ په ادا کولو یې زیات ثوابونه او په پرېښودلو سره یې د سخت عذاب وعده ورکړې.

په حدیث شریف کې راځي: څوک چې په ښه طریقه سره اودس تازه کړي ، او په ښه اخلاص سره لمونځ ادا کړي ، د قیامت په ورځ به الله تعالی د هغه ستري او وړې ګناوې ټولې وبخښي. او په بدل کې به یې جنت ورپه برخه کړي. او آنحضرت ﷺ فرمايي چې لمونځ د دین ستن ده. نو چاچې هغه په ښه توګه ادا کړ ، ګویا دین یې ښه ثابت کړ



، او چاچې دا ستن ړنګه کړه ( یعنی لمونځ یې ونکړ) ګویا هغه دین برباد کړی. دا راز آنحضرت ﷺ وفرمایل: چې د قیامت په ورځ به ترهرڅه وړاندې د لمانځه پوښتنه کیږي او په هغه ورځ به د لمونځ کوونکو ، لاس ، مخ او پښې د لمر په څیر ځلیږي. چې بې لمانځه به له دې نعمت څخه محروم او بې برخې وي. همدا رنګه لمونځ کوونکې به د قیامت په ورځ د انبیاؤو ، شهیدانو او وولیانو په ډله کې راپاڅیږي. او بې لمانځه به له قارون ، فرعون ، هامان او نورو غټو کافرانو سره راپورته کیږي. نو ځکه لمونځ کول ډیر ضروري امر دی ، چې په نه کولوئي د دنیا او آخرت نقصان دی. (بهشتی زیور ص۹ ج۲ بحواله مسلم)

## د لمانځه اصلی هدف

د لمانځه اصلی مقصد دادی چې د کائناتو د خالق د عظمت او لوئي نقشه پکې رسم شي ، تردی چې د الهی عذاب څخه د ویرې له امله د هغه په ټولو احکامو تعمیل او له موانعو څخه ئي پرهیز وکړای شی ، په دی کې د ټولو انسانانو ګټه ده ، ځکه چې کوم سړی چې په نیکیو باندې عمل کوونکي وی او له بدونه ئی ځان ساتلی وی ، له هغه نه بد کاری هیڅکله نه صادریږي ، او کوم سړی چې لمونځ اداکوی ، خوزړه ئی له الله ﷻ څخه غافل ، یعنی پوره توجه ئي برابره نه وی ، په نفسی خواهشاتو او جسمانی لذتونو کې را ایساروی ، نو د هغه لمونځ د ځینو آئمه وو په قول ، تنها فرض اداء شول ، ولې د لمانځه هغه اصلي موخه او هدف حاصل نه شو ، په اصل کې کامل لمونځ هغه ده چې الله ﷻ فرمایي: « قد أفلح المؤمنون الذين هم في

صَلَاتِهِمْ خَاشِعُونَ » یعنی هغه مسلمان چې لمونځ په خشوع (عاجزی ) سره اداء کوی ، هغه بریالی او کامیاب دی .

مطلب دا چې د لمانځه حقیقی هدف ، په رښتینی توګه د الله ﷻ د عظمت اعتراف کول دی ، همدا وجه ده چې په رښتیا سره هیڅوک لمونځ کوونکې نشی جوړیدای ترڅوئي په پوره ډول توجه خدای ﷻ ته نه وی ، د هغه تعالی ویره ئي په زړه کې قایمه وی ، له باطلو خیالاتو ئي ځان ساتلی وی ، د رحمت په امید وی ، د دنیا او نورو فکرونو څخه ئي ذهن خالی وي ، یوازی او یوازی خداوند متعال ته متوجه وی ، نو هغه مهال چې کله دا ټول کیفیت موجود وی ، نو بیا د لمانځه په وجه د هغه د باطنی او ظاهري اعمالو اصلاح او جوړښت کیدلای شی ، په همدی حالت کي به ئي له الله ﷻ سره رابطه وي او له هغه ناوړه کارونو څخه به ئي الله ﷻ د لمانځه په وجه وساتی چې الله ﷻ ورځینی منع کړی وی لکه چې الله ﷻ فرمایی: «إِنَّ الصَّلَاةَ تَنْهَى عَنِ الْفَحْشَاءِ وَالْمُنْكَرِ» یعنی بیشکه لمونځ سړی له منکر او فحشاء ، څخه راګرځوي. لنډه دا چې کوم لمونځ چې سړی له ناوړه کارونو څخه ساتی ، هغه هغه لمونځ دی چې سړی پکې د خپل رب د عظمت اعتراف وکړی ، د هغه له عذاب څخه په زړه کې ویره ولري او د هغه تعالی د رحمت امیدوار واوسی ، له داسی لمانځه نه هرسړی د دومره فیض احساس کوی چې خود بخوده ئي زړه د الله تعالی طرفته مائل کیږی ، او د الله ویره ئي په زړه کې ځای نیسی ، ځکه چې الله د خپلو بندګانو په زړونو عالم او خبر وی. الله پاک فرمایی: «واقم الصلوة لذکري» (یعنی لمونځ په داسی ډول اداکول پکار دی چې د الله



پاک په ذکر کې مستغرق وی ) او هغه څوک چې د لمانځه پرمهال ئي زړه له الله تعالی څخه غافل وی ، نو هغه ته عبادت کوونکی نشی ویل کیدی ، په حقیقت کې داسړی لمونځ کوونکی نه دی ، لکه چې رسول کریم ﷺ فرمایي: «لاینظر الله الی صلوة لایحضر الرجل فیها قلبه مع بدنه» (یعنی الله تعالی دهغه چا لمانځه ته نه ګوري ترڅوئي زړه او بدن په پوره توګه الله ته متوجه کړی نه وی. ) د دین له نظره لمونځ همدادی. او همدا لمونځ دی چې انسانی نفوس او د هغوی اخلاق جوړوی ، ځکه چې د لمانځه په هرجزء کې د بشري فطري فضائلو د برتری دستورالعمل او د انسانی غوره اخلاقو دیو نه یو خصلت تمرین او مشق پکی موجود وی. اوس مورډ لمانځه د څه اندازې اعمالو یادونه کوو ، چې د بشری نفسونو په جوړولو کې د هغوی څومره اغیز دی .

## د لمانځه اجزاوې

په دې اجزاوو کې یوهم نیت دی ، چې مطلب ئي د الله ﷻ د حکم د اداینی (لمانځه) په پوره ډول د پرځای کولو اراده کول دی ، یعنی داسی لکه الله تعالی چې ئي حکم کړی دی. نو که هغه تنها د الله تعالی د خوښی لپاره وی. اوس که یو سړی دا ډول عمل په شپه او ورځ کې پنځه ځله انجام کړی نو هرو مرو دا کیفیت د هغه په طبیعت کې ځای نیسی او له نیکو صفتونو څخه ئي ګرځی ، چې ډیر ښه اغیز ئي په انفرادی او ټولنیز ژوند کې پریږدی.

د بشري ټولنی لپاره تر دی بل ستر او ګټور شئ نشته چې په خپل قول او عمل کې ئي د نیت خلوص د تل لپاره پروت وی ، که چیری دا .

شئ وجود ولري، یقینا چي تولنه به دیو نیکمرغه او هوساژوند څخه برخمنه وی، او د دنیا او آخرت خوښي به ئي په برخه وي،

## د لمانځه دوهم جزء قیام (د الله په وړاندی دریدل دی)

لمونځ کوونکی قلبا او جسما د خپل پروردګار په حضور کي په عاجزانه ډول دریږی او د خپل نجات غوښتنه له الله ﷻ څخه کوی، الله ﷻ بنده ته د هغه تربښارګ ډیر ورنژدی دی، نو هرڅه چي بنده وایی الله پاک ئي ډیر ښه اوري، څه چي ئي په زړه کي وزګرځي په هغه باندی الله پاک خبروی. نو هیڅ شک نشته، کوم بنده چي داعمل (لمونځ) په شپه او روځ کي پنځه ځله تکراروی الله پاک به د هغه په زړه کي ځای ولري. د الله تعالی د حکم تعمیل به کوی، او له منهیاتو څخه به ئي ځان ساتی، نتیجه به ئي داوی چي له دی شخص څخه به د بشریت پرضد هیڅ ډول جنایی عمل نه صادریږی، نه د هغه پر ځان، او نه ئي پرمال، نه به ئي د چا دین او عقیدی ته زیان رسیږی، او نه به ئي عزت او ابروته.

## دریم جزء قرائت دی

یعني په لمانځه کي قرآن پاک لوستل، د ائمه کرامو په نزد.

د لمانځه اړوند مسائل او احکام به مخکي راشی، اوس به دا ووایو چي تلاوت کوونکي ته نه ښایی چي پرژبه قرآن وایی او زړه ئي غافل وی، بلکی لازمه دا ده چي څه په خوله وایی باید د هغه په حقیقت او مطلب کي غور او فکروکړی، او پند ورڅخه واخلی، اوداچي د کوم چا پرژبه د الله پاک ذکر جریان لري، پکار ده چي د هغه په زړه او دماغ کي د خدای پاک دعظمت او قدرت، هیبت پروت وي، لکه



چي الله پاک فرمایی: «إِنَّمَا الْمُؤْمِنُونَ الَّذِينَ إِذَا ذُكِرَ اللَّهُ وَجِلَتْ قُلُوبُهُمْ وَإِذَا تُلِيَتْ عَلَيْهِمْ آيَاتُهُ زَادَتْهُمْ إِيمَانًا» یعنی، د مؤمنانو نښه دا ده چي کله د الله ﷻ ذکر کیږی نو د دوی پرزړه دهغه تأثیر او هیبت پروت وی او کله چي د قرآن ایاتونه د دوی په وړاندی تلاوت کیږی نو ایمان ئي نورهم قوي کیږی.

همدا راز کله چي د الله ﷻ د رحمت او احسان د صفتونو یادونه کیږی، نو واجب دا ده چي انسان په زړه کي دا فکروکړی چي هغه څنګه کولای شی خپل ځان اصلاح کړی آنحضرت ﷺ فرمایی: «تخلقوا باخلاق الله فهو سبحانه کریم عفو غفور عادل لایظلم الناس شیئا» یعني ای خلکو! تاسو پخپلو ځانونو کي الهی اخلاق پیدا کړئ هغه پاک ذات بخښښ کوونکی، معافی کوونکی، مغفرت کوونکی، عادل دی، او هیڅکله پرهیچا ظلم نه کوی.

له همدی امله انسان مکلف دی چي پخپل ځان کي همدا اخلاق پیدا کړی اوس که کوم سړی د قرآنکریم هغه آیاتونه تلاوت کوی چي د الله ﷻ کریمه صفتونه پکښي ذکر وی، او دی د هغو په مطلب او حقیقت ځان پوه کړی او داعمل شپه او ورځ ډیر ځله تکرار کړی نو هرومرو ئي هغه پرطبیعت اثر غورځوی او چي کله پرطبیعت د غه جمیله صفتونه اغیز وکړی، نو سمدلاسه دی پخپله پرهمدی ښائسته صفتونو سره متصف ګرځی، خلاصه دا چي د نفس او اخلاقو د تهذیب او ښایست لپاره ترټولو غوره او لنډه لاره همدا ده.

خلورم جزء رکوع او سجده ده

یعنی د الله تعالی په وړاندی سر ټیټول او پرځمکه ایښودل دی. د غه ډول عمل د خالق تعالی د تعظیم نښه ده. مګر د لمونځ کوونکی لپاره یوازی دا کافی نه ده چې صرف د عادت په ډول دا عمل اجراء کړی، بلکی د هغه زړه باید له دې څخه پوره واقف وی چې دی ئې یوادنی عاجز بنده دی او د عظیم خدای په وړاندی د تعظیم سر ټیټوی. لمونځ کوونکی ته چې دا تصور په شپه او ورځ کې څوځله پیداشی نو د هغه زړه د تل لپاره د الله تعالی له عذاب څخه په ویره کې وی او هیڅکله به داسی کار چې الله پاک ته ناخوښه وي؛ ځینی صادرنه شی. لمونځ کوونکی چې کله د خپل خالق په وړاندې سر پرسجده او تندی پرځمکه ږدی؛ نو دا د خپلې بندګۍ اظهار کوی، په داسی حال کې نو هغه ته پکار ده چې د بندګۍ په نهایت عجز او د پروردګار چې معبود برحق دی؛ له عظمت څخه اګاه او خبروی. پکار ده چې الهی خوف او ویره به ئې په زړه کې موجوده وی او له ناوړه کارونو نه به ئې ځان ژغورلی وی.

له دې پورتنیو اجزاؤ نه پرته په لمانځه کې نورهم ډیر عظیم الشانه او ګټوری خبرې شته، چې یو ئې هم په جماعت سره لمونځ اداکول دی، اسلام په جماعت سره د لمانځه د اداکولو حکم کوی، او نبی کریم ﷺ دهغه ترغیب (هڅونه) داسی فرمایی: «صلوة الجماعة افضل من الصلوة الفذبسبع وعشرین درجة» (یعنی په جماعت سره لمونځ اداکول تر جدا جدا کولو ۲۷ اوه ویشت درجې بهتردی.) په صف کې د سیده او برابر دریدلو باندی تأکید د دې خبرې



ښکارندویي کوي چې په لیرې والی او چپه و راسته دریدلو کې زړونه یو د بل سره لیرې کیږی او کینه پکښې ځای نیسی؛ نو په صف کې برابر دریدل د اتحاد (یووالی) او اتفاق وسیله ګرځي، زړونه یو بل ته نږدی کیږی. چې دا ډیر ګټور عمل دی او الله ﷻ په دې اړه داسی فرمایی:

«وَاعْتَصِمُوا بِحَبْلِ اللهِ جَمِيعًا وَلَا تَفَرَّقُوا» یعنی ای خلکو د الله ﷻ رسۍ محکمه ونیسئ او پخپل منځ کې تفرقه (بیل والی) مه کوئ. داراز په جماعت سره لمونځ کول هغه اخوت او ورورولی مسلمانانو ته یادوي چې الله پاک ئې داسی یادونه کوی: «إِنَّمَا الْمُؤْمِنُونَ إِخْوَةٌ» یعنی ټول مؤمنان پخپلو کې سره وروڼه دی. نو بس هغه مسلمانان خودې هرومرو دا خبره له یاده نه باسی چې دوی د خالق تعالی عبادت ته یو ځای راټولیږی؛ چې دوی پخپل منځ کې سره وروڼه دی. نو هغوی ته لازمه ده چې مشران پر کشرانو شفقت ولري او کشران دی بیا د خپلو مشرانو د احترام خیال وساتی، څوک چې امیر وی، هغه دی د غریبانو ستونزی ورحل کړی او چې څوک غښتلی وی، هغه دی د کمزوری او بیچاره مرسته وکړی. او صحت مند دی د ناروغانو پوښتنه او لاس نیوی وکړی، ترڅو د رسول الله ﷺ په دې ارشاد عمل وشی چې فرمایی: «المسلم اخو المسلم لایظلمه ولایثلمه من کان فی حاجة أخیه کان الله فی حاجته ومن فرج عن مسلم کربة من کرب الدنیا فرج الله بماعنه کربة من کرب یوم القیامة و من ستر مسلما ستره الله یوم القیامة» ژباړه: یو مسلمان د بل مسلمان ورور دی. بس هغه ته پکار ده چې نه پر بل ظلم وکړی او نه کوم نقصان و

ورسوي ، څوک چې د ضرورت او اړتیا بروخت د خپل ورور پکار ورشي الله پاک به د قیامت په ورځ د هغه ستونزې ورحل کړي ، چاچې د کوم مسلمان پرده خوندي کړه ، الله پاک به د قیامت په ورځ د هغه پرده خوندي کړي.

لنډه داچې که موږ هڅه وکړو چې دلمانځه ټولې ښیګنې بیان کړو نو امکان لري چې په څوڅو دا ډول کتابونو کې هغه راټولې نکړای شو. نو له همدې کبله موږ اوس په همدې اکتفاء کوو ، او الله ﷻ ته دا دعاء کوو چې موږ ټولو ته پر دین حنیف باندې دعمل کولو وس او توان راپه برخه کړي.

آمین یارب العالمین. (کتاب الفقه ص ۲۷۵ تر ص ۲۷۸ پورې لوړې ټوک).

## لمونځ ولې یو جامع عبادت دی ؟

که څه هم له ایمان بالله څخه وروسته د اسلام مدار پر دغو پنځو عباداتو قائم دی ، لکه : لمونځ ، روژه ، حج ، زکوة ، جهاد فی سبیل الله. مګر داچې دلته زموږ موضوع دا نه بلکې یوازې د لمانځه بحث اړخیږي نه ده نو ځکه له هغې موضوع څخه صرف نظر کوو او دلمانځه پرمسائلو او فضائلو رغیږو.

لکه مخکې مو چې وویل: لمونځ د څو مخصوصو اقوالو او افعالو مجموعه ده چې د خدای ﷻ د عظمت اظهار پکې مقصد وي. دغه مجموعه چې د تکبیر تحریمه په ویلو سره پیل او د سلام په ګرځولو پای ته رسیږي ؛ بنده د خپل خالق په وړاندې د خپلې عاجزۍ او نیازمندۍ او د خدای ﷻ د عظمت او د هغه د انعامو د اعتراف څرګندونه کوي ، او د خپلو ټولو مشکلاتو حل له الله ﷻ غواړي دغه



ډول عبادت اُسلامي شریعت پر هر عاقل بالغ مسلمان ، که نر وي او یا ښځه آزاد وي که غلام ، پر ټولو فرض ګرځولی دی ، هر سړی د خپل وس مطابق له همغه نه ګټه پورته کوي. دا هغه عظیم الشان عبادت دي چې پرېښوونکی ته ئې امام احمد بن حنبل رحمه الله کافر ویلی دی. او امام شافعي رحمه الله ئې د قتل خبره کړې ده. او امام اعظم أبو حنیفه رحمه الله ئې ترتوبې ایستلو د حبس او بندي کولو فتوا ورکړې ده.

دا د اسلامي ملت هغه شعار دي چې که سړی ئې په له منځه تللو سره د اسلام له منځه تلل وګڼي نو هم پرځای خبره ده. دا هغه عبادت دی چې د تهذیب نفس او اخلاق تر ټولو ګټوره نسخه ده. چې زړونه له هر ډول ناوړه کیو څخه ساتي او د اخروي تجلیلاتو لپاره ئې اراسته کوي. د بدۍ ـ ځ ی ښکې رامنځ ته کوي. لکه چې په حدیث شریف کې راځي : د حضرت په زمانه کې یو سړي یوه اجنبي ښځه پرمخ مچ کړه ، وروسته ئې د یوې ډیرې لویې خطا او ګناه احساس وکړ. او په خپل پاک زړه کې ئې یو بد ډول ظلمت محسوس کړ ، نو د نبي کریم ﷺ په خدمت کې په داسې حال کې چې سخته پښیماني او شرمندګي ئې څرګندوله ؛ حاضر شو او خپله کړې غلطي ئې ورته بیان کړه ، پخپل فکر ئې داسې انګیرله چې دا له ما څخه صادره شوې ګناه د بښلو قابل نه ده ، نو ئې په بیړه بیړه ویل : «هلکت هلکت» تباه شوم هلاک شوم آنحضرت ﷺ پرته له دې چې ځواب ورکړي ، د لمانځه تر ادا کولو پورې ئې سکوت غوره کړ ، چې په لمانځه کې دغه سائل هم شامل شو ، د ده د ډیرې عاجزۍ او

خجالت د احساس په وجه الله پاک پر نبی کریمﷺ دا آیة رانازل کړ: « وَأَقِمِ الصَّلَاةَ طَرَفَيِ النَّهَارِ وَزُلَفًا مِّنَ اللَّيْلِ إِنَّ الْحَسَنَاتِ يُذْهِبْنَ السَّيِّئَاتِ » د ورځي په داوړو اړخونو کې او د شپې په یو څه برخه کې لمونځ قائم ساته ځکه چې نیکی، بدی له مینځه وړی. نو رسول کریمﷺ سمدستي هغه سائل ته دازیری واوراوه، او وئي فرمایل: «ان الله قد غفرلک ذنبک» یعنی بیشکه چې الله پاک ستاگناه وبخښله بیادې سائل وپوښتل چې آیا دا حکم یوازې زما لپاره دی؟ آنحضرتﷺ وویل: نه. دا حکم زما د ټول امت لپاره ده. او بیا آنحضرتﷺ د دې خبري په تړخ کې وفرمایل: «لوان نهرا بباب أحدکم یغتسل فیه کل یوم خمسا هل یبقی من درنه شئ قالوا الا قال فذلک مثل الصلوة الخمسة یمحوا الله بها الخطایا» که چیری په تاسو کې د کوم سړي د کور ترمخ د اوبو نهر (ویاله) جاری وی او سړی د ورځي پنځه ځله ورکې غسل کوی، نو آیا د هغه پر بدن به کوم خیری پاتی شی؟ صحابه کرامو رضی الله تعالی عنهم عرض وکړ: نه! هغهﷺ وفرمایل: همداسې پنځه وخته لمونځونه هم دی چې خدای تعالی په لمانځه سره د سړی ټولی بدی لیری کوی او بیائي همدارنگه وفرمایل:

«الصلوات الخمسة والجمعة الی الجمعة ورمضان الی رمضان مکفرات لما بینهن اذا اجتنبت الکبائر».

یعنی که چیري له گناه کبیره څخه سړی پرهیز وکړی، نو پنځه لمونځونه او جمعه تر بلې جمعې او روژه تر بلې روژې پورې په منځ کې د ټولو گناهونو لیرې کوونکی دی.



چې همداراز الله تعالی پخپل مقدس کتاب کې فرمایی: «ان الصلوة تنهی...» بیشکه چې لمونځ سړی له بې حیائی او بدو خبرو څخه ژغوري

د خپل امت ټولو گناهکارانو ته پوره ډاډ ورکوي چې. کوم شخص چې لمونځ په پاک نیت، په ښه توجه قلبی او په کامله خشوع او خضوع سره هروخت اداء کړی، نو یقینا چې دا سړی د الله تعالی د رحمت غیر متناهی دریاب ته ورسید، چې له امله به ئې د ده واړه واړه گناهونه د خس او خاشاک په څیر سوځول کیږي او د زړه له پردې څخه ئې گناهونه داسې توئیږی، لکه د خزان د موسم دونو پاڼې چې توئیږي.

پردې برسیره لمونځ یو داسې عبادت دی چې د اسلام نور ارکان هم په ضمن کې ورسره ئیسی، د مثال په توگه په روژه کې روژه دار ته حکم دا دی چې له سهاره تر ماښامه پورې له خوراک، څښاک او جماع څخه ځان وژغوري، نو همداراز په لمانځه کې هم عینا د همدې شیانو خیال ساتل ضروري حکم دی. څرنگه چې په دغه ذکر شویو شیانو سره روژه ماتیږي، داراز لمونځ هم له مینځه ځی، حتی چې په لمانځه کې ئې تاکید ډیر زیات دی. تردې چې په لمانځه کې به سړی د سترگو تر څنگ هم چاته نظر نه کوی داځکه چې توجه ئې غیر الله ته نشی او صرف الله تعالی ته متوجه وي او سې پرژبه به ئې ذکر او تلاوت وی او د بدن هرغړی به له بیځایه حرکته ساتی، چې لمونځ ئې فاسد یږی، په داسې حال کې چې دا ټول امور داسې دی چې روژې ته مخل نه واقع کیږی. همدارنگه د حج افعال هم په لمانځه کې

مونډل کیږي، که په حج کې احرام تړلی دی. نو په لمانځه کې تکبیر تحریمه دی. که هلته د کعبې طواف او پر عرفات دریدل دي، نو په لمانځه کې استقبال القبلة او قیام ده، که په حج کې د صفا او مروه ترمنځ سعی ده نو په لمانځه کې د رکوع او سجدې حرکات دي.

همدا راز څرنګه چې په زکوة کې له ټول نصابي مال څخه یوه معلومه اندازه د خدای ﷻ په لاره کې صرف کول ضروري دي؛ دا راز لمونځ کوونکي ته هم دا حکم دی چې د خپلې شپې ورځې له وختونو څخه دې یو د اندازه معین وخت د خدای ﷻ د رضاء لپاره د خدای په عبادت کې تیر کړي. مطلب دا چې لمونځ هغه عبادت دی چې ټولو عباداتو ته جامع او شامل دی. د قرآن تلاوت، شهادت، ذکر، دعاء او تسبیح ټول په لمانځه کې شته نو مطلب تر لمانځه افضل عبادت نشته. لکه چې له رسول الله نه همدا و پوښتل شول: «أی الاعمال أفضل»؟ (په ټولو اعمالو کې کوم یو عمل بهتر دی؟) نو هغه ﷺ وفرمایل: «الصلوة لوقتها» یعنی لمونځ پر وخت آدا کول.

او کله چې د محشر په ورځ د مخلوقاتو د راغونډولو په غرض د صور شپیلۍ پوک کړله شي، او ټول خلک د حساب کتاب لپاره راټول شي، نو تر هر څه وړاندې به د لمانځه محاسبه کیږي، له همدې کبله ده چې د ایمان او عقیدې تر صحت او اصلاح وروسته لومړی مقام د لمانځه دی. آنحضرت ﷺ د دې ارشاد فرمایلی چې د عمر په ابتداء کې باید په همدې عبادة سړی عادت کړای شي چې والدینو (مور او پلار) ته داسې فرمایي: «مروا اولادکم بالصلوة وهم ابناء سبع سنين واضربوهم عليها وهم ابناء عشر سنين» یعنې ستاسو اولادونه



چې د ۷ کالو عمر ته ورسیږي نو تاسو ئې په لمانځه امر کوئ او چې کله بیا لسو کالو ته ورسیږي، نو د لمانځه پخاطر وهل ورکوئ.

غرض دا چې په قرآن او حدیث کې د لمانځه ډیر زیات فضائل ذکر شوي او شارع علیه السلام د هغه د وختونو، ارکانو، شرائطو او آدابو په بیانولو کې تر ټولو عباداتو ډیر اهتمام کړی دی، پس رښتینی او کامل انسان هغه دی چې له شرک او مخلوق پرستۍ څخه ځان بیزاره ښیئ او د خپل حقیقي پروردګار عبادت په اکمله او احسنه طریقه سره ادا کړي. همدارنګه د خپل هوا او هوس په فکر کې نشي، بلکې د خپل خدای ﷻ د شکر په ادا ینه کې تیار او مستعد واوسي، او د الله تعالی او امر او نواهیو ته متوجه واوسي.

حضرت شاه عبدالعزیز محدث دهلوی رحمه الله د «فصل لربک» د تفسیر کولو په ترڅ کې فرمایلي چې لمونځ یو داسې عبادة دی چې په دنیا کې د کوثر نمونه ده. (له «الرشید» رسالې څخه اخیستنه شوال المکرم کال ۱۳۳۲ه)

## د لمانځه د صحت شرطونه

څرنګه چې لمونځ تر ټولو اهم عبادت دی. له همدې امله ئې شرائط هم ډیر زیات دي. خو دلته موږ صرف هغه شرطونه بیانوو چې په هر لمانځه کې ئې اړتیا وي، ځینې هغه شرائط چې له خاصو لمونځونو سره تعلق لري، لکه د جمعې لمونځ هغوی به پر خپل ځای ذکر کړو، او هغه شرائط د مرتب په یوه بل کتاب «مسائل نماز جمعه وعیدین» کې هم مطالعه کولای شئ.

**لومړی شرط:** طهارت (پاکي) د لمونځ کوونکي بدن باید له سپکې او درنې لیدونکې او نالیدونکې مردارۍ څخه پاک وي، خو که دا

نجاست دومره کم وی چې د بخښنې قابل وی ؛ بیا پروانلری. مګر ښه دا ده چې له ډیر ورو کي نجاست څخه هم باید سړی ځان وساتی. همدارنګه د نجاست حکمي له دواړو فردونو (حدث اکبراو حدث إصغر) څخه هم باید سړی پاک وی ، د بدن دپاکې ترڅنګ باید سړی دخپلو جامو د صفائي خیال هم وساتی. همدارنګه هغه ځای چې لمونځ وربان‌دی کیږی ؛ هم باید پاک وی. خوکه کم وي بیاڅه حرج نشته د لمانځه دځای څخه مطلب هغه ځای دی چې پښې ورباندی ږدی د سجدې په حالت کې دځنګنود اینښودلواو په سجده کې دتندی او پوزې د اینښودلو ځای مراد دی. (درمختار)

**مسئله** : که چیرې پریو ناپاک ځای باندی څادر اویابل تو کر د لمانځه لپاره وغوړول شی نو په هغه کې شرط دا دی چې دا تو کر به دومره نرئ نه وی چې لاندی ځمکه اویابل شی ترلاندی ښکاره شی.

(بحرالرائق شرح الوقایه ،علم الفقه ص ٢٢ ج ٢ هدایه ص٥٨ ج١ شرح نقایه ص٦٢ ج١ وکبیری ص١٧٧ اونمازمسنون ص٢٦٥)

**دوهم شرط**: سترالعورة (د فرجوپټول) یعنی د لمانځه په حالت کې به سړی د بدن هغه برخه پټوی چې ښکاره کول ئي شرعا حرام دی. دا که یوازی لمونځ کوی اویائي دچاپه وړاندی اداکوی. که چیری یوسړی په توره شپه کې اویا په یوډیر تنها مکان کې لمونځ اداء کوی په داسی حال کې هم پرده (سترالعورة) فرض دی که څه هم د بل چا دلیدلو احتمال ئي نه وی. خوکه پخپله ئي نظر پرخپلو فرجو دلمانځه په حالت کې ولګیږی ، نو څه باک نشته. (بحرالرائق ، درمختار ، مراقی الفلاح ، علم الفقه ص٢٦ ج ١ ، کبیری ص٢١٠ کتاب الفقه ص٢٨٣ ج١)



**مسئله** : د نارینه لپاره له نامه څخه کښته ، د ځنګانه ترسترګیو پوری پټول فرض دی ، ولی د ښځي بیا له مخ ، لاس او پښو نه پرته ټول بدن پټول فرض دی. (هدایه ص٥٨ ج١ ، شرح نقایه ص٦٤ ج١ وکبیری ص٢١٠ کتاب الفقه ص٢٨٣ ج١)

**دریم شرط**: استقبال القبلة: (قبلې ته مخ کول) یعنی په لمانځه کې دا شرط دی چې مخ اوسینه به د کعبې شریفې پرلوری سیده کوی ، هغه که حقیقتا وی ، که حکما او کعبې ته مخ بالکل برابرول سنت دی ، مګر شرط نه دی ، که چیری یوسړی صرف مخ کعبې څخه وګرځوی ، اونور سیده وی ، هم لمونځ وکړی ، لمونځ ئی اداء کیږی ، مګر د خلاف سنت په وجه مکروه تحریمی ګرځي. او هغه چاته چې کعبه ښکاری ؛ یعنی کعبې ته نژدې وی ، په منځ کې بل کوم حایل نه وی نو پر هغه فرض دی. چې خاص به وکعبې ته مخ ګرځوی اولمونځ به اداء کوی ، یعنی بالکل کعبې ته سیده دریدل وریاندی فرض دی. (علم الفقه ص٢٨ ج٢ هدایه ص٦١ ج١ ، شرح نقایه ص٦١ کبیری ص٢١٧ ، کتاب الفقه ص٣٠٩ ج١)

**مسئله** : قبلې ته مخ ګرځول او لمونځ کول واجب دی خو په دوه شرطه ، یو داچې قدرت به ئی وی اوبل داچې د امن خطر به ورته نه وی. (کتاب الفقه ص٢٢٤ ج١)

**څلورم شرط**: نیت . یعنی په زړه کې دلمانځه د اداء کولو قصد ته نیت وائي ، په ژبه سره هم ویل افضل کاردی ، (نیت خو فقط د ارادې نوم دی چې محل ئي زړه دی ، نه ژبه.) که چیری فرض لمونځ اداکیده ، نو د هغه وخت د فرض تعین کول هم په نیت کې ضروری دی. مثلاکه د ماپښین لمونځ اداء کوی نو په زړه کي دا قصه کول چي ماپښین لمونځ اداکوم ، اوداسې نور ... ) اوکه واجب لمونځ ... نو هم ئي د تعین نیت

ضروری دی ؛ چې داکوم واجب دی ، وتردی ، د اختر لمونځ دی ، کُه د نذر لمونځ ؟!

همدا راز مقتدی ته د امام د اقتداء نیت کول هم شرط دی ، او امام به صرف د خپل لمانځه نیت کوی ، د امامت نیت ورته شرط نه دی. مګر که چیری له شا بشځه د نارینه وو سره برابره په صف کې پسی ودریږی ، او دا لمونځ د جنازې یا اخترانو او جمعې نه وی ؛ نو د هغې د اقتداء د صحت لپاره امام ته د هغې د امامت د صحت لپاره نیت پکار دی او که له نارینه وو سره په صف کې برابره نه وي ولاړه یا دا جنازې ،اخترانو او دجمعي لمونځ وي، نو بیا امام تهٔ دهغې د امامت نیت کول شرط نه دی. د جنازې په لمانځه کې دا نیت کول ارین دی چې ووایی زه دا لمونځ د الله تعالی د خوښي پخاطر او دې مړي ته د دعاء په نیت اداء کوم که چیری مقتدی ته دا معلومه نه وی چې دا مړی نارینه دی که ښځینه ،نو بیا دا ورته کافی ده چې ووایی: زما امام چې د چا د لمانځه نیت کړی وی زما هم غه نیت دی. (علم الفقه ص۳۰ ج۲)

**مسئله**: نیت له تکبیر تحریمه سره یو ځای ترل کیږی ، خو که تر تکبیر وړاندی شی بیا هم صحیح دی. په دې شرط چې د نیت او تکبیر ترمنځ بل کوم داسی فاصل نه وی چې دلمانځه سره منافی وی. مثلاً خوراک څښاک خبری اتری. او که چیری همدا شرط پر ځای شی ؛ بیا که نیت تر وخت هم لمخه وتړل شی پروا نلری صحیح دی. خو تر تکبیر تحریمه وروسته نیت کول صحت نلری ، دغه نیت ته هیڅ اعتبار نشته .(علم الفقه ص۳۱ ج۱ کتاب الفقه ص۲۲۵ ج اول).



که چیری لمونځ کوونکې په زړه کې دلمانځه اراده وکړی او په ژبه څه ونه وایی ، نو لمونځ یې درست دی ، البته د عامه خلکو لپاره د زړه د نیت تر څنګ په ژبه هم ویل بهتر او ښه کار دی. ځینی خلک داسی وی چې د نیت اوږده او لنډ الفاظ سره کتار کړی ، دا ښه نه دی ، څکه چې امام قرائت شروع کړی ، دی لا په نیت لګیاوی . (رفعت قاسمی)

نیت دې ته وائي ، چې سړی د خدای لپاره د لمانځه د اداکولو اراده وکړی ، په داسی طوز سره چې له دنیوی امورو څخه هیڅ شئ پکې شامل نه وی. (کتاب الفقه ص۲۲۳ ج۱ ، بحر ص۲۸۲ ج۱)

**پنځم شرط**: تکبیر تحریمه: یعنی د لمانځه د شروع په وقت کې الله اکبر ویل یا دې ته په معنی کې ورته لفظ ویل ، څرنګه چې له دې تکبیره وروسته لمونځ پیل کیږی ، دلته خوراک ، څښاک ، تلل راتلل ، خبری کول ، ډیری داسی شیان چې له لمانځه بهر جایز وی او س هغه حرامیږی ، نو ځکه دی تکبیر ته تکبیر تحریمه وائي.

د تکبیر تحریمه لپاره اته شرطونه : (۱) دغه تکبیر به له نیت سره یو ځای وی ، که حقیقتا وی ، یعنی په یوه وخت کې نیت او تحریمه به دواړه وی . که حکماوی ، یعنی د نیت او تحریمې ترمنځ کوم د لمانځه منافی شی فاصل نه وی ، خودوی دوه وی سره بیل ، باید وویل شی چې د نیت څخه وروسته د لمانځه لپاره کنبیناستل پورته کیدل ، تلل راتلل ، اودس کول او داسی نور باید دلمانځه سره منافی ونه ګڼل شی ، په داسی ډول فاصل سره نیت صحت ته هیڅ خلل نه پیښیږی ، مګر بهتره دا ده چې نیت او تحریمه حقیقتا سره یو ځای

وشی. (مراقی الفلاح) (۲) په کومو لمونځونو کې چې قیام یعنی دریدل
فرض وی، نو د هغوی تکبیرتحریمه هم په ولاړې ویل فرض دی، او
په نورو لمونځونو کې چې ئې ځنګه زړه وي. مګر ددې خبري باید
حتمی خیال وساتل شی چې په هرلمانځه کې ضروری ده چې تکبیر
تحریمه د رکوع په حالت کې او یارکوع ته نژدی د انحناء په حالت کې
نه ویل شي، که چیری ئي څوک په همدې حالت کې چې رکوع ته تر
ولاړې نژدی وي او وئي وایی نو تحریمه ئي قطعا نه صحی کیږی
.اوکه ولاړې ته نژدې وي نو تحریمه صحیح کیږي. (مراقی الفلاح)

**مسئله**: ځینی ناخبره خلک چې کله مسجد ته راشی امام د رکوع په
حال کې ووینی، نو په ډیره بیړه (تلوار) سره راځغلی، په امام پسی
تیتیږی، په همدی حالت کې تحریمه هم وائي، نود دي سړی لمونځ
نه صحی کیږی، ځکه چې تکبیرتحریمه د لمانځه د صحت لپاره
شرط دی، چې کله دا شرط درست نه وی، نو لمونځ به څنګه صحی
شی، یعنی لمونځ ئي ونشو

۳- تحریمه به ترنیت له مخه نه وی، یعنی لمړی به نیت تړل کیږی
بیا به تحریمه وی که تحریمه له نیت څخه مخکې کړي نو تحریمه نه
صحیح کیږي. (مراقی الفلاح)

۴- تکبیر تحریمه به په دومره اوچت آواز لوستل کیږی چې پخپله
ئي واوری، په دې شرط که کوڼ نه وی. د ګونګې لپاره د ژبی خوځول
ضروری نه دی، په ژبه د هغه تکبیر ویل معاف دی.

۵- تکبیر تحریمه په داسی اندازکې اداکول، چې د خدای ﷻ د
عظمت څرګندونه ورځني کیږی.



۶- د الله اکبر همزه یا «با» به نه لوړه وی، که چیری کوم څوک «الله اکبر
الله اکبار» ووایی نو تکبیر ئي درست نه دی.

۷- په الله کې له «لام» څخه وروسته به «الف» وایی. که چیری ئي
څوک ونه وایی تکبیریی نه دی صحیح.

۸- د تکبیر تحریمه لپاره بسم الله او یا نور الفاظ نه لوستل کیږی.
که چیري څوک د تحریمه پرځای بسم الله الرحمن الرحیم اویا بل څه
ووایی، نو تکبیر ئي صحت نلري. (درمختار، مراقی الفلاح) او تکبیر
تحریمه به قبلې ته مخامخ وائي، که عذر ئي نه درلود. (علم الفقه ص ۳۲ ج۲)

## په رکوع کې د شاملیدلو پر مهال د تکبیر تحریمه حکم

**مسئله**: که چیری امام په رکوع کې وی، او یو سړی غواړی چې په
رکوع کې ورسره شامل سی، نو مسنونه طریقه دا ده چې د تکبیر
تحریمه د ویلو وروسته بل تکبیر ولولی او بیا رکوع ته ولاړ شی او که
فرضا دا سړی دویم تکبیر ونه ویلای شی، خو رکوع ئي له امام سره
پیدا کړه، نو د ده لمونځ صحیح شو او رکعت ئي وموند. (اګرچه
سنت طریقه ورځینی پاتی شوه).

(درمختار برحاشیه شامی ص ۴۴۳ ټوک اول)

## د غلیظه او خفیفه نجاست تعریف

نجاست غلیظه د امام ابوحنیفه رحمة الله علیه په نزد هر هغه
نجاست ته ویل کیږی چې په مردار والی کې ئي دلائل متفق وی. د
علماؤ که اختلاف وی پکښی او که نه وی. دا راز که بلوی عامه وی

، یا نه وی ، او نجاست خفیفه هر هغه مرداري ته ویل کیږي چې دلائل یکښې متعارض وی.

«ان الامام قال توافقت علی نجاسته الادلة فمغلظ سواء اختلف فیه العلماء وکان فیه بلوی أم لا والا فمخفف .

(طحطاوی علی العراقی ص۸۲ هکذا فی فتح القدیر ص۲۰۳ ج۱ وبحرالرائق ص۲۲۹ ج ۱ والشامی ص۲۱۱ ج۱)

د صاحبینو په نزد غلیظ نجاست هر هغه مردلري ته ویل کیږي چې په مردار والی کې ئي اتفاق وی د علماؤو ، او پکښي بلوی عامه نه وی ، که چیری د علماؤو اختلاف وی او یا عمومی بلوا وي ، نو بیا دې نجاست ته خفیفه ویل کیږي. «وقالا ماتفق العلماء علی نجاسته ولم یکن فیه بلوی فمغلظ والا فمخفف ولا نظر للادلة.»

(طحطاوی علی العراقی ص۸۲ فتح ص۲۰۲ ج۱ بحرالرائق ص۲۲۹ ج۱ ش ص۲۱۱ ج۱)

## د نجاست غلیظه حکم

که چیری داسی نرمه او یا بهیدونکې غوندې مرداري پربدن یا جامه ولګیږي ، نو که دیوه درهم په اندازه یا تر هغه کم وی ؛ نو څه باک نلری معاف دۀ له پریمنځلو پرته لمونځ صحی کیږی لیکن نه پریمنځل او داشان لمونځونه کول مکروه دی. پریمنځل ئې ښه کار دی او که له یوه درهم څخه زیات ځای خراب کړی نو بیا معاف نه دی. پریمنځل ئي ضروری دی له پریمنځلو پرته لمونځ نه دی روا او که چیري غلیظ نجاست یو څه سخته لنده مرداري پربدن یا جامه ولګیږی لکه د چرګ یا بل دغسی شئ مرداري، نو که وزن ئي څلورنیم ماشه او یا له هغه څخه کم وي نو بیا له پریمنځلو پرته لمونځ کامل درست دی او که



چیری ئي وزن له دې اندازې څخه زیات وی ؛ نو له پریمنځلو بغیر ئې لمونځ هیڅ صحت نلری.

(کمافی الطحطاوی الکبیری والشامی وایضا فی البحر)

## د خفیفه نجاست (سپکې مرداری) حکم

دغه نجاست که چېری پربدن یا جامه ولګیږی ، نو پر کومه برخه چې لګیدلی وی ؛ که له څلورمې برخې څخه کم وو ، بیا معاف دی. باک نلری ، او که پوره څلورمه حصه او یا تر هغه زیاته وه. نو بیا نه بخښل کیږی ، پریمنځل ئی ضروری دی ، مثلا پر لستوني ولګیده ، نو د لستوني څلورمه حصه شمیرله کیږی ، داسی نه چې ټول کمیس حسابیږی.

(کمافی الطحطاوی ص۸۴ شامی ص۲۱۲ کبیری ص۱۴۵ بحرالرائق ص ۲۳۰ ج۱ تبیین الحقائق ص۷۵ ج۱) محمد طاهر عفاالله عنه مفتی دارالعلوم دیوبند)

**د لمانځه وختونه:** څرنګه چې لمونځ د الله ﷻ د هغو نعمتونو په بدل کې د شکر ادا ینه ده چې هره شیبه د بنده په خدمت کې وي ، نو له همدې امله د هغه مقتضاء دا ده چې هیڅ کله باید انسان له دې عبادة څخه وخت خالی تیر نکړی ، مګر دا چې شرعی ضروری حوائج پوره کړی په هغه کښې حرج راځي. همدا وجه ده چې لږ لږ شیبه وروسته په ورځ کې داغه پنځه وخته لمونځونه فرض کړل شویدی: (۱) سهار ، ماپښین ، مازدیګر ، ماښام ، ماخستن.

د سهار وخت : له صبح صادق (رښتینی سهار) څخه پیل کیږی بیا تر لمر ختلو پوری دی. (بحرالرائق ، درمختار ، هدایه ، ص۵۰ ج۱ ، شرح نقایه ص۵۴ ج۱ کبیری ص۲۲۶)

د شپې په وروستنۍ برخه کې د اسمان په څنډه کې یوډول سپینه روښنائي راپورته کیږی ، او بیالږ شیبه وروسته بیرته تیاره جوړیږی سپین والی ورک شی . نودې ته صبح کاذب (دروغجن سهار) ویل کیږی. له دې نه وروسته بیاد اسمان په څنډوکې یو سپین والی راڅرګند یږی ، چې وارپه وار زیاتیږی ، هغه ته صبح صادق (رښتینی سهار) ویل کیږی ، له همدې سهاره څخه د لمانځه وخت پیل کیږی بیاتر لمر ختلو پوری.

د نارینه وو لپاره د سهار لمونځ په داسی وخت کې اداکول مستحب دی چې روښنی ښه زیاته شی او په لمانځه کې څلویښت ، پنځوس آیتونه تلاوت کړی ، اوله لمانځه نه فارغ سی ، بیاهم دومره وخت لمرختو ته پاتې وی چې که بیرته لمونځ راګرځول وغواړی ، نو بیرته ئې دڅلویښت پنځوس ایتونو په تلاوت سره راوګرځولای شی.

مګر د ښځو لپاره همیشه په تیاره کې د لمانځه اداکول مستحب دی او دنارینه وو لپاره یوازی په حج کې په مزدلفه کې د سهار لمونځ په تیاره کې اداکول مستحب دی. (علم الفقه ص۸ ج ۲ ، درمختار ، مراقی الفلاح ، وشرح وقایه ، ص۱۳۰ ج۱ شرح نقایه ، ج۱ ص۵۲ نسائی شریف ص۵۰ ج۱)

د ماپښین وخت: د غه وخت د لمر د زوال نه پیل کیږی بیاتر هغه وخته پوری چې د هرشی سایه د خپلی اصلي سایې نه پرته دوه چنده شی ؛ دوام لری. مګر احتیاط دا دی چې د یوه مثل په دننه کې د ماپښین لمونځ اداء کړی شی.

داراز دجمعې د لمانځه وخت هم همدادی. ولی یوازی فرق دا دی چې دماپښین لمونځ د ګرمیو په موسم کې باید په لږ تاخیر سره اداء



شی ، که ګرمي وی کنه ا او دیخنی په موسم کې بیا په بیړه او پروخت اداء کول مستحب دی. (شامی ، بح ، علم الفقه ص۹ ج۱)

**مسئله** : د هرشئ له اصلی سایې نه پرته که دهغه سایه تردوه مثله ورسیږی نو نور د ماپښین وخت پای ته رسیږی. (هدایه ص۴۹ ج۱ ، کبیری ص۲۲۷)

د مازیګر وخت : د مازیګر وخت د ماپښین له ختمیدلو څخه سمدستی پیل کیږی بیاتر لمرلویدلو پوری دوام کوی. دمازیګر د لمونځ اداء کولو لپاره مستحب وخت هغه دی چې په لمر کې دژړوالی نښه نه وی پیدا شوی ، خو روښنایی ئې دومره کمه شوی وی چې که ورته وکتل شی ، سترګی دغرمی په څیر نه پړې سوځی. یعنی سړی ورته کتلای شی. له دی وروسته اداء کول ئې مکروه دی ، خود مازیګر لمونځ که په ګرمي کې وی او که په یخنی کې په تاخیرسره اداء کول ئې ښه دی ، خودومره ناوخته نه چې په لمر کې ژړوالی څرګند شی ، اوپه کومه ورځ چې وریځ وی ، په دغه ورځ بیابیړه او تلوارپکاردی چې وختی اداشی. (درمختار) چې د ساعت یاپه بله وسیله د وخت تعین ممکن نه وی .(علم الفقه ص۹ ج ۲ ، هدایه ص۴۹ ج۱ ، کبیری ص۲۴۷ ، کتاب الفقه ص۲۹۱ ج۱)

د ماښام وخت : دماښام وخت له لمر لویدلو څخه پیل بیاترهغه پوری چې د اسمان په څنډوکې د شفق سپین والی وی. (بحرالرائق ، طحطاوی ، حاشیه مراقی الفلاح)

دماښام لمونځ د وخت له پیل کیدلو سره سم اداءکول مستحب دی . هغه وخت چې ستوری په ښه توګه پرآسمان راښکاره شی. د لمانځهٔ

اداء کول مکروه دی. مګر په کومه ورځ چې وریځ وی ، که تاخیر وشی ترڅو د وخت د نه داخلیدو احتمال ختم شی ، او یقین شی چې ماښام داخل دی ، نو بیا تاخیر (ځنډول) مستحب کار دی.

د ماښام وخت بالکل د سهار بالعکس دی ، هغه داچې په سهار کې لومړی سپیدې (سپین والی) راښکاره کیږی ، بیاوروسته سوروالی راځی. خو په ماښام کې اول سرخی بیا سپین والی راځی. (علم الفقه ص۱۰ ج۲)

**مسئله** : د ماښام د لمانځه وخت له لمرلویدو څخه بیا د شفق ترلویدو پوری دی. (کتاب الفقه ص۲۹۲ ج۱ و هدایه ص۴۹ ج۱ ، شرح نقایه ص ۵۲ ج۱ کبیری ص۲۲۸)

**مسئله** : له لمرلویدو څخه د شفق ترلویدو پوری وخت ، د شفق د سپین والی لویدل مراد دی ، چې اندازه ئي پاو بالا یو ساعت یا له یو څو دقیقو نورهم زیات کیږی. (هدایه ص۷۸ باب المواقیت ، تفصیل امداد الاحکام له ص۴۰۱ څخه تر ص۴۱۶ ج۱)

**مسئله** : ماښام له لمانځه نه پرته په څلور رکعتیز لمونځونو کې د آذان او تکبیر ترمنځ دومره فاصله مستحب ده چې یو څوک خوراک څښاک او یا بل دارنګه کوم ضرورت پوره کړای شی. (الجواب المتین ص۱۱۰ ، میان أصغر حسین رحمة الله تعالی علیه)

د ماښام د لمانځه لپاره که څه وخت وی ، خو مناسب نه ده چې سړی تاخیر (ځنډ) کوي. مګر په روژه مبارکه کې د افطار (روژه ماتی) په وجه تاخیر جائز دی ، هیڅ حرج په کي نشته ځکه چې وخت هم وی ، نو د یو ضروری کار په وجه که څه هم تاخیر وشی ، هیڅ باک نلری.

(ماخوذ ، فتاوی دار العلوم ص۴۵ ج۲ ، بحواله علمګیری ص۱۶ ج۱) - (رفعت قاسمی)



د ماخستن وخت: د ماخستن وخت د شفق ترلری کیدلو وروسته پیل کیږی ، بیا ترڅو چې صبح صادق نه وی راختلی. (بحرالرائق ، فتح القدیر)

**مسئله** : د ماخستن لمونځ د شپې د دریمی برخی نه وروسته او یا نیمی شپې تیریدلو نه مخکې اداء کول مستحب دی. له هغه نه وروسته مکروه دی. (شامی)

په کومه ورځ کې چې وریځ وی نو په هغه ورځ د ماخستن لمونځ وختی اداکول مستحب دی. (درمختار ، علم الفقه ، ص۱۰ ج۲ ، هدایه ص۵۱ ج۱ ، شرح نقایه ص۵۵ و کتاب الفقه ص۲۹۳ ج۱)

**مسئله** : د ماخستن ترلمانځه وړاندی ویده کیدل ، او ترلمانځه وروسته غیر ضروري خبری او مجلسونه مکروه دی. (شرح نقایه ص۵۵ ج۱)

ځکه چې په همدې وجه د ماخستن او د سهار پرلمانځه اثر غورځول کیږی. (رفعت قاسمی)

د وترو وخت: وتر د ماخستن ترلمانځه وروسته اداء کیږی ، څوک چې د شپې په اخیر کې راپاڅیدلای شی ، نو مستحب داده چې د شپې په آخیر کې وتر اداء کړی ، او که ئی یقین نه وو. چې راپورته کیدای شی نو بیا پکار ده چې د ماخستن ترلمانځه وروسته ئې سمدستی اداء کړی.

(مراقی الفلاح ، درمختار ، علم الفقه ص۱۰ ج۲ ، هدایه ص۵۰ ج۱ ، شرح نقایه ص۵۳ ج۱ کبیری ص۲۲۹).

د وترو وخت د ماخستن د لمانځه وروسته ترصبح صادق پوری شته

د اخترونو وخت :

د اختر د لمانځه وخت له هغه وخته څخه پیل کیږی چې لمر ښه راپورته شی ، او بیا د لمر ترزوال پوری دوام لری ، د لمر د ښه راپورته

کیدا مطلب دادی چې د لمر هغه ژړوالی پرختمیدوشی، او د لمر سترګې ته سړی کتلای نشی، ددې اندازی لپاره فقهاؤ لیکلی چې لمر دیوې نیزې په اندازه راپورته شی.
د اخترلمونځ ژرادا کول مستحب دی.
(مراقی الفلاح شامی، علم الفقه ص۱۰ ج۲ هدایه ص۱۱۹ ج۱، شرح نقایه ص۱۲۸ ج۱)
د جمعی دلمانځه وخت: د جمعی دلمانځه وخت همغه د ماپښین وخت دی. (نمازمسنون ص۵۰۴)
مسئله: د احنافو په نزد د جمعی او اخترونو په لمانځه کې جماعت شرط دی، په تراویح او د جنازی په لمانځه کې کفایی سنت دی. او په نفل لمونځونو کې مطلقا مکروه دی، او د رمضان المبارک د میاشتی نه پرته وتر لمونځ په جماعت سره مکروه دی او داشان که په نفلي لمونځوکي تردرې کسان زیات وی نو جماعت مکروه ذي. (کتاب الفقه ص۶۵۰ ج۱ فتاوی دارالعلوم ص۳۲ ج ۲)
د تفصیل لپاره داحقر مرتب کرده «مسائل تراویح» او مسائل نماز جمعه» وګوری) رفعت.
مکروه وختونه: «۱» د لمر د راختلو مهال، ترهغه وخته پوری چې د لمرژړوالی زائلیږی او سړی ورته کتلای نشی. او داحالت دلمر دیوې نیزې په مقدار پورته کیدو سره حاصلیږي
۲- تیک د غرمی وخت چې لمر زوال نه وی کړی.
۳- په لمر کې د ژړوالی د راپیدا کیدو څخه ترلمر لویدو پوري.
۴- د سهار دلمانځه له اداکولو وروسته ترلمرختو پوري
۵- دمازیګرله لمانځه وروسته ترلمرلویدو پوري
۶- د سهار وخت، پرته له خپلو دوو سنتو د نور لمانځه لپاره مکروه ده



۷- دماښام وخت او دماښام ترلمانځه وړاندی.
۸- کله چې امام خطبی ته پورته شی، که د جمعی خطبه وی، که داختر وی، د نکاح، حج او یا هم د بل شی خطبه وی.
۹- کله چې د فرض لمانځه تکبیر وویل شی، مګر یوازی د سهار سنت که چانه وو اداء کړی او یقین ئي وو چې د جماعت یو رکعت نیولای شی نو بیا سنت کول مکروه نه دی.
۱۰- د اختر ترلمانځه وړاندی وخت مکروه دی، که په کورکې وی او که په عیدګاه کې.
۱۱- د اختر دلمونځونو وروسته په عیدګاه کې لمونځ اداء کول مکروه دی.
۱۲- په عرفه کې دمازیګر او ماپښین ترمنځ او یا له هغوی وروسته وخت.
۱۳- په مزدلفه کې دماښام او ماخستن ترمنځ او یا له هغوی وروسته.
۱۴- کله چې د لمانځه وخت ډیر لنډ او تنګ شی، پرته د خپل وخت له فرضو نه، نور لمونځونه مکروه دی. که څه هم قضاء ئي واجب الترتیب وی.
۱۵- د غټیا وړوبولو او یا خروج ریح د ضرورت په وخت کې لمونځ مکروه دی.
۱۶- د ډوډی ترتیاریدلو وروسته، که دهغه طبیعت ډوډۍ ته کیده او ګمان ئی داوو چې که ترمخه لمونځ اداء کړی، بیائي ډوډۍ ته زړه نه کیږي. او داحکم په ټولو هغو شیانو کې چې صورت ئي داوی؛

یعنی د لمانځه تر ادا ینی وروسته ئي او طبیعت ځینی ماتیږي ، مګر که وخت کم وی نو بیا لمونځ مکروه نه ، بلکه ضروری دی. (طحطاوی)

۱۷ - له نیمی شپی وروسته د ماخستن لمونځ کول.

۱۸ - کله چې ستوری په اسمان کې ډیر راځرګند شي ، بیا د ماښام لمونځ کول مکروه دی.

په دغو پورتنیو ټولو وختونو کې لمونځ مکروه دی ، مګر د دومره خبره ده چې په لومړی ، دوهم ، دریم ، پنځلسم شپاړسم وختونو کې ټول لمونځونه مکروه دی. فرض وی که نفل. که واجب ، سجده تلاوت یا سجده سهو هرډول لمونځ پکې کراهیت لري.

په او دریو وختونو کې که لمونځ شروع هم شي ؛ باطل دی. شروع ئي ناسمه ده. که چیری سرې لمونځ پیل کړی وی. له دی وختونو یو وربانډی را ورسیږی ، لمونځ ئي باطلیږي. لیکن شپږ شیان داسی دی چې د هغوی شروع په دی وختونو کې هم صحیح ده.

۱ - د جنازی لمونځ ، په دی شرط چې جنازه په همدې دریو وختونو کې راوړله شوی وی.

۲ - د تلاوت سجده: په دی شرط چې د سجدی آیة په همدی دریو وختونو کې تلاوت شوی وی.

۳ - د هغی ورځی د مازیګر لمونځ.

۴ - نفل لمونځ.

۵ - هغه لمونځ چې نذر کړل شوی وی ، خو نذر ئي په همدی دریو وختونو کې یو وخت شوی وی.



۶ - د هغه لمانځه قضاء چې په دغو دریو وختونو کې فاسد شوی وي . یعنی شروع ئي مخکی شوی وی بیا دا وخت وربانډی رارسیدلی وی

د جنازې دلمانځه شروع بې له کراهته صحي بلکه افضل ده.

او د تلاوت د سجدی شروع د تنزیهی کراهت سره سره صحت لری.

او د نورو پاتی دریو شروع کول له کراهت تحریمی سره صحی ده.

مګر دا چې هغوی باطل کړل شي بیا یې په صحیح وخت کې را ګرځول ، واجب دی ، په دوو وختونو کې صرف د لمونځو اداء کول مکروه دی. او په پاتی نورو کې یوازی نوافل اداء کول مکروه دی ، فرض او واجب اداء کیدلای شي. د دوو وختونو لمونځ پریوه ځای اداء کول صحي نه دی. مګر په دوو وختو کې: یو په عرفات کې د ماپښین او مازیګر لمونځ د ماپښین په وخت کې. (۲) په مزدلفه کې د ماښام او ماخستن لمونځ په ماخستن کې. (شامی ، علم الفقه ص۱۲ ج۲ ، هدایه ص۵۳ ج۱ ، شرح نقایه ص۵۷ ج۱ ، کبیری ص۲۲۸ ، کتاب الفقه ص۲۹۶ ج۱)

**مسئله** : که پرچاباندی د سهار په لمانځه کې لمر راوخیژی ، لمونځ ئي فاسد شو او قضا بې هغه وخت راوړی چې لمر بښه یعنی یوه نیزه راپورته شي ، ژروالی ئي ورک شي. (فتاوی دارالعلوم ص۴۷ ج۴ ، ردالمحتار ص۳۴۶ ج۱ کتاب الصلوة)

**مسئله** : د مازیګر لمونځ که چیری پوره آدا نشی ، یعنی د لمانځه په شروع کې پرسرې لمر ولویږی ، نو لمونځ دی پسی پوره کړې ، صحت لری. مګر قصداً به داسی نه کوی. چې داګناه ده.

(فتاوی دارالعلوم ص۳۲ ج۲ بحواله هدایه ص۲۸ ج۱ کتاب الصلوة)

داځکه چې په حدیث شریف کې راځي چې د طلوع او غروب (لمرختو او لویدو) په وخت کې کافران د لمر عبادة کوي، نو په دې وختونو کې باید لمونځ اداء نشي (مشکوة ص۹۲ ج۱)

## د ځو مصطلحو الفاظو معنی

(۱) د لمر زوال، یعنی لمر چې کله د آسمان بلکل پر نیمایي ودریږي ؛ چې هغې ته استواء الشمس ویل کیږي، اوس که له دې ځایه یعنی د آسمان له نیمائي ځخه د غروب پر لورې لږ وخوځیږي ؛ نو دې ته زوال افتاب ویل کیږي.

۲- اصلي سایه. دا د شئ هغه سایه ده چې د زوال په وخت کې ئې ولري. دا سایه د هر ښار په اعتبار مختلفه وي، په یو ځای کې لږ زیاته په بل کې کمه او په ځینو کې خو بیخي اصلي سایه وجود نلري. لکه په مکه مکرمه او مدینه منوره کې. د زوال او اصلي سایې د پیژندلو لپاره اسانه تدبیر او لاره چاره دا ده چې یوه سیده لکړه په هواره ځمکه کې وو هله سی، بیا چې ترکومه ځایه د هغې لکړې سایه ورسیده ؛ پر هغه ځای باندې یوه نښه ودروله شي. بیا وکتل شي چې دا سایه نوره کمیږي او که زیاتیږي، که چیرې پر ځای ولاړه وي نو پوهه شه چې غرمه یعنی د استواء وخت دی. او که چیرې د دانښې سایه له خپلې اصلي سایې ځخه د لویدیز پر لور روانه ده نو زوال شوی دی او که د ختیځ طرفته میلان لري نو پوه شه چې زوال نه دی سوی.

۳- یو مثل، د هر شئ له اصلي سایې ځخه علاوه که ئې نوره سایه د هغې خپلې سایې په اندازه برابره شوه، نو دې ته مثل وائي.



۴- دوه چنده: هغه زیاته سایه چې د اصلي سایې ځخه علاوه دوه برابره شي.

۵- مدرک: هغه سړی ته ویل کیږي چې په امام پسې په ټولو رکعتونو کې شریک وي. چې دې ته مقتدی او مؤتم هم ویل کیږي.

۶- مسبوق: هغه چاته ویل کیږي چې یو رکعت یا زیات جماعت ورځینی تیر شوي وي اه هغه وروسته په جماعت کې شریک شي.

۷- لاحق: هغه چاته ویل کیږي چې له امام سره په لمانځه کې شریک شوی وي له شرکته وروسته بیا ټول رکعتونه او یا یو ځو رکعتونه د ځه عذر په وجه ورځینی تیر شي.

عمل کثیر: په لمانځه کې هغه فعل (کار) ته ویل کیږي چې یو بل سړی په دې نه پوهیږي چې د غه کس لمونځ کوي که بل ځه، او نور لمونځ کوونکي ئې ټول ځان ته متوجه کړي وي، هغه که په دواړو لاسونو عمل کوي او یا هم بل اندام. یو تعریف ئې دا هم دی: چې په لمانځه کې هغه کار چې په دواړو لاسونو ترسره شي لکه لنګوټه تړل او یا داسې بل شی، دې ته عمل کثیر ویل کیږي.

۹- عمل قلیل: هغه فعل چې لمونځ کوونکي ئې پخپل ذهن ډیر ونه ګڼي

۱۰- اداء: هغه لمونځ چې پر خپل وخت اداء شي.

۱۱- قضاء: هغه لمونځ چې پرو خت ونشي، بیا وروسته اداء شي، مثلا د ماپښین لمونځ، مازیګر راو ګرځول شي. (علم الفقه ص۶ تر۸ پوری ج دویم).

## د جماعت (جمع) بیان

ځرنګه چې په جماعت سره لمونځ اداء کول واجب یا سنت مؤکد دي، نو له همدې وجې د هغه ذکر د لمانځه د واجباتو او سنتو ځخه وروسته او له مکروهاتو او نورو ځخه وړاندې مناسب دی.

جماعت لږترلږه له دوو سړیو څخه جوړیږي یعني دا چې کم ترکمه دوه سړي یو ځای په یوه امام پسې لمونځ اداء کړي. همدا راز که دوه تنه وي، یو متبوع یعني امام او بل تابع یعني مقتدي شي، لمونځ اداء کړي، د دوی لمونځ هم صحیح او جماعت ورته ویل کیږي، دغه تابع یعني مقتدي که نروي، یا ښځه، غلام وي یا آزاد. او که نابالغ ماشوم وي، مګر د جمعې او نورو لمونځونو کې له امام نه پرته دوه سړي ضروري دي، تردې کم جماعت نه صحي کیږي. (بحرالرائق، درمختار، شامي، د تفصیل لپاره - مکمل او مدلل مسائل نماز جمعه وګورئ)

د جماعت د صحت لپاره دا هم ضروري نه ده چې فرض لمونځ به وي، بلکې که نفل وي هم دوه نفره په همدې شکل چې یو تابع او بل متبوع شي، اداء کړي، نو جماعت کیږي، نو که دوی دواړه (امام مقتدي) نفل کوي او که یوازې مقتدي نفل کوي. (شامي، علم الفقه ص ۶۳ ج ۲ کتاب الفقه ص ۶۴۹ ج ۱)

مګر د احنافو په نزد نفل لمونځ په جماعت سره د دوو درو افرادو جائز دي، خوکه تردرې تنه زیات وي بیا مکروه تحریمي دي. (رفعت قاسمي غفرله)

## د جماعت لنډ فضائل

د جماعت د فضیلت په باره کې دومره شمېر صحیح احادیث وارد شوي چې که سره یو ځای کړل شي نو ډېر ستر کتاب تري جوړیدای شي، نو دومره احادیثو ته په پام سره دا نتیجه ترلاسه کیږي چې یقینا جماعت د لمانځه د تکمیل لپاره یو اهم شرط دی، نبي کریم ﷺ هیڅکله جماعت پرې اینښی نه دی، ان تردې چې د ناروغی په حالت



کې چې مسجد ته د تګ توان یې نه درلود؛ نو د دوو تنو په مرسته ئې ترمسجده ځان رساوو او په جماعت ئې لمونځ اداء کړ. تارک الجماعة د نبي کریم ﷺ ډېر بد ایسیده حتی چې زړه ئې غوښتل تارک الجماعة سړي ته ډېره سخترینه سزا ورکړي. په دې کې شک نشته چې په محمدي شریعت کې د جماعت ډېر زیات اهتمام شوېدی چې پکار هم همدا دی، ځکه چې د لمانځه غوندې عظیم الشان عبادت همدا تقاضا ده چې د مکمل ئې هم په همغه شان اهتمام وشي (یعنې هغه چې لمونځ ورباندې کامليږي) جماعة.

۱- نبي کریم ﷺ فرمایي چې: د جماعة لمونځ ترتنها لمانځه ۲۷ درجې زیات ثواب او اجر لري. (صحیح بخاري، مسلم)

۲- آنحضرت ﷺ فرمایي چې: تریوازې لمانځه له یوه سړي سره لمونځ کول بهتر دي، او له دوو سړیو سره یو ځای اداء کول بیا نور بهتر دي، او څومره چې جماعت زیاتیږي هغومره د الله تعالی په نزد قدر پیدا کوي. (ابوداؤد)

۳- نبي کریم ﷺ فرمایي: څومره وخت چې د لمانځه په انتظار کې تیریږي، هغه ټول په لمانځه کې شمیرل کیږي. (صحیح بخاري)

د ډېرو احنافو په نزد جماعت مؤکد سنت دی. خو د واجب په حکم کې ده. حقیقت دا دی چې دا دواړه قولونه درست دي.

(علم الفقه ص ۷۴ ج ۲ مظاهر حق ص ۵۲ ج ۲، حجة الله البالغة ص ۲۹۴)

۴- نبي کریم ﷺ فرمایي: جماعت پرېښودل ترک کړئ (یعنې د جماعة لمونځ مه پرېږدئ) کنه نو الله ﷻ پرزړونو مهر لګوي او تاسې

به له هغوی څخه وګرځي چې خدای پاک غافل ګرځولی دی. (ابن ماجه معرب ص ٢٦٠ ج ١)

٥- آنحضرت ﷺ په يو حديث کې فرمايي: زما زړه غواړي چې ځوانانو ته حکم وکړم چې لرګي راټول کړئ، بيا زه هلته ورشم، هغه څوک چې له عذره پرته په کورکې لمونځ اداء کوي؛ هغوی سره د کورني له خلکو وسوځم. (ابوداؤد شريف ص٨٨ ج١)

تاسو فکر وکړئ، دهغه چالپاره چې لمونځ کوي خو مسجد ته نه حاضريږي؛ نبی کريم ﷺ په اورکې د سوځولو خبره کړې، نو دهغه سړي چې بيخي لمونځ نه کوي سزا به ئې څه وي؟ او څومره ستر ګناهکار به وي

(فتاوی رحيميه ص٢١٢ ج١)

په مخکينيو زمانو کې يو ستر بزرګ عالم د جماعة په تيريدلو دومره غمجن کيده چې تر ٧ اوه ورځو پورې به ئې ماتم او غمرازي کوله، او که تکبير اولی به ځيني فوت شو، نو درې ورځې به ئې غم او ماتم کاوه.

(احياء العلوم ص١٥١ ج١)

له همدې کبله پر مسلمانانو لازمه ده چې پنځه وخته لمونځ په جماعة سره اداء کړي او د تکبير اولی ثواب ترک نکړي. (فتاوی رحيميه ص٢١٣ ج١)

## د جماعة نظام ولی مينځ ته راغلی؟

رسول کريم ﷺ پر هر مسلمان چې ناروغي او يا يو بل شرعي عذر ونلري؛ دا لازمه کړي چې په جماعة سره لمونځ اداء کړي. په دې کې



يو خاص حکمت او راز پروت دی. هغه دا چې په دې توګه د امت وګړي هره ورځ بلکه په ورځ کې پنځه ځله د هغوی احتساب وی. مشاهده، تجربه او پوهه يې زياتيږي. د جماعة د دې نظام په وجه ډېر هغه خلګ چې پخپلو انفرادي کارونو کې پابندي نشي کولای. د پنځه وخته لمانځه پابندي په هغه کې دا کمزوري له مينځه وړي. پردې برسيره د امت د وګړو لپاره دا جماعة يو داسې نظام دی چې د هغوی ډېرې ګټې او فائدې پکې نغښتې دي او د بل په حال احوال خبريدلای شي د روغ ناروغ پوښتنه کولای شي، ترمنځ ئې اتحاد او اتفاق ټينګيږي. همدارنګه جماعة يوه هغه وسيله ده چې بندګان تر بل هرځای د الله تعالی قربت حاصلولای شي. او توجه الی الله هلته ډيره زياته وي، چې په نتيجه کې الله تعالی رحمتونه وربانديء نازلوي او زړونه ئې د خدای په عبادة سره ژوندي کيږي، او داسې نورې ډېرې بې شميره ګټې پکښې خوندي دي. چې شمير ئې ګران کار دی. همدارنګه د جماعة په برکت سړی له فرښتو سره يوځای کيدای شي چې نبی کريم ﷺ په ډېرو احاديثو کې فرمايلي چې په جماعة کې د خلکو ترڅنګ فرښتې هم برخه اخلي نو دا نيکمرغي صرف د همدې نظام برکت دی.

پردې برسيره د جماعة د نظام په برکت په امت کې يو اجتماعيت ټولنيز ژوند پيدا کيدلای شي. د سيمې (محلې) د چم او ګاونډ خلګ په ورځ کې پنځه ځله سره يوځای کيږي په هره جمعه کې يو ځل ډېر خلک د جمعې لمانځه لپاره سره يوځای کيږي، او په کال کې خو دوه ځله د اخترونو په لمونځونو کې غټې اجتماعګانې جوړيږي او تر

تولو بیا ستره اجتماع د حج ده چې په دې تولو کې مسلمان یو د بل سره د اخوت او وروولۍ اظهار کوی او ترمنځ ئې ډیرې معاملې سره حل او فصل کیږی، یو د بل په حال سره خبریږی، یو له بل سره د خوښۍ او خپګان تولی پیښی شریکوی. ترمنځ ئې دیني محبت او ایماني اخوة راپیدا کیږی، چې دا د اسلامي شریعت ستر هدف دی او په قرآنکریم او احادیثو کې ئې ځای پرځای تاکید او فضیلت ذکر شوی. (مظاهر حق ص ۵۲ ج ۲)

## د جماعة د وجوب شرطونه

۱- اسلام. پر کافرانو باندی جماعة واجب نه دی.

۲- نارینه به وی. پر ښځو باندی جماعة واجب نه دی. (بحرالرائق درمختار)

۳- بلوغ. پر نابالغو ماشومانو جماعة واجب نه دی. (بحرالرائق)

۴- عقل. پر لیونی، بیهوښه، مست باندی جماعة واجب نه دی. (بحرالرائق، درمختار)

۵- آزاد. پر غلام باندی جماعة نشته.

۶- بی عذره. د شرعي عذر په حالت کې پر سړی جماعة واجب نه دی. خو که ئې اداء کړی؛ بهتر کار دی. په نه اداء کولو سره د جماعة له ثوابه محروم کرځی. (شامی)

## د جماعة د پریښودلو ۱۵ عذرونه دي.

۱- د لمانځه د صحت له شرطونو څخه د یوه نه موجودیت، لکه طهارت، یا سترالعورة...



۲- تیزباران. (که څه هم په دې وخت کې مسجد ته نه تلل جائز دی؛ مګر بهتره داده چې مسجد ته ولاړشي لمونځ په جماعة سره اداء کړی -- رفعت قاسمی)

۳- ډیره زیاته یخنی. په لاره کې ختې او یا بل دغسی مانع چې د غورځیدلو، یا ناروغ کیدلو او یائې د اضافه کیدلو ویره وي.

۴- مسجد ته په تللو کې د مال او سامان د غلا کیدلو خوف موجود وی.

۵- مسجد ته په لاره کې د دښمن د مخامخ کیدلو خطره وي.

۶- مسجد ته په تلو کې دا احتمال وي چې کوم قرضدار (پوروړی) به د رسره مخ شي په داسې حال کې چې پر قرض ورکولو قدرت نلری، که ئې قدرت وو نو بیا ظالم بلل کیږي.

۷- ډیره تیاره وي. لاره نښي لیدل کیدای.

۸- شپه وي او سخت باد او طوفان وي.

۹- د مریض په حفاظت او خدمت مصروف وي، په تګ سره ئې ناروغ ته تکلیف رسیږی، (بل څوک هم غمخوار نه وي)

۱۰- خواړه تیار وي، سړي وږي وي و لمانځه ته په تللو سره ئې اشتها ختمیږی یا یې په لمانځه کې د طبیعت د نه لګیدو ویره وی.

۱۱- د پیشاب اثرات راښکاره شي.

۱۲- د سفر اراده ئې وي، او په جماعة سره وربانديې ناوخته کیږی او قافله ورځینی روانیږی. (د اورګاډي او موټر مسئله باید پردې قیاس نکړل شي ولی که ډیره مجبوري نه وي، نو په بل کې هم تلای شي)

Scanned with CamScanner

۱۳- د فقه او دين د نورو کتابونو په لوستلو او تدريس کي مصروف وي ، تردې چې هيڅ فرصت ورته نه پيدا کيږي. په دې شرط چې کله ناکله بې له قصده جماعة ورځيني پاتي کيږي.

۱۴- يوه داسي ناروغي وي چې لـه امله ئي سرې تـګ راتـګ نشي کولای ، اويا روند وي. (علم الفقه ص۸۲ ج۲، کتاب الفقه ص۶۸۴ ج۱، فتاوى دار العلوم ص۸۵ ج۳، درمختار ص۲۸۸ ج۱)

**مسئله:** پرهرعاقل بالغ غيرمعذور باندي جماعت واجب دي کـه يو سړی معذور وي يعنی داسی عذر ورته پيښ وي چي دهغه له وجې مسجد ته ولاړ نشي او په جماعت کي ګډون نشي کولای پرده باندي جماعت واجب نه دي فقهاء کرامو د جماعت پريښودلو دا عذرونه بيان کړي دي .(مظاهر حق ص۵۲ ج۲)

## د جماعة احکام

جماعة د جمعي او اخترانو په لمونځونو کي شرط دی. (بحر، درمختار)

جماعة د پنځه وخته لمونځونو لپاره واجب دی ، که په کور کي اداء شي ، اويا په مسجد کي ، په دې شرط چې کوم عذر ونلري ، او د جماعة د پريښودلو ۱۵ عذرونه دی چي مخکي ذکر شول.

جماعة په تراويح کي سنت مؤکد دی کـه څه هم يو قرآنکريم لـه جماعة سره پوره شو. او د کسوف د لمانځه لپاره هم جماعة مستحب دی. (بحر الرائق)

د روژې مبارکې په مياشت کې د وترو لمونځ په جماعة سره مستحب دی . له روژې پرته په جماعة سره وتر کول مکروه دی ، خوشرط پکې داده چې په مواظبت (پابندۍ) سره وشي ، که



مواظبت نه وي ، بلکې کله ناکله ، دوه درې تنه سره يو ځای شي ، په جماعة سره وتر اداء کړي ، نو دا مکروه نه دی. (د تفصيل لپاره مکمل و مدلل مسائل تراويح باب الوتر وګورئ)

## د خسوف په لمانځه کې جماعة

(يعني چې سپوږمۍ تندرونيسي) او په نورو نوافلو کې جماعة کول مکروه تحريمي دی.

په دې شرط چې د فرض لمانځه غوندی اهتمام ئي وشي. يعنی آذان و اقامت ورته وشي او خلک په څه ترتيب سره راغونډ کړل شي ، او که دغسی په ناڅاپي ډول دوه درې تنه يا زيات سره را يو ځای شي د خوف لمونځ يا نور نوافل په جماعت سره اداء شي نو څه حرج نشته.

## په مسجد کې دوهمه جمع (جماعة)

کله چې په مسجد کې جماعة اداء شي ، بيا د هغه فرض د اداء کولو لپاره دويم جماعة تحريمي مکروه دی ، مګر په دې لاندينو څلورو شرطونو:

۱- مسجد د کلي يا محلي وي. پرعامه لويه لاره نه وي. ۲- اول جماعة د آذان او اقامة په لوړ آواز سره اداشوی وی. ۳- لومړی جماعة هغو خلکو کړی وی چې د دغی سيمی او محلې اوسيدونکې وی. او د مسجد واک او اختيار ئي په ولکه کې وی.

۴- دوهم جماعة هم په همغه شکل چې اول جماعة شوی وی ؛ اداء شي. يعني آذان اقامت وشي ، امام بيا هم په محراب کې ودريږي ، او داسي نور که چيرې په دې څلورو شرطونو کې يو ونه موندلای شي مثلا مسجد د محلي او يا کلي نه وي پرلويه لاره وي ، نو دويم جماعة

نه بلکې دریم څلورم جماعة هم مکروه نه دی. دا راز دا نور شرطونه دروا خله. (ردالمختار، علم الفقه ص۹۰-۹۱ ج۲)

**مسئله**: د کعبې شریفې په دننه او دباندې خواو شاکې او پرنورو لوړوځایونو او یاخپله د کعبې پرسطح لمونځ صحیح دی. البته د کعبې پربام باندې لمونځ د بې ادبۍ په وجه مکروه دی. (کتاب الفقه ص۳۲۶ ج۱)

**مسئله**: که چیرې یو مقتدي له امام سره د لمانځه په هره برخه کې شریک شي. جماعة ئي پیدا کړ، که څه هم په اخیره قعده (ناسته) کې وي، یعنی ترسلام ګرځولو مخکې ئي په امام پسې تحریمه وویله. که څه هم دولاړې موقع پیدا نکړي، مګر هغه ثواب چې په تکبیر اولی کې ورته وي؛ هغه نشي موندلای، د مطلق جماعة ثواب ئي پیدا کړ. (کتاب الفقه ص۲۹۸ ج۱)

**مسئله**: دغه سړی چې تراول سلام مخکې له امام سره ګډ شوی وی، جماعة خوئي پیدا کړ. مګر که تکبیر اولی ووائي، بیا ټیټ شي په امام پسې د رکوع تکبیر هم ووائي، امام لاله رکوع پورته شوی نه وی دی په رکوع کې ورسره شریک شي. نو دغه سړي بیا رکعت هم پیدا کړ، خو که دی تکبیر ووائي امام را پورته شي له دغه رکعت تیر دی. (کتاب الفقه ص۲۰۹ ج۱)

## جماعة د لاس ته راوړلو طریقه

۱- که د یو سړي کره مسجد ته نژدې وي، دې مسجد ته داسې وخت ورسیږي چې جماعة تیرشوی وي؛ نو کوشش دې وکړي چې بل مسجد ته د جمع په نیت ولاړ شي چې دا مستحب کار دی. او دائي هم



خوښه ده چې بیرته کورته راشي. د کور خلک سره را ټول کړي، په جماعة لمونځ اداء کړي. (شامي وغیره)

۲- که یو سړي په خپل کور کې فرض لمونځ اداء کړي، بیا وروسته پوه شي چې همدا فرض هاغه دی په جماعة سره اداء کیږي؛ نو دې دی ورسره شریک شي. په دې شرط چې د سهار، مازیګر، ماښام لمونځ نه وي، ځکه چې سهار او مازیګر کې ترفرضو وروسته نفل نشته. او د ده دا په جماعة کې شریک لمونځ نفل ګرځي. خپل فرض ئي تنها اداء شویدی. او د ماښام له فرضو وروسته که څه هم نفل کیدای شي خو فرض ئي بیا دری رکعته دی، چې نفل خو دری رکعته نشته. (شرح وقایه وغیره)

۳- که چیرې یو سړي خپل فرض لمونځ شروع کړی او پرځنګ ئي جماعة ودریږي نودی به سمدستي خپل لمونځ پریږدي او په جماعة کې به ګډیږي، په دې شرط که چیرې د سهار لمونځ وو، او ده د دوهم رکعت سجده نه وه کړې، او یا د بل وخت لمونځ وو، او ده د دریم رکعت سجده نه وه کړې، که ئي دا کړي وو نو بیا پکار دا ده چې لمونځ پوره کړي، سلام وګرځوي. له دې وروسته که جماعة پاتې وو او د ماپښین یا ماخستن وخت و، نو په جماعت کې دې ورسره شریک شي. که د مازیګر، ماښام، یا ماخستن لمونځ و، نو موړی صرف د اول یا دوهم رکعت سجده هم کړې وه نو لمونځ به باطله وي نه، دوه رکعته به پوره کوي بیا به سلام ګرځوي. (علم الفقه ص۹۸ ج۲)

**مسئله**: که څه هم په هغه مسجد کې چې خلک ډیر جمع کیږي، لمونځ زیات ثواب لري. خو د کلي یا محلي مسجد د سړي لپاره ترهغه

مسجد چې خلک په کې ډیروی ؛ افضل دی ، ځکه چې دغه مسجد پرسړی حق لري یعنی پرهغه چا چې ددې ځای اوسیدونکې وی. نو پکارده چې د مسجد حق اداء کړی یعنی لمونځ په بل مسجد کې نه بلکې پخپل مسجد کې وکړی. (فتاوی محمودیه ص۱۰۵ ج۱۴)

## په پابندۍ سره د لمانځه د اداء کولو طریقه

سړی دی په دی خبروکې فکروکړی چې د تارک الصلوة لپاره ځومره وعیدونه ذکرشویدی. رسول الله چې دغه سړی ته چې لمونځ نه کوی ؛ کافر ویلی دی (که څه هم په تأویل سره وی) او د دغه سړی به ځای دوزخ وی، له فرعون ، قارون ، هامان اونورو کافرانو سره به راپاځیږی ، د قیامت په ورځ به لومړی پوښتنه د لمانځه کیږی. د دوزخ د حالاتو په باره کې دی لوستل او اوریدل پیل کړی نو انشاء الله د لمانځه سره د بی پروایی عادت به ختم سی ، او له دی بد مرغی ناروغۍ څخه به وژغورل شی.

۲- د لمانځه د قضاء کیدلو په وجه دی پرځان یوه اندازه چې نه ډیرکم وی او نه ډیرزیات (مالی جرمانه ) مقرره کړی. چې کله لمونځ ورځینی پاتی شی ، نو هغه جرمانه دی پرغریبانو ویشی ، او د اصورت له سنت سره بالکل موافق دی ، او یادی پرځان بدنی جرمانه وټاکې ، چې که لمونځ ورځینی پاتی شی نو دی به نور شل رکعاته نفل اداء کوی. یاداچې د یوه لمانځه په قضاء کیدلو سره به د یوه وخت خوراک ځنباک پریږدی ، د دوو وختونو پروخت به دوه وخته خوراک پریږدی ،او داسی نور ... څرنگه چې دایوگران کاردی پرنفس



باندی. نو ان شاء الله چې په همدی توګه به ئې ناروغی ورکه شی.
(اغلاط العوام ص۶۶)

## لمونځ باید په څنګه خولۍ کې اداء شی؟

**مسئله** : کومه خولۍ چې یو سړی پرسرکوی اوله هغی خولۍ سره د مشرانو خلکو په غونډواو مجلسوکې ګډون کوی ، نو له همغی خولۍ سره لمونځ اداء کول او جماعة ورکول جائز دی.

**مسئله** : د ځرمنی خولۍ پرسرکول او د ځرمنی شی اغوستل مباح دی او لمونځ پکښنی روادی.

**مسئله** : په مساجدو کې چې کومی خولۍ پرتې وي ، هغه که ښه صفا او سپیځلي وي ، نو لمونځ ورسره کول جائز دی. خوکه زړې ، ځیري اوخیرني وي نو بیادرست کارنه دی. ځکه چې یو سړی په نورو وختونو کې دا ډول خولۍ پرسر د ځان عیب ګڼي او پری شرمیږی ، نود احکم الحاکمین ذات په دربارکې په همدې خولۍ او لباس کې دریدل لویه بی ادبي ده.

**مسئله** : له موزو سره لمونځ اداء کول صحیح دی. (آپ کی مسائل ص۳۱۱ ج۳)
که په موزو کې پونډۍ پټې وی نو هیڅ حرج نشته. (رفعت قاسمی)

**مسئله** : د کاغذ څخه جوړه شوی خولۍ باندی لمونځ اداء کول صحیح دی خو په دې شرط لکه مخکې چې وویل شول. په همدې خولۍ کې په بازار اونورو ځایونو کې له پرسر کولو څخه د شرم احتمال نه وی. کنه بیامکروه دی. (فتاوی دارالعلوم قدیم ص۵۷ ج۱)

**مسئله** : دستمال ، روی مال او دې ورته بل شی پرخولۍ باندی تړل مکروه نه ، بلکې د بګړی حکم لري. تړونکی یې مستحق ثواب دی. (فتاوی دارالعلوم ص۹۵ ج۴)

**مسئله** : په خولۍ باندې امامت ورکول هیڅ ډول کراهت نلري. البته لنګۍ ته ترل ، بیالمونځ ورکول افضل او بهتر کار دی. مګر په خولۍ هم صحت لري. (فتاوى دارالعلوم ص٩٧ ج٤ غنية المستملى ص٣٣٧)

**مسئله** : که د پګړۍ ول د سجدې په حالت کې پرتندي راشي او تندی بیاهم پرځمکه لګیدلای شي ، نو باک نلري سجدهٔ صحي ده. که چیرې تندی ځمکې ته نه پریږدي نو بیاسجده نه اداء کیږي ، (یعني په داسې ډول چې له ځمکې سره تندی هیڅ ډول تماس نشي پیداکولای. هسې خو هاغه دی پربل کالي هم تندی لګیږي ، خو تماس ئې ځمکې ته رسیږي ) . (کبیری ص٢٨٧)

**مسئله** : جالۍ لرونکې خولۍ وي یعنې په خولۍ کې داسې سوري وي چې سرترې ښکاره کیږي ؛ نوداکراهت نلري ، لمونځ صحي دی. (فتاوی محمودیه ص٢٥٩ ج١٠)

**مسئله** : که څوک پوځي خولۍ پرسرکړي لمونځ ورسره صحي دی ، په جامه او خولۍ کې کوم خاص طرز شرط نه دی. بلکې د هرملک او سیمې د خلکو چې کوم ډول عادت او رواج وي ، دهغوی مطابق لباس اغوستل اولمونځ کول درست دی. په حدیث شریف کې راځي: څه چې دې زړه غواړي ، خوره او اغونده مګر له حرامو ځان ساته اوتکبر او اسراف مه کوه. (البته پرفوجي خولۍ یانورلباس که دژوندي شي تصویر وي ؛ بیاجواز نلري. (فتاوى دارالعلوم ص١٠٢ ج٤.)

**مسئله** : له جالۍ داري خولۍ سره لمونځ مکروه نه دی ، د نارینه وو هغه جامه چې سوري لري هم صحیح دی ، خو په دې شرط چې د کشف العورة احتمال ئې نه وي.



یعنې هغه حصه (سترالعورة په هرصورت ضروري دی) باید پټه وي. مطلب نو له جالۍ داري جامې سره لمونځ کول جائز دی.
(فتاوى دارالعلوم ص١٢٨ ج٤)

**مسئله**: د عاجزۍ پخاطر لڅ سرلمونځ کول هیڅ کراهت نلري.
(فتاوى دارالعلوم ص٩٢ ج٤ ردالمحتار ص٥٩٩)

**مسئله** : له خولۍ پرته لڅ سر که دسستۍ په وجه وي ، نو لمونځ مکروه تنزیهي دی. که خولۍ نلري او یائې عجز اوانکساري مطلب وي ، نوهیڅ حرج نشته. (نماز مسنون ص٢٢٩ ، بهشتی زیور ص٦٦ ج١ ، عالمگیری ص١٠٥ ج١)

**مسئله**: که په لمانځه کې له سرې څخه خولۍ وغورځي څه به کوي ؟ د رکوع او قیام په حالت کې غورځیدلې خولۍ راپورته کول بیاپرسر کول جائز نه دي. عمل کثیر ګڼل کیږي. چې هغه لمونځ فاسده وي. البته د سجدې په حالت کې که له سر سره نژدې لویدلې وي او په دې حالت کې پرسرشي نو دا عمل قلیل بلل کیږي. مثلاً په یوه لاس خولۍ را اوچته شي ، دا صحیح ده بلکې افضل ده. لمونځ نه خرابیږي. (فتاوى رحيميه ص٣٧٨ ج٢ ، شامى ص ٦٠٠ ج١ ، كبيرى ص٤١٩ )

**مسئله** : له کرتې یاقمیص پرته یوازې بنیان ، صدرۍ او داسې بل شي سره د نارینه وو لپاره لمونځ صحت لري ، په دې شرط چې له نامه ترځنګنو پورې برخه ئې لڅه نه وي. (نماز مسنون ص١٦٨)

**مسئله**: دلمانځه په وخت کې که چا جبه (چپنه) اغوستې وي ، لاسونه به له لستونو څخه باسي د ننه به ئې په چپنه کې نه نغاړي چې دامکروه دي. (فتاوى دارالعلوم ص١٢٣ ج٤ بحواله رد المحتار ص٥٩٨ ج١ )

**مسئله:** که چاغلاشوي جامې په قیمت واخیستي، لمونځ پکښې درست دي خو قصداً به د غلاجامې نه اخلي، مناسب نه دي چې سړی لمونځ پکښې اداکړي خو که بیا هم لمونځ ورسره وشي؛ څه حرج نشته
(فتاوی دارالعلوم ص۳۶ ج۴، ردالمحتار ص۱۸۰ ج۱)

**مسئله:** د رشوت په جامو کې لمونځ اداکیدلای شي، خو له کراهت سره. یعنی هغه سړی ګناه کار دی چې په حرام شي کې لمونځ کوي.
(فتاوی دارالعلوم ص۴۸ ج۴، بحواله ردالمحتار ص۲۹۲ ج۱)

**مسئله:** که په لمانځه کې د نارینه ګریوان خلاص وي، لمونځ نه مکروه کیږي. (فتاوی محمودیه ص۲۷۸ ج۱۰ شامي ص۴۳۰ ج۱، امداد الفتاوی ص۴۳۲ ج۱)

**مسئله:** د نصاراوو کارول شوي (مستعمل شوي) جامې سره لمونځ جائز بلل شوي دي. پرته له ازار او پرتوګ څخه چې په غالب ګمان هغه اکثرا مردار وي. نو د ټولو جامو پریمنځل ښه احتیاط دی، ولې د ازار او پرتوګ پریولل اشد ضروري دي: (فتاوی دارالعلوم ص۱۲۶ ج۴، شامي ۳۲۴ ج۱)

**مسئله:** په هغه جامه کې چې تصویر (انځور) وي، که د ذی روح (ژوندي) شئ وي، بیا لمونځ نه صحیح کیږي او که د غیر ذی روح وي، بیا لمونځ صحیح دی. (فتاوی دارالعلوم ص۱۳۷ ج۱ ردالمحتار ص۶۰۵ ج۱)

**مسئله:** په خیرنو جامو کې لمونځ صحیح دی، په دې شرط چې پاکې وي. (فتاوی دارالعلوم ص۱۳۹ ج۴ ردمحتار ص۵۹۹ ج۱)

**مسئله:** روپۍ، نوټ او پوستي کارډ باندی اکثرا تصویروی؛ له هغه سره لمونځ اداکیدای شي، صحت لري، چې په جیب کې وي او لمونځ ورسره وشي. (فتاوی رحیمیه ص۱۸۴ ج۴، بخواله ردمحتار ص۶۰۷ ج۱)



**مسئله:** ترځنګلو پورته لستوڼي پورته کول، یاداسې کمیس او دریشي اغوستل چې لستوڼي ئې لنډ وي یعنی ترځنګلو پورته وي، لمونځ ورسره مکروه دی، که د اوداسه په وخت کې لستوڼي پورته شوي وي، دې په بیړه په جماعة کې شرکت وکړي. لستوڼي ئې هیرشي، نو ورو ورو دې په لمانځه کې په یوه لاس راکښته کړي. په دواړو لاسونو نه، چې بیاعمل کثیر ګرځي او لمونځ فاسد یږي. او داهم باید په یاد ولرو چې د ګرمۍ په موسم کې ځینی خلک د ګرمۍ په وجه لستوڼي پورته کوي او دا عمل کثیر دی، لمونځ فاسدیږي، له دې څخه اجتناب او پرهیز پکار دی.

**مسئله:** د پیسو نوټ، پاسپورټ، تذکره، ویزه او داسې نور... پردی باندی تصویرونه شته، د مجبورۍ او اضطراري حالت په وجه، ګناه یوازې پر هغه چا ده چې دا کارئي کړی، استعمالوونکي ته څه باک نلري. (شرح نقایه ص۱۹۶ ج۱، کبیری ص۳۵۴)

**مسئله:** که څنګلی خلاصي وي، لمونځ له کراهته سره اداء کیږي که چېرې د پټیدلو لپاره جامه موجوده وي. که نه وي، بیا بی له کراهته صحت لري. (فتاوی دارالعلوم ص۱۰۰ ج۴، عالمګیری ص۱۰ ج۱)

**مسئله:** که په جیب کې د رشوت پیسې وي، لمونځ ورسره صحی دی. او کراهت هم ځکه نه لري چې درشوت ګناه جدا ده، او که چیری د رشوت (حرام مال) په پیسو د بدن لپاره جامې جوړې شوي وي. نو په دې سره لمونځ مکروه دی. لکه څرنګه چې په مغصوبه ځمکه کې لمونځ مکروه دی. (فتاوی دارالعلوم ص۱۰۲ ج۴، ردالمحتار ص۳۸۴ ج۱)

**مسئله:** په کوټ، کورتۍ، دریشۍ کې لمونځ صحی دی، که پاک وي. (فتاوی دارالعلوم ص۳۴ ج۲ بخواله ردالمحتار ص۲۷۲ ج۱)

**مسئله**: د وریښمو جامه اوسره په دې خاطر چې استعمال ئي د نارینه وو لپاره په هرحالت کې حرام دی ؛ نولمونځ ورسره صحی نه دی. مګر داچې هغوی ناپاک نه دی ، نو که لمونځ ورسره وشی ؛ اداکیږی.

(فتاوی دارالعلوم ص ۱۴۷ ، ج ۴ ،الاشباه ص ۱۹۷ ج ۱)

**مسئله**: په نویو جامو کې چې له بازاره راوړلي شی ؛ لمونځ پکښنی جائز دی ، بی له پریمنځلو هم. (فتاوی دارالعلوم ص ۱۳۲ ج ۲ بحواله الاشباه والنظائر ص ۷۵)

**مسئله**: تمباکو که چیری پخپله ناپاک نه وی اویاناپاک شی پکښې کې نه وی. لمونځ ورسره صحیح دی. (فتاوی دارالعلوم ص ۱۰۷ ج ۱)

**مسئله**: مذی ، نجس دی ، پرکوم کالی یابدن چې ولګیږی ، هغه نجس دی ، لمونځ ورسره صحت نلری. اود یوه درهم یاکم په دوی کې هم معاف دي، خو پریمنځل ئي په هر صورت بهتر کار دی.

(فتاوی دارالعلوم ص ۱۳۳ ج ۲ بحواله ردالمختار ص ۱۹۱ ج ۱)

**مسئله**: په لمانځه کې که پایڅې یانوره جامه ترپونډیو لاندی وځړیږی ، نو لمونځ ورسره مکروه دی ، اوله ثواب څخه محروم ګرځي ، له لمانځه پرته هم پونډی لوڅول ضروری دی ، په حدیث کې د داسی سړي لپاره سخت وعید ذکر شوی دی. فتاوی دارالعلوم ص ۱۰۵ ج ۴ ردالمحتار ص ۵۹۸ ، فتاوی رحیمیه ص ۲۸۲ ج ۲)

**مسئله**: په لمانځه کې په وار وار پرتوګ پورته کول ښه کارنه دی ، لمونځ صحیح دی. (فتاوی دارالعلوم ص ۱۰۸ ج ۴ ، هدایه ۱۲۴ ج ۱)

**مسئله**: ځینی خلک په لمانځه کې سجدې ته د تګ پروخت ، پرتوګ پورته کشوی ، اوله سجدې څخه چې راپورته شی ، د خپل قمیص د شالمن کښته کشوی ، دا ډول حرکت یقیناچې مکروه دی. خودا هم



لیری نه ده چې فعل کثیر وګرځی او لمونځ فاسد شی. نو پرهیز ورځینی لازم دی. (فتاوی رحیمیه ص ۳۷۹ ج ۴)

اتفاقا که کله داسی وشی ، څه باک نلری ، خو عادت ګرځول غلط کار دی .(رفعت قاسمی)

**مسئله**: د لمانځه په حالت کې کرته (قمیص) دریشي ، خولۍ اوداسی بل شئ ... که په لمانځه کې وایستل شی او بیا بیرته په لمانځه کې واغوستل شی ؛ که په عمل قلیل سره وی یعنی ډیرکار ونه غواړی په یوه لاس ترسره شی او څوک دا ګمان ونکړی چې دی په لمانځه کې دی ، کنه ؟ نو بیاصحت لری . اوکه په عمل کثیر سره وشی ، نو مکروه ده. او ښکاره خبره ده ، چې دغه شیان په عمل قلیل سره نه اغوستل کیږی ، نو ځان ساتل ځینی پکاردی .

(فتاوی دارالعلوم ص ۱۰۰ ج ۴ ، ردالمحتار ص ۵۸۳)

**مسئله**: که په یوه لاس باندی نه کیږی ، نو په لمانځه دي سلام وګرځوي ، دغه شیان دي واغوندی اوبیادې په لمانځه کې شریک شی. (فتاوی دارالعلوم ص ۲ ج ۴)

**مسئله**: که په لمانځه کې د چا پای زار په پښو وی ؛ لمونځ یې صحیح دی ، خو په دې شرط چې نجاست وربانډی نه وي لګیدلی ، که پرلګیدلی هم وی ، نو صاف کړل شوی وی ، په دې دواړو صورتو کې لمونځ ورسره صحیح دی ، مګر داچې په اوس زمانو کې په جماتونو کې فرشونه ، قالینی ، او کمپلی هواري وی ، له پای زار سره ورتلل د هغه د خرابیدو احتمال زیات وی اوپه عین حال کې بی ادبي هم ښکاری. نو ښه دا ده چې لمونځ ورسره اداء نه کړی. (فتاوی دارالعلوم ص ۱۱۰ ج ۴ رد المحتار ص ۶۱۵ ج ۱ باب احکام المساجد)

بیاهم د مسجد د احترام په وجه نبا
مسئله: که پای زار پاک هم وی ، نو هلته تر
کارنه دی په عیدګاه کې که پروښو اوشکو لمونځ کیږی ،
سع ده کیدای شی ، مګر احتیاطا دفتنې د مخنیوي په خاطر که هلته
هم په پښه نشی ؛ ښه به وی. (فتاوی محمودیه ص۶۷ ج۱۳)

## په لمانځه کې پړ یړه او جامه لاس تیرول ؟

پوښتنه : امام صاحب دلمانځه له شروع کیدلو وروسته پرخپله ږیره
، مخ او کالیو باندی لاس تیروی ؛ د دې حکم څه دي ؟
جواب : امام ته پکاردی چې له دا ډول ناکاره حرکتونو څخه ځا
وساتی ، دا پرکراهت برسیره عمل کثیرته هم نژدی کیږی چې لمونځ
فاسدوی ، او خپل او د مقتدیانو لمونځونه ورخرابوی . .
(فتاوی رحیمیه ص۲۷۴ ج۴ کبیری ص۳۳۷).
مسئله: لمونځ په خشوع او خضوع سره اداء کول پکاردی ، غلط
حرکات کول مکروه تحریمی دی ، بلکه فساد ته نژدی کیږی.
(فتاوی رحیمیه ص۲۹۰ ج۷، اغلاط العلوم ص

## په لمانځه کې د سرو او سپینو استعمال

مسئله: دنارینه وو لپاره په لمانځه او هربل وخت کې د سرو او سپینو
استعمال ناجائز دی ، یوازې د څلورماشو په اندازه د سپینو ګوتې
ګوته کول جائز دی. خوسره په هرصورت حرام دي ، له سرو او سپینو
څخه جوړشوي زیورات او سیکې که په جیب کې وی ، او لمونځ
ورسره وشی ، څه باک نلری ، روادی. همدارنګه که د لاس په ساعت
(ګړی) کې یو دیا دوې پرزې د سپینو وی او نوره وسپنه وی ، نو څه
حرج نشته. (فتاوی رحیمیه ص۱۸۴ ج۱ ، آپ کی مسائل ص۲۱۰ ج۳)



سوال: که یو سړی پخپل کورکې لمونځ کوی او ترڅنګ ئې نژدې ناپاک کالی پروت وی ، د رکوع او سجدې په حالت کې که ئې دا ناپاکه جامه د بدن له یوې برخې سره ولګیږی ، نو لمونځ صحت لري که نه ؟

جواب: که چیری دغه ناپاک کالی تردومره وخته د ده له بدن سره نښتی وي ، چې یو رکن اداء کیږی ، نو لمونځ نه صحیح کیږی ، خو که له بدن سره ولګیږی او فوزا جلاشی ، بیا لمونځ صحت لري.
(فتاوی محمودیه ص۲۰۵ ج۲)

**مسئله**: پای زار که د لمونځ کوونکې په مخ کې پراته وی ، لمونځ صحیح دی ، خوپکار داده چې پای زار د باندی له نجاست او خاورو څخه پاک شی او بیا مسجد ته راوړل شی. (آپ کی مسائل ص۱۸۳ ج۳)

**مسئله**: هغه څوک چې په روغتون کې ملازمت یا وظیفه لري ، د کارپروخت چې ئې کومې جامې اغوستي وي ، پرهغوی طبعا ناپاکي لګیږی ، د لمانځه لپاره به هغه جامې بدلوی ، نورې به اغوندی. (فتاوی دارالعلوم ص۱۴۱ ج۲ ردالمحتار ص۳۷۳ ج۱)

## دمقتدي او امام په اړه مسائل

۱- مقتدیانو ته پکارده چې په ټولو حاضرو خلکو کې چې د امامت لپاره څوک ښه مناسب وی ، هغه د لمانځه لپاره مخته کړی. که چېرې ډیرداسې وګړي حاضر وی چې هغوی د امامت لپاره مناسب وي ؛ نو دې بیا هغه سړی چې د ډیرو رایه ورته متوجه وی ؛ امام کړی. که داسې ونکړی یعنی مناسب سړی موجود وی خودوی نالائق مخکې کړی ، نودائې سنت ترک کړل چې دا ګناه ده.

ترتولو وړاو مناسب سړی دامامت لپاره هغه څوک دی چې د لمانځه په مسائلو ښه پوهیږی او مسنون قرائت وریادوی په دې شرط چې ظاهرا کوم فسق یافساد پکښې نه وی.

۲- بیاهغه سړی چې قرآن کریم ښه تلاوت کولای شی، یعنی په ښه آواز او د تجوید د قواعدو سره سم.

۳- بیاهغه تن چې ښه پرهیزګار اومتقی وی.

۴- بیاهغه شخص چې ښه اخلاق ولری.

۵- بیاهغه شخص چې عمرئې لوړ وی.

۶- بیاهغه نفر چې ښه جوړ، روغ او ښائسته وي.

۷- بیاهغه سړی چې ښه جامه ئې په تن وی.

۸- بیاهغه سړی چې سر ئې غټ وی.

۹- بیاهغه تن چې د سفرکوونکو په نسبت زیات مقیم وی.

۱۰- بیاهغه شخص چې له اصله آزاد وی.

۱۱- بیا هغه څوک چې له حدث أصغر څخه ئې تیمم کړی وی. د هغه چاپه پرتله چې له حدث اکبر څخه ئې تیمم وهلی وی. په کوم سړی کې چې دوه صفته پیداشی؛ هغه زیات مستحق دی. ترهغه چې یووصف پکښې وی. مثلا هغه سړی چې د لمانځه په مسائلو هم ښه پوهیږی او قرآن هم تلاوت کولاشی زیات مستحق دی ترهغه چې د لمانځه په مسائلو پوهیږي خو قرآن نشی سم لوستلای.

۱۲- کله چاپه کورکې جماعت کیږی نو مستحق دامامت کور والاوی، وروسته بیاهغه څوک چې دوی تول ئې خوښ کړی، په دې



شرط چې کوروالا بیخی جاهل نه وی، یعنی دلمانځه په یوه مسئله هم نه پوهیږي. (درمختار، شامی اونور ...)

په کوم جوماتکې چې د مسجد امام موجود وی، بل چاته د امامت حق نشته، خو که خپله دغه امام بل څوک مخکې کړی. بیاڅه باک نشته.

۱۳- دخلکو له خوښې پرته هغوی ته امامت ورکول، مکروه تحریمی دی، مګرکه د امامت د استحقاق او صاف پکښې ډیر وی، په بل چاکې نه وی. نو بیاڅه کراهت نلری. دقاضي اوباچاپه حضورکي بل څوک دامامت مستحق نه دي (درمختار وغیره...)

۱۴- د فاسق او بدعتی امامت مکروه تحریمی دی، خوکه چیری خدانخواسته له دوی پرته بل داسی څوک پیدانشی چې امامت وکړای شی، نوبیاڅه باک نلري. (درمختار، شامی او نور...)

فاسق هغه څوک دی چې د مناهیو مرتکب شی، یعنی هغه اعمال ترسره کوی چې په شریعت کې منع وی. لکه شراب، چغلی، غیبت اوداسی نور... بدعتی هغه چاته ویل کیږی چې یو داسی فعل چې په قرآن، حدیث، اجماع او قیاس کې ئې هیڅ اصل وجود نلری؛ خودی دغه فعل عبادت ګڼی او عمل په کوی. د فاسق او بدعتی ترمنځ توپیر صرف دا دی چې فاسق ګناه، ګناه بولی او ترسره کوی ئي. خو بدعتی بیاګناه عبادت بولی او عملی کوی ئي. نوځکه بدعتی ترفاسق بدتردی. او د هغه په امامت کې لمونځ کول زیات کراهت لري

(محمد رفعت قاسمی غفرله)

۱۵ - سارایي (صحرائي) ، غلام (که څه هم آزاد شده وی ) ، ړوند ، شبکور (چې په تیاره کې لیدل نشی کولای ) او ولد الزنا (حرامی ) د دغو اشخاصو امامت مکروه تنزیهی دی ، مګر که چیری دغه خلکو علم او پوهه درلوده ، د خلکو نفرت نه ځینی راته ، نو بیا کراهت نلری . همدارنګه د یو حسین ځوان چې ږیره ئي نه وی راغلی ، او د بی عقل ناپوه امامت مکروه تنزیهی دی. او په هغه چاکې چې یو ډول مرض وی او د خلکو کرکه ځینی کیږی لکه په بدن کې سپین داغونه ، فیس او داسی نور... د هغوی امامت هم مکروه تنزیهی دی.

(درمختار ،علم الفقه ص۹۳ ج ۲ هدایه ص۷۷ ج۱ ، کبیری ص۳۶۵ ، شرح نقایه ص۸۶)

د دې ډول خلکو امامت ځکه مکروه دی ، چې زیاتره غلام ، سارائي ، او حرامي ته د علم دین د تربیت فرصت نه وی ، غلام (مریی) د خپل بادار په خدمت کې مصروف وی ، سارایی ته کوم استاذ په صحراکې نه پیدا کیږی ، ولد الزنا د روزني او تربیت څوک نلری ، پردې برسیره له دې خلکو څخه خلک یو ډول کرکه او نفرت هم کوی. (والله اعلم – رفعت قاسمی غفرله)

۱۶ - د لمانځه فرائضو او واجباتو کې مقتدي ته د امام موافقت کول واجب دی ، مګر په سنتو کې موافقت واجب نه دی. اوس که چیری امام شافعي المذهب وی او رکوع ته د تګ په وخت کې لاسونه پورته کوی ، نو حنفي مقتدي ته لاس پورته کول ضروری نه دی ، ځکه چې د لاسونو پورته کول د هغوی په نزد هم سنت کار دی. همدارازد سهار په لمانځه کې شافعي امام قنوت وائي نو حنفی مقتدی ته نه ده ضرور چې متابعت ئي وکړی مګر په وتروکي دعایي قنوت واجب



دي ، له دې کبله که شافعی له رکوع څخه وروسته دعایي قنوت ووايي د خپل مذهب موافق نو د حنفی مقتدیانو لپاره له رکوع څخه وروسته ویل پکار دي

۱۷ - د امام لپاره په لمانځه کې غټ غټ سورتونه چې ترمقدار سنت هم ورزیات وی ، یا په رکوع او سجده کې ډیر ځنډ کول مکروه تحریمي دی ، له دې نه ځان وژغوریٔ ، بلکی د مقتدیانو د ضرورت او اړتیا خیال وساتئ ، په دوی کې چې څومره ضعیف وی د هغه مراعت دی وکړئ.

حتی چې د ډیر ضرورت په وخت کې ترمسنون مقدار هم کم قرائت ولولی ؛ بهتره ده. ترڅو پر خلکو بوج نشی او د جماعة د لړوالی باعث ونه ګرځي. (علم الفقه ص۹۳ ج۱ ، بخاری ص۹۷ ، مسلم ص۱۸۸ ج۱)

په حدیث شریف کې راځي چې امام ته ډیر تخفیف او آسانی کول پکار ده. حضرت معاذ بن جبل رض یو ځل نبی کریم ﷺ ډیر تهدید کړ ځکه چې په لمانځه کې ئي غټ غټ سورتونه ویل او د خلکو خیال ئی نه ساته ، یو ځل نبی کریم ﷺ د یوه ماشوم چیغی واوریدلی ، سمدستي ئي د سهار په لمانځه کې صرف معوذتین (قل أعوذ برب الفلق او قل أعوذ برب الناس) باندی اکتفاء وکړه. چې د هغه ماشوم مور په لمانځه کې وه. (حاشیه علم الفقه ص۹۳ ج۲)

## آیا په امامت کې د نسب خیال ساتل ضروری دی ؟

**مسئله** : په امامت کې د نسب او ذات خیال ساتل ضروری نه دی. افضلیت مهم دی. د دې لپاره چې په جماعة کې کمی رانشی او خلک ونه شیندل شی ؛ لمونځ کوونکو ته پکار ده چې څوک په دوی

کې افضل وی هغه د امامت مستحق دی ، امام دي کړي ، ترڅو لمونځ په ښه طریقه سره اداء شی ، نو که د داسې یو قوم عالم چې خلک د اقوم ذلیل ګڼی او دا علم د علم او تقوا په لحاظ تر ټولو ښه او لوړ وی ، په همدې خاطر ئې خلک ادب او احترام کوی ، نو بیشکه هغه د امامت مستحق دی ، باید امام ئې کړی. هیڅ ډول کراهت د قوم او نسب په وجه نلری ، مګر که خپله د ده اخلاق ناسم وی بیا لمونځ وریسې مکروه دی.

د سم سړي په امامت کې بله ګټه دا ده چې خلک ورسره رغبت کوی او په جماعة کې زیات ګډون کوی. او افضل امام هغه دی چې په شرعي احکامو تر هرچا ښه خبر وی ، قرآن مجید په قرائت او تجوید لوستلای شی ، متقی وی ، صحیح العقیده وی ، د ښه نسب او کورنی غړی وی. ښکلی او ښائسته وی ، ښه اخلاق ولری ، بدن او جامې ئې ښه سپیڅلی وی ، د ده په وجه خلک جماعة کې د ګډون لپاره زړه ښه کوی. (فتاوی رحیمیه ص۲۸ ج۳ بحواله شرح نقایه ص۸۶ ج۱) تکمیل الایمان ص۷۸)

**مسئله** : که چیرې په یوه جومات کې دوه امامان مقرر وی ، ترڅو یو نیمی خلکو ته لمونځ ورکړی او دا بل امام بیا نورو پاتی خلګو ته لمونځ ورکړی ، نو دا صحیح نه دی. مکروه عمل دی. او که د دې په خاطر وی چې کله دا یو امام ضرورت ولری ، نو دا بل لمونځ ورکړی بیا هیڅ باک نلری. (فتاوی دارالعلوم ص۳۶۹ ج۲ ، عالمګیری ص۵۱ ج۱)

**مسئله**: ځینی وخت په ځینو جماتونو کې امامان داسې وی چې په خپل لمونځ هم نه پوهیږی ، خو خلکو امام کړی وی او لمونځونه همیشه د ټولو فاسدوی ، نو په دې ګناه کې نه یوازې امام صاحب



بلکې د مسجد هغه خلک هم راګډ دي چې د امام په انتخابولو کې اختیار لری ، صرف یاد څه خپلوی او یاد لړو پیسو او یا بله ناجائزه وجه باندې یې هغه مخته کړی وی. (اغلاط العوام ص۶۹)

په داسې حال کې چې د خپلو دنیوی کارونو لپاره خو داسې سړی تلاش کوی چې ډیر تکړه او بااستعداده وی او په هرکار پوهیږی ، خو د خدای په وړاندې چې د دوی ټولو په ضمانت الله تعالی ته رسیږی ، هغه داسې سړی ګوری چې په څه نه پوهیږي ، چې دا یوه لویه ګناه او د خدای په وړاندې ستره بی ادبی ده. (محمد رفعت قاسمی غفرله)

## مسبوق امام کیدلای نشی

**مسئله**: د امامت د صحت له شرطونو څخه یو دا ده چې یو سړی په امام پسې په اخیری رکعت یا ناسته کې شریک شی ، د امام له سلام ګرځولو وروسته دې خپل پاتی رکعتونه یا لمونځ پوره کوي ، بل سړی له دباندې راشی په دغه سړي پسې اقتداء وکړی نو دا اقتداء او لمونځ ئې صحت نلری. ځکه یو سړی په یوه لمانځه کې امام او مقتدی نشی کیدلای. دغه دریم سړی به خپل لمونځ جدا کوی. مطلب دا چې په مسبوق پسې اقتداء قطعا نه صحیح کیږی که د یوه رکعت مسبوق وی ، که د ډیرو ، مګر دومره کیدلای شی ، چې یو سړی وروسته راشی ، د ډیر ازدحام په وجه په اخیری صف کې ودریږی او د امام په هیڅ حرکت او آواز نه خبریږی ، نو دی د بل کوم څنګ لوری مقتدی حرکت ته ګوری او خپل لمونځ ته دوام ورکوی ، خو دا داسې نه ده چې دا اقتداء په نیت ده. که د اقتداء په نیت وی لمونځ ئې خراب دی. (کتاب الفقه ص۶۵۹ ج۱).

سوال :... که چیری په کوم ښارکې جماتونه ډیر خو لمونځ کوونکي کم وی ؛ په هرمسجد کې خلک د امام د مقررولو توان نلری ، نوکه د دغو مساجدو ټول یا یو څه خلک سره یو ځای شی ، نور مساجد بندکړی او یو مسجد آباد کړی دا به څنګه وی ؟

جواب :... بهتره خو دا ده چې ترخپله وسه ټول جوماتونه آباد وساتل شی ، که څه هم خلک یکې لږلږ وی ، خو د مجبوری په صورت کې داسی کولای شی ، څه باک نشته .(فتاوی دارالعلوم ص۶۷ ج۳ بحواله ردمحتار ص۶۱۷ ج۱ باب المساجد)

**مسئله** : که چیری مقتدی پروخت مسجد ته را ونه رسیږي نو امام ته یکار دی چې ترآذان او اقامت وروسته تنها خپل لمونځ اداء کړی ، دجماعة ثواب ده ته رسیږی او د هغه مسجد حق اداء کیږی ، د ترک جماعة ګناه دمقتدي ده.

**مسـ ـه** : په کوم مسجد کې چې آذان وشی ، نو په همغه مسجد کې لمونځ آداء کول یکاردی ، بل مسجد ته به نه ځی. (فتاوی دارالعلوم ص۳۳ ج۳)

## مسجد ته د داخلیدلو پروخت سلام اچول

**مسئله** : که په مسجد کې خلک په لمانځه ، وظیفه ، تلاوت او نورڅه مشغول نه وو ، نو سلام واچوئ ، اوکه مصروف وو یا څوک بیخی موجود نه وو ، نو چې کله داخلیږئ مسجد ته په دې ټکو سلام وو ایاست: «السلام علینا من ربنا وعلی عباد الله الصالحین» (فتاوی عالمګیری ج۵)

اوکه ځینی فارغ ناست وو او له هغو مشغولو خلکو څخه دومره لیری وو ، چې په سلام اچولو یا د هغوی په ځوابولو سره نوروته کوم تکلیف نه رسیدی ، نو د سلام اچولو اجازه شته ، کنه نو نشته.

(فتاوی رحیمیه ص۲۱۳ ج۲)



## مسجد ته د ننوتلو او وتلو پروخت دعاء

آنحضرت ﷺ فرمایی: له تاسو نه چې کوم یو مسجد ته ننوزي نو دا دعاء دې لولی «اَللّٰهُمَّ افْتَحْ لِی اَبْوَابَ رَحْمَتِکَ مِنْ فَضْلِکَ»

او چې کله له جمات څخه راوزئ نو دا دعاء وایاست: «اَللّٰهُمَّ اِنِّی اَسْئَلُکَ مِنْ فَضْلِکَ »(مظاهر حق ص۶۰۲ ج۱)

**مسئله**: په حدیث شریف کې راغلی چې نبی کریم ﷺ تهدیدا وفرمایل چې : ماداسی اراده کړی ، کوم خلک چې جمات ته دلمانځه لپاره نه راځي دهغوی کورونوته اور واچوم ، ولی د ښځو اوماشومانو په وجه مې داسی ونکړل. له دې نه معلومیږی چې اوس اور وراچول روانه دی ، ځکه چې نبی کریم ﷺ ذاکار کړی نه دی.

نو د جماعة پریښودلو که قصدا مواظبت کوی بلاعذر ، دا ګناه کبیره او د فسق موجب ګرځي .مګر که یو یادوه ځله داسی وشی ، ګناه کبیره نه ده . (فتاوی دارالعلوم ص۵۸ ج۳ . بحواله مشکوة ص۹۵ ج۱ ، ردالمحتار ص۵۱۵ ج۱ باب الامامت)

**مسئله**: له یو شرعي عذره پرته پرکور لمونځ کول او مسجد ته نه تلل ډیره ستره محرومي او د اسلام د ستر شعار پریښودل دی. په حدیث شریف کې د دې لپاره سخت وعید ذکر شویدی. په یو حدیث کې د هغه لمونځ ناقابل اعتبار بلل سوی دی.

(فتاوی محمودیه ص۱۸۶ ج۲ بحواله ابوداؤد شریف ص۸۱ ج۱)

## له امام سره د دښمنۍ په وجه جماعة پریښودل

**پوښتنه** : یو مؤذن چې له امام سره څه دښمنی او خفګان لری ، له همدې وجې ئې په هغه پسی لمونځ پري ایښی. نو د ده خپل لمونځ جدا صحت لری کنه او آذان ئي مکروه دی که څنګه ؟

جواب :...: د غه د جماعة د پریښودلو لپاره قطعا غلط او بې بنیاده ده. د جماعة پریښودل عادت ګرځول یو فسق دی، او د فاسق آذان مکروه دی. اعاده (راګرځول) ئې مستحب ده. (فتاوی دارالعلوم ص۴۵ ج۲ بحواله شامی ص۳۶۵ ج۱)

(که څه هم د ده هغه لمونځ چې جدائي کوي، بې له جماعة جائز دی، مګر د جماعة له ثواب څخه محروم ګرځي، او د جماعة د پریښودلو ګناه بیله ده. (رفعت)

**مسئله**: د فقهي په کتابونو کې راځي، که چیرې امام کوم قصور ونلري، نو د مقتدیانو ناخوښي کوم اغیزنلري، د امام لمونځ بې له شکه صحت لري، ګناه صرف پر مقتدي ده، او که امام قصور او نقصان ولري، او مقتدي په همدې وجه ځینې ناراضه وي، نو بیا مواخذه پر امام ده، او د ده امامت مکروه دی. او د حدیث مورد هم (من تقدم قوما....) که چیرې د غه امام وي چې خلل او نقصان پکښې وي، که نو مقتدي ګناهکار دي چې ناحقه ناراضه دي.

(فتاوی دارالعلوم ص۱۰۳ ج۳ بحواله ردالمحتار ص۵۲۴ ج۱.)

## لمونځ ماتول په کوم وخت کې جائز دی؟

د لمانځه ماتول کله حرام، کله مستحب، کله واجب او کله بیا مباح وي. که داسې کوم عذر نه وي، نو بیائي ماتول حرام دی. او په جماعت کې د ګډون پخاطر مستحب دی. او که کله مال دضائع کیدو په حال کې وي؛ نو د لمانځه ماتول مباح دی، او د ځان دژغورلو په وجه واجب دی. (درمختار ص۶۴۹ ج۱)



پوښتنه:...: د محلې په مسجد کې که د لمانځه پوره نظم او ترتیب نه وي نو په بل لیرې مسجد کې د جماعة لمونځ اداء کول څنګه دي؟

جواب: د خپل مسجد حق د نورو په پرتله زیات دی نو بهتري ته پکار نه ده چې خپل مسجد پرېږدي او بل مسجد ته ولاړ شي، په شامي کې راغلي چې که سړي تنها هم شي، نو د غه سړي دې آذان وکړي او پخپل مسجد کې دې لمونځ اداء کړي، بل مسجد ته دې نه ځي. «لانِ له حقا علیه فهو یؤدیه». (فتاوی دارالعلوم ص۳۲ ج۳ بحواله ردمحتار ص۶۱۷ ج۱)

که چیرې ئې د خپل مسجد د ورانیدلو خطره نه وي، بیا بل مسجد ته په تګ کې څه حرج نشته. (رفعت)

**مسئله**: که دوه مسجدونه یوځای وو، نو په دانژدې مسجد کې لمونځ اداء کول پکار دی. چې دانژدې جمات پرده حق لري. او ثواب هم په دې کې زیات دی. (فتاوی دارالعلوم ص۱۵۱ ج۴، بحواله ردالمحتار ص۶۱۷ ج۱، کتاب الفقه ص۴۶۲ ج۱)

## که پخپل مسجد کې له یو سړي نه جماعة تیر شي؛ څه به کوي؟

**مسئله**: که په یوه مسجد کې له سړي څخه جماعة تیرشوی وي، او امید لري چې په بل جماعة کې ئې موندلای شي، نو پکار ده چې هغه بل جماعة ته ولاړ شي، او جماعة اداء کړي، چې داموجب د ثواب ګرځي، د امت مخکنیو بزرګانو به همداسې کول چې په یوه جومات کې به جماعة ځینې تیر شوی و، نو په بل جومات کې به ئې تلاش کاوه. (فتاوی دارالعلوم ص۶۵ ج۲ بحواله ردالمحتار ص۵۱۸ ج۱، علم الفقه ص۹۸ ج۲ امداد الاحکام ص۵۰۰ ج۱)

مسئله: سړی که مسجد ته ورسید هلته ورته معلوم سو چې جماعة شوی دی. نو واجب نه ده چې بل مسجد ته به سمدستی روانیږی، (مګر که غواړی چې ولاړشی؛ تللای سی. منع نه ده.)

(فتاوی رحیمیه ص۳۲۲ ج۴، بحواله مسائل ارکان ص۵۵ آپ کی مسائل ص۲۲۳ ج۳)

مسئله: که یو شیعه مذهب سړی د سني مسلمانانو په جماعة کې ګډون وکړی؛ او خلکو ته په لمانځه کې کوم خلل او نقصان نه راځي، نو باک نلری، خو په راتلونکي کې به هغه پوه کوی چې یا خو توبه وباسی رافضی به نه وی، سنی کیږی به او یا به د سنیانو په جماعة کې شرکت نه کوی، او هغه به په خپل قبرستان او هدیره کې نه دفن کوئ، (فتاوی دار العلوم ص۶۲ ج۳)

مسئله: شیعه د سنی په مسجد کې او سنی د شیعه په جومات کې لمونځ اداء کولای شی، لمونځ ئي صحت لري.

(فتاوی دار العلوم ص۹۸ ج۴، مشکوة ص۵۱۲ ج۱)

مسئله: د لوبو په میدان کې (لکه فتبال، کرکټ، والیبال او نور...) عامه لاره کوڅه، دلمبیدلو ځای، د اوښانو او نورو عامو ژویو (حیواناتو) د حلالیدلو (مذبح) په ځای کې لمونځ مطلقا مکروه دی. که څه هم له نجاسته پاک وی. (کتاب الفقه ص۲۴۰ ج۱)

## په مسجد کې به په جماعة کې څنګه خلګ اشتراک نه کوی؟

مسئله: کوم سړی چي په راتګ سره ئي د خلګو امن ته تاوان رسیږی، د شر او فساد موجب ګرځی، لمونځ کوونکو ته تکلیف او ایذاء رسان وی، او په جماعة کې راپارونکې اعمال ترسره کوی، نو د اد ول سړی له مسجد څخه منع کول د شریعت د قانون سره سم عمل



دی. په دې اړه د ډېر آثار او احادیث او د فقهاؤ اقوال موجود دي. رسول کریم ﷺ هغه څوک چې خامه اوږه او خام پیاز به ئي خوړلي وو؛ له مسجد څخه منع کړیدی، بلکه ایستلي دی، دا راز نبی کریم ﷺ هغه ښځي چې خوشبو به ئي لګولي وه؛ د فتنې د رامنځ ته کیدو د وېرې له امله؛ له مسجد څخه منع کړیدي، همدارنګه نبی کریم ﷺ هغه چاته چې د لمونځ کوونکي په مخ کې تیریدی او د هغه په خشوع او خضوع کې نقصان رساوه، ویلی دی چې و «دریږه» دغه رنګه آنحضرت ﷺ هغه سړی چې په مسجد کې ئي د قبلې په لوری ناړې تو کړي وي؛ له امامت څخه معزول کړ او هغه ئي د خدای او رسول مؤذی وګانه، فقهاؤ هم دا څرګنده کړی چې د خامو پیازو او خامي وږې خوړونکې او هغه څوک چې له خولې بوی ځي، او فیث سړی جذام، او ماهی خرڅوونکی. لنډه دا چې هر هغه څوک چې مؤذی (ضرر رسونکی) وی که څه هم په ژبه دغه زیان رسوی؛ له جوماته بندول ئي ضروری دی.

(فتاوی دار العلوم ص۵۵ ج۳ بحواله مسلم شریف ص۲۰۹ ج۱ مشکوة شریف ص۹۶ ج۱)

مسئله: هغه څوک چې د خولې مرض لري یعنی اد خولې ئي بوی ځی؛ په جماعة کې دې شرکت نه کوی، جدا دې لمونځ وکړی.

(فتاوی دار العلوم ص۴۲ ج۳ رد المحتار ۶۱۹ ج۱)

مسئله: د جذامی لپاره حکم دادی چې مسجد ته رانشی او په جماعة کې ګډون ونکړی، په کور کې دې یوازې لمونځ وکړی د جماعة د پریښودلو ګناه هم پرده باندی نشته، بلکی په جماعة کې ګډون ئي

مکروه دی. یعنی له ده څخه جماعة او جمعه ساقط دي. او هغه خلک چې له جذامی څخه ځان ساتی هیڅ ملامتی او ګناه ورباندی نشته.

(فتاوی دارالعلوم ص۴۱ ج۳ بحواله ردالمحتار ص۶۱۹ ج۱)

**مسئله**: مجذوم ته پرکور باندی لمونځ کولو کې هم د جماعة ثواب رسیږی، چې هغه په زړه کې د جماعة سره شوق او مینه لري.

(امدادالاحکام ص۵۰۴ ج۱)

**مسئله**: مسلمان حلال خوربنګي، په مسجد کې په جماعة سره لمونځ اداء کولای شی او د مسجد د حوض په اوبو هم اودس کولای شی. (فتاوی دارالعلوم ص۳۸ ج۲)

ولی مسجد ته د راتلو پروخت به دومره خیال ساتی چې پاکې جامې به اغوندی، جسم به پاکوی بدبویی او ناپاکې به ئي نه پر جسم وی او نه پر کالیو، چې د دې ټولو خلکو لپاره ضروری ده. (رفعت)

## له څا څخه چې د جماعة لمونځ تیر شی لمونځ به چیرته کوی؟

پوښتنه: له کوم سړي چې جماعة تیر شوی وي، دی به خپل لمونځ په مسجد کې اداء کوی. که په کورکې، کوم یو بهتردی؟

جواب: که د باندی چیری جماعة کیدلای شی، خو هغه بهتره ده. او که نه نو د فرضو لپاره مسجد تر هرځای افضل دی.

(فتاوی دارالعلوم ص۵۴ ج۳، بحواله ردالمحتار ص۳۶۷ ج۱)

**مسئله**: که کله اتفاقا جماعة په مسجد کې له سړي څخه تیر شی، نو بیا دې په کور کې ماشومان او ښځینه راټول کړی، جماعة دې وکړی، لکه چې په حدیث کې راځی نارینه وو ته په کورکې نه دی پکار چې جماعة وکړی، بلکی مسجد ته به راځي او په جماعة کې به



شرکت کوی، خو که کله ناڅاپه جماعة ورڅخه تیرشی نو بیا کولای شی، کورئي اداکړی په هغه صورت چې ذکر شو، داسی نه چې د مسجد جومات پریږدی او په کورکې جماعة وکړی، داد سنت خلاف دی. (فتاوی دارالعلوم ص۴۴ ج۳ بحواله ردالمحتار ص۵۱۸)

**مسئله**: د هغه چالپاره چې تنها په کوریامکان کې لمونځ کوی، د نژدی مسجد آذان او اقامة ورته کافی دی، مګر کول ئي ورته بهتردی. او د ښځو لپاره مکروه دی. (فتاوی رحیمیه ص۱۶ ج۲، نورالایضاح ص۶۱)

**مسئله**: که یو سړی له امام سره د مخاصمت (دښمنی) په وجه جلا لمونځ کوی په داسی حال کې چې جماعة هم شروع وی؛ نو د دې سړي لمونځ کیږی، خو ګناهکار او فاسق دی.

(فتاوی دارالعلوم ص۵۷ ج۳ بحواله ردمحتار ص۵۱۶ ج۱ باب الامامة)

## یوازی سړی به لمونځ په کور کې کوی که په مسجد کې؟

پوښتنه: زید په مسجد کې یوازی لمونځ کوي او بکر په کورکې یوازی لمونځ کوي. د دوی دوو ترمنځ په ثواب کې څه فرق شته کنه؟

جواب: هغه سړی چې د جماعة لمونځ پریږدی، په کورکې ئي لمونځ عادت وی، او د جماعة پر پریښودلو باندی مصرهم وي، نو دغه سړی فاسق دی. آنحضرت ﷺ فرمایی: که چیری د ماشومانو او ښځو خیال نه وای زا سره نو ما به د هغه چا کورته اور اچولی وو، چې مسجد ته راشی خو لمونځ په جماعة نه کوی، نو دغه سړی چې په مسجد کې تنها لمونځ کوی او د جماعة پروا نه کوی، او یا په کورکې د لمانځه عادي وی.

دغه دواړه فاسق او د حرام کار مرتکب دي. په دوی کې یوه ته دا نشته چې دا د زیات ثواب مستحق دی، یا دا، دواړه ګناهکار دي.
دواړو ته لازمه ده چې د جماعة پابندي وکړي، نه په کور کې یوازې لمونځ وکړي او نه په مسجد کې، او که د مجبوری په وجه اتفاقاً کله جماعة فوت شي نو دا بیا جدا خبره ده.
(فتاوی دارالعلوم) ص۷۱ ج۳ بحواله مشکوة ص۹۷ ج۱ باب الجماعة وغنیته ص۲۷۴)

## په کور کې مستقل جماعة کول

**مسئله:** د همیشه لپاره مسجد پریښودل او په کور کې جماعة کول جائز نه دی، بلکې معصیت دی، او پردی ترک جماعة باندی اصرار کول بیا فسق دی. د داسی سړي شهادة هم بیا نه قبلیږي.
(فتاوی دارالعلوم ص۳۷ ج۳ بحواله ردمحتار ص۵۱۸ ج۱)

## په حرامو پیسو جوړ شوي مسجد کې لمونځ څه حکم لري؟

**مسئله:** د زانیې ښځې جوړ شوی مسجد، د مسجد حکم لري، تردې چې بیا په هغه کې د وارثانو حق منقطع کیږي، د هرچا تصرف پکښې ناجائز او خلاف وقف دی، نه هغه نړولای شي، او نه داسی چې خرچ ئې کړي او قیمت ئې په بل مسجد کې ولګوی لیکن دومره خبره چې په دغه مسجد کې د لمانځه پوره ثواب نه مونډل کیږي، صرف فرض له ذمې څخه ساقطیږي. (امدادالاحکام ص۴۴۱ ج۱)
**مسئله:** په دغه مسجد کې لمونځ کیږي، په کور کې تریوازې لمانځه دلته په جماعت سره لمونځ کول بهتر کار دی. (فتاوی دارالعلوم ص۷۵ ج۳)
**مسئله:** په غصب کړی شوې ځمکه کې لمونځ کیږي، مګر که سړی پوهیږي دا چې دامغصوبه ده او مجبوري هم نه وي نو لمونځ پکې



اداء کول له کراهت څخه خالي نه دی. که له خپل (اصلی مالک څخه اجازه وغوښتله شی، ښه به وی.)
(فتاوی رحیمیه ص۲۷۵ ج۴، عالمګیری ص۶۹ ج۱، طحطاوی ص۲۰۹ ج۱)

## که مسجد لری وي، د جماعة حکم څه دی؟

**مسئله:** که چیری یو بازار د یو میل په اندازه پراخ وی او په دې کې صرف یو مسجد وي نو پر ټولو باندی د جماعت لمونځ سنت مؤکد دی. خو که څوک یو عذر ولری مثلاً، ناروغ وي، باران، ختې، یخنی او داسی نور... څه وي؛ بیا د جماعة پریښودل درست دی، څه باک نلری.
(فتاوی دارالعلوم ص۳۶ ج۳ بحواله عالمګیری ص۷۷ ج۱)

## د افطار (روژه ماتی) په وجه جماعة ځنډول څنګه دی؟

**پوښتنه:** د روژه ماتی پر وخت ځینی خلک ژر ځان فارغ کړي او جمع ودروی، خو ځینی بیا پرخوراک ښاک نورهم وځنډیږی، بیا بل جماعة کوي، دا جماعة څنګه دی؟
**ځواب:** بهتره دا ده چې په لمړي جماعة کې ورسره شریک شی، هلته جمع تیریږي او هلته دوی په خوراک ښاک بوخت وي، داسم کار نه دی «الابضرورة شدیدة» او دا نورو خلکو ته هم پکار ده چې لږ نوره وقفه او انتظار وکړی، جماعة ترهغو پوری ونه دروي، ترڅو دا نور فارغ شی، او په ګډه جماعة وکړي او دا انتظار به دومره هم نه کوي چې وخت مکروه ته ورسیږي. (فتاوی دارالعلوم ص۴۷ ج۳، بحواله عالمګیری ص۵۳ ج۱)
**مسئله:** فقهاء کرامو لیکلي چې کله نا کله دي امام د یو شریر سړي مراعت هم کوی، چې کله د یو فساد او شرارت اندیښنه ځینی وینی.
(فتاوی دارالعلوم ص۶۸ ج۳ بحواله رد المحتار ص۳۷۲ ج۱)

## په کوم مسجد کې چې امام او مؤذن معلوم نه وی

**مسئله** : په داسی مسجد کې چې امام ، مؤذن او جماعة معلوم نه وی ، دویم جماعة پکښی جائز دی.

(فتاوی دارالعلوم ص۵۱ ج ۲ بحواله ، ردالمحتار ص۵۱۶ج ۱ ، فتاوی محمودیه ص۱۰۵ ج۱۴)

**مسئله** : په جومات کې د جماعة له کیدلو وروسته ، په کور ، ځنګل یاصحراء کې په جماعة لمونځ بهتر دی. هلته آذان او تکبیر ویل افضل دی. خو یوازی تکبیر هم کافی دی، که څوک په کور کې لمونځ کوی نو دغه له کورسره د محلی د مسجد آذان وزته کافی دی. که جماعة کوي نو یوازی تکبیر کفایت کوی ، د مسجد په منځ کې حوض ، او یا د جومات بام دا ټول د مسجد په حکم کې دي د او داسه او داسې نور ځایونه چې له مسجده خارج ګڼل کیږی ؛ په هغوی کې دویم جومات درست دی.

(فتاوی دارالعلوم ، ص۵۲ ج ۲ بحواله عالمگیری ص۵۲ج۱ امدادالفتاوی ص۳۶۲ ج۱ امداد الاحکام ص۹۹۷ج۱)

## مسجد ته د ښځو تلل

**مسئله** : په اوسنی زمانه کې ، بلکی له ډیرپخوا څخه د ښځو ګډون په جماعة کې ، په جومات او یا عیدګاه کې ممنوع او مکروه ګڼل شویدی ، د صحابه کرامو رضی الله تعالی عنهم په زمانه کې منع کړل شوي وو . (فتاوی دارالعلوم ص۲۹ ج۳ بحواله مسلم شریف ص۱۸۳ ج۱ باب خروج النساء الی المساجد)

## په کور کې له ښځینه وو سره جماعة کول څنګه دی ؟

**مسئله** : د ښځو جماعة تنها مکروه تحریمي دی ، یعنی داسی چې امام او مقتدی دواړه ښځینه وی ، هغوی دې جماعة نه کوی ، بلکی سړی دې لمونځ ورکوی خو هغه هم پدې صورت کې چې کله اتفاقا



په مسجد کې جماعة تیرشوی وی ، نو په کورکې دې ماشومان او ښځې سره راټول کړي او جمع دې وکړي ، داسی نه چې د مخه جماعة ورته پریږدی ، او پرکورونو ئې شروع کړی ، دا سنت طریقه نه ، بلکه ناوړه طریقه ده ، لکه چې علامه شامی رحمه الله یوه قصه نقل کړی چې یوځل آنحضرت ﷺ یوقوم ته د هغوی د جوړې روغې لپاره ورغلی وو ، چې بیرته راته ؛جماعة ځینی تیرشوی وو ، نو هغه خپل کورته راغی او اهل وعیال ئې راجمع کړل په جماعة سره ئې لمونځ اداء کی ، له دې نه ثابته شوه چې په کورکې جماعة په داسی حالت کې کیدلای شی چې د مسجددا ځینی تیرشوی وی ؛ د څه عذر له امله. (فتاوی دارالعلوم ص۴۲ ج۱ بحواله مشکوة ص۹۵ ج۱ ردالمحتار ص۵۱۸ج۱ )

**مسئله** : میړه او ښځه که پخپل کورکې جدا جدا لمونځ کوي ، هیڅ کراهت نلري، په دې کې دا شرط هم نه دی چې یوه یادوې لویشتې څمکه فاصله به ئې ترمنځ وی. (آپ کی مسائل ص۲۲۲ ج۳)

**مسئله** : له خپلی میرمنې او محرمی ښځي سره په جماعة لمونځ جائز دی هغوی دی شاته و دریږی او محرمی ښځی ته د پردی اړتیا هم نشته ، که چیري ئی جماعة کاوه ، نو ښځه دی برابره نه ورسره دریږي بلکې په یوبل جدا صف کې دی شاته ودریږی . (آپ کی مسائل ص۲۲۸ ج۲) .

## پر هغه مصلی لمونځ کول چې تصویر لری ؟

**مسئله** : پرمصلی که د کعبې مکرمې تصویر وی ، نو پر هغه باندی د لمونځ کولو شرعا هیڅ حرج نشته ، نه پر هغه باندی د کالی اچولو اړتیا شته ، نه د هغه د خرڅولو ضرورت شته ، او په دې سره د کعبې شریفي بی عزتي هم نه راځي ، ځکه چې تصویر د عین شئ حکم نلری

،بل داچې په خانه کعبه کې چې لمونځ کيږی ، نو هلته هم د څمکې لاندی کيدل له پښو څخه د تعظيم منافي نه دہ . (فتاوی محمودیہ ص۱۱۱ ج۲ بحوالہ غنیہ ص۳۱۴)

په جماعة کې صف بندی ضروري ده ، د لمانځه لپاره چې د جمع نظام په دی شکل خاص کړل شوی ؛ د دې لپاره رسول کريم ﷺ دا طريقه ښودلي چې خلک دې صفونه جوړ کړي او يو دې له بل سره برابر او سيده ودريږی ، ښکاره خبره ده چې د لمانځه غوندی ټولنيز عبادة لپاره ، دا ډېره زړه پوری او سنجيده صورت غوره کړل شوی دی. بيائي د هغه د تکميل لپاره آنحضرت ﷺ پردې ډېر تاکيد کړی ، چې صفونه بلکل سيده ودروئ ، نه يو شاته وی او نه مخته ، لومړی دې اول صف پوره کړي او بيا دې دوهم صف شروع کړي.

مشران ،او أهل علم کسان دی په مخکنی صف کې د امام ترڅنګ د دريدلو کوشش کوی ، کشران او ماشومان دې په دوهم او دريم صف کې ودريږی ، او که چيری ښځي په جماعة کې وي ، نو د هغوی صف دې ترټولو وروستنی وی ، امام به د ټولو خلکو نه مخکې او د صفونو پرمنځنی محاذاة دريږی .

حقيقت دادی چې د دې ټولو خبرو هدف د جماعة تکميل او ښه په مؤثره او ګټوره طريقه سره د هغه ترتيبول دی.

انحضرت ﷺ به پخپله هم د دغو شيانو خورازيات اهتمام کاوه او امت ته به ئي هم د هغه تلقين کاوه ، وخت پر وخت به ئي د هغه اهتمام ثوابونه ورته بيانول ، او هغه چاته به ئي دعذاب خبره کوله چې د دې خيال نه ساتی. (معارف الحدیث صفحہ ۲۰۲ جلد۳)



## درکعت د تيريدلو د ويرې په وجه جدا نيت تړل او دريدل

پوښتنه : که امام د رکوع په حالت کې وی ، يو سړی وروسته راشی نو اوس که هغه صف ته ځان رسوی ، رکعت ورځينی تيريږی ، نو دی جلا نيت وتړی او ودريږی ،په دې کې څه حرج شته کنه ؟

جواب : په صف کې د خالی ځای سره سره ، که هغه بل ځای دريږی نو لمونځ ئي مکروه دی. نو صف ته به ځان رسوی که څه هم رکعت ځينی تيرشی ، ځکه د فضيلت د ترلاسه کولو په نسبت له مکروه څخه ځان ساتل بهتر او اولی کار دی. (فتاوی رحیمیه ص۲۰۶ ج۱ کبیری ص۵۷۵)

**مسئله :** په ځينو مساجدو کې کړکی او يا دروازې اکثرا د ښيښو وي او د لمانځه پرمهال د سړي عکس پکې ښکاری ، نو که چيری داعکس د لمونځ کوونکي توجه اړوي ، بيا مکروه دی ، او که ئي په توجه کې د عکس په وجه څه تغير نه راته بيا پروا نلری. (آپ کے مسائل ص۲۱۲ ج۲)

## که په صف کې ځای نه وی وروسته به چيری دريږی ؟

پوښتنه : که په صف کې ځای نه وی نو شاته به پرکوم ځای دريږی ، په منځ کې او که ښي يا کيڼ اړخ ته ؟

جواب : که په صف کې ځای نه وی نو د امام تر رکوع دې انتظار وکړی که بل څوک راپيدا شی ، نو دې په ګډه په امام پسی سيده شاته بل صف جوړ کړی او که څوک رانشی ، نو پخپله دې پرهمدې ځای تنها ودريږي ، صف دی بنا کړی. (فتاوی رحیمیه ص۲۰۶ ج بحواله شامی ص۵۳۱ ج۱ ، امداد الاحکام ص۵۴۲ ج۱)

**مسئله :** ځيني وخت د ځای د تنګی په وجه يو سړی له ديوال سره ډيرنژدې دريږی ، رکوع او سجدې ته د تللو او يا راپورته کيدلو په

وخت کې له دیوال سره لګیږي ؛ نو مجبورا شا و مخ ته لړغونډي حرکت کوي ، چې په دې سره لمونځ نه فاسد یږي. (فتاوی محمودیه ص۲۵۸ ج۱)

## د تجارت یا کاروبار په وجه د جماعة پریښودل

پوښتنه : یو سړی ، تاجر او یا دوکاندار دی ، د جماعة وخت رارسیږي دې خپل کاروبار یوازې پرېښودلای نشي او پر شریک یا ملګري ئې اعتماد نه وي ، که لمانځه ته ولاړ شي ، فکر ئې په کاروبار کې بند وي ، تو جه ئې خرابه وي ، نو د دې سړي لپاره څه حکم دی ؟

جواب : که د نقصان اندیښنه وي او دوکان یا کاروبار ورته بندول ګران کاروي ، نو بیا دې دا سړی پر خپل دوکان لمونځ وکړي.

(فتاوی دار العلوم ص۶۳ ج۳ بحواله ردالمحتار ص۵۱۹ ج۱)

## د تمرین لپاره په ماشومانو جماعة کول

مسئله : که ماشومان د تعلیم لپاره مسجد ته له ځان سره بیول کیږي ، او جماعة باندې وشي ، نو د امام د مصلی او محراب څخه دې لیرې دروي او تکبیر ویل دې ورښیي. (فتاوی محمودیه ص۶۱ ج۳)

## لومړی صف کوم یو دی ؟

پوښتنه : که چیرې د تنګۍ په وجه یو صف لږ وروړاندې کړي ، تردې چې منبر ته ورسیږي ، د منبر په وجه سره پرې شي ، امام ئې ترمنځ شي ، مقتدیان ئې پر یوه او بل څنګ شي ، نو دا اول صف دی . که له دې وروسته صف اول بلل کیږي ، او د ځای د تنګۍ په وجه دا ډول طریقه جوړول سمه ده کنه ؟

جواب : صف اول دا دې چې امام ته نژدې وي ، مؤذن د اقامت لپاره د امام تر شا ودریږي ، له هغه سره چې یو بل اړخ ته کوم مقتدیان ولاړ وي



، هغه ته اول صف ویل کیږي ، نو که د مسجد په خوا وشا صحن (انګړ) کې او یا پرچت (بام) باندې ځای ختم شي ، او یو څه خلک امام ته ډیر نژدې ودرول شي ، نو بلا کراهت درست دی ، په دې شرط چې د ګوتو سرونه ئې د امام له پوندو څخه شاته وي ، دا په هغه صورت کې چې ځای نه وي ، که د ځای باوجود څوک داسې کوي ، نو مکروه تحریمي دی ، ځکه چې مسئله داسې ده چې که مقتدیان تر یوه زیات وي ، نو هرومرو به د امام شاته دریږي ، نو که ۲ مقتدیان وي او امام ئې په منځ کې ولاړ وي ، دا مکروه تنزیهي دی. او که مقتدیان تر ۲ زیات وي او امام ئې په منځ کې ودریږي ، دا مکروه تحریمي دی. (درمختار مع شامي ص۵۳۱ ج۱)

همدارنګه د کراهت یوه بله وجه ئې دا ده چې دا ډول جماعة چې امام د مقتدیانو په منځ کې ولاړ وي ، له ښځو سره مشابهت راځي .

(فتاوی رحیمیه ص۴۳۶ ج۲)

## په زور سره په لومړي صف کې ځان ځایول

مسئله: کله چې لمونځ کوونکی د لمانځه اراده وکړي او مسجد ته راشي ، نو کوشش دې وکړي چې په اول صف کې چې ځای خالي وي ؛ هلته کښیني ، او دا چې سړی په اول وار شاته کښیني او بیا وروسته د جماعة د ریدو پر وخت په زور سره په ټیلو او ټمبو اول صف ته ځان ننباسي دا ډیر ناوړه او مکروه حرکت دی ، د خلکو د کرکې او نفرت سبب ګرځي له دې څخه هرومرو ځان ساتل پکار دي.

(فتاوی رحیمیه ص۳۲۴ ج۲)

مسئله : کوم بالغ هلک یاسړی چې معتوه یاکم عقل وی ، لیوني ته ورته وی د لمانځه اوخلکو په احترام نه پوهیږي ، بیځایه حرکات ځینی صادریږی او لمونځ کوونکو ته د ده په وجه تکلیف رسیږي نودغه سړی دې د لویانو په صف کې له دریدلو څخه منع کړای شی ، که بیاهم ودریږی نو شاته دې کړی .فقهاء کراموداسی شخص د ماشومانو په حکم کې داخل کړیدی .(فتاوی رحیمیه ص۲۲۵ ج۲ ، بحواله شامی ص۵۲۱ ج ۱ باب الامامت) 7

## د تکبیراولی ثواب ترڅه وخته پوری دی ؟

مسئله : د لومړي رکعت ترركوع پورى كه سړی په جماعة کې شامل شی نو د تکبیر اولی ثواب موندلای شي.

(فتاوی دارالعلوم ص۵۰ ج۳ بحواله شامی ص۳۵۲ ج۱ ، امداد الفتاوی ص۱۸۵ ج۱)

مسئله : د تکبیر اولی فضیلت د هغه چا لپاره ده چې له امام سره د تحریمه په وخت کې موجود وی ، ځینو بیاویلی چې کوم سړی د قرائت د شروع کیدلو څخه مخکې په جماعة شریک شي . او ځینو بیا ترهغه هم ورزیات کړی چې وائي د قرائت ترختمیدلو وړاندی شریک شی ؛ هغه هم فضیلت پیدا کولای شی. (آپ کی مسائل ص۱۹۴ ج۳)

## د صفونو په اړه مسائل

مسئله : سنت طریقه دا ده چې مقتدیان په لمانځه کې بالکل جوخت سره ودریږی ، د قدمونو د ننبلولو څخه هدف دادی چې ګویا ټول په صف کې یو برابر او سیده سره ودریږی ، یوتر بل یوه ذره هم مخکې یا وروسته نه وی.

مسئله : پونډی به د یو بل له پونډیو سره او اوږې به ئي سره برابري وی.چې په دې توګه صف ښه سیده کیږی.



مسئله : پوندي اوپونډی چې سره برابري شی ، نو د مخکې ګوتو برابرول ډیر ضروري نه دی د چاپښې غټی او د چا کوچنی وی.

(فتاوی محمودیه ص۹۶ ج۷ ، فتاوی دارالعلوم ص۳۳۷ ج بحواله ردمحتار ص۵۳۱ ج باب الاعامة)

مسئله : امام دی مقتدیانوته لارښوونه کوی چې صفونه سره برابرکړئ او پخپلو منځوکې خالي ځای مه پریږدئ ، اوږې او پونډی سره برابري کړئ ، که په اول صف کې ځای وی ، لومړی هغه پوره کړئ ، بیا دوهم صف جوړکړئ ، که په اول صف کې ځای تنګ وی ، نو نورولمونځ کوونکو ته د تکلیف نه ورکوی له دی کراهته دی ځان وساتی ، په وروستی صف کې دی ودریږی. (فتاوی دارالعلوم ص۲۴۰ ج۲ بحواله ردالمحتار ص۵۳۲ ج۱ باب الامامة)

مسئله : نابالغ هلکان که ډیر وي نو په دوهم او دریم صف کې باید ودریږی او که یووی ، نوله لویانو سره دریدل ئي درست دی. مګر فقهاء کرامو ، امرد صبیح الوجه (لږ غټ ، ښائسته نابالغ هلک)له غټانو سره په صف کې برابر دریدل د لمانځه د فاسدیدلو حکم ورکړی. که څه هم صحیح حکم دا دی چې لمونځ فاسد یږی نه ، خود شهوت په نظر ورته کتل ئي حرام بللی دی. ښه او افضل کاردا دی چې په صف کې یو ځای له غټانو سره ونه دریږی.

په هرصورت دامعلومه شوه ، که چیری یو نابالغ هلک د بالغینو په منځ کې ودریږی نود دي بالغینو په لمونځونو کې څه کراهت اوفساد نه راځي.

(فتاوی دارالعلوم ص۳۴۲ ج۳ بحواله ردمحتار ص۵۳۹ ج۱ باب الامامة ، فتاوی رحیمیه ص۱۹۰ ج۱ شامی ص۲۵۳ ج۱)

**مسئله** : که د غټانو اول صف پوره شوی نه وی او شاته ماشومان (نابالغان) بل صف جوړ کړی ، نو بل څوک چې اوس له بهره راشی ، هغه به هم لومړی صف ته تیریږی ، په دې شرط چې د هلکانو صف څخه د تیریدو لاره وی او هغه صف ته خلل ونه رسیږی ، که چیری د ده په تیریدلو سره اول صف ته ، د هلکانو په صف کې خرابي راتله او د هغوی د تکلیف او د توجه د کډوډولو سبب ګرځي ، نو بیا دې په همدغه صف کې ودریږی ، لمونځ ئې صحت لري که څه هم د ماشومانو په صف کې وی او په اول صف کې هم ځای وی. (فتاوی دارالعلوم ص۳۵۴ج۳)

**مسئله** : ښځي که څه هم له محرماتو څخه وي ، په جماعة کې به هغوی له نارینه سره برابری نه دریږی ، چې په دې سره د نارینه لمونځ فاسدیږی. (فتاوی دارالعلوم ص۳۶۲ج۳، بحواله ردالمحتار ص۵۳۵ج۱)

**مسئله** : میړه او ښځه که یوازی جماعة کوي او د واړه سره برابر ودریږی لکه د یوه مقتدی په صورت کې چې حکم دی ، دا صحت نلری ، په دې صورت کې د دواړو لمونځ فاسد ګرځی.(فتاوی دارالعلوم ص۳۴۲ج۳، فتاوی رحیمیه ص۱۹۱ج۱، شامی ص۵۳۵جفتاوی محمودیه ص۲۱۱ج۱۴)

(او که چیری د ښځي قدم له نارینه څخه ښه وروسته وی ، بیا صحت لري (محمد رفعت قاسمی غفرله)

**مسئله** : په صف کې د لمونځ کوونکو ترمنځ که ځای خالی پریښودل شی ، لمونځ کیدلای شی ، صحت لري مګر دا د سنت خلاف عمل دی ، باید خلک اوږی او پوندی سره برابری کړی



ترڅو صف کوږ نشي او بالکل نژدی نژدی سره ودریږی ، چې خالی ځای پاتی نشی. (فتاوی دارالعلوم ص۳۳۸ج۳ بحواله ردالمحتار ص۵۳۳ج۱)

**مسئله** : له ضرورته پرته دستنو په منځ کې دریدل مکروه دی ، مګر لمونځ صحت لری او د جماعة ثواب هم موندلای شی ، او که چیری یو څو خلک د دووستنو په منځ کې په خالی ځای کې ودریږی ،داسی چې ، کوچنی جماعة ورځینی جوړشی ، او ضرورة ئې هم وی ، نو بیا ظاهرا کوم کراهت نلری. (فتاوی دارالعلوم ص۳۴۴ج۳ بحواله مبسوط ۳۵ص ج۲)

**مسئله** : که یو مقتدي په مسجد کې د خپل ځان لپاره ځانګړې مصلی هواره کړي وی ، په دې کې څه حرج هم نشته ، او څه ضرورة ئي هم نشته. (فتاوی دارالعلوم ص۳۴۴ج۳)

په داجدا مصلی هوارولو کې د انسان لوئي محسوسیږی ، نو که ضرورة نه وی ، مثلا یو قسم ناروغي ونلري ، بیائي اړتیا نشته ، نه دی غوړوی (محمد رفعت قاسمی غفرله)

**مسئله** : که چیری یو سړی مسجد ته مخکې راسی په اول صف کې یا بل ځای چیری کښینی ، بیا د ضرورة په خاطر او داسه او یا بل څه ته ولاړشی او پر خپل ځای یوشی کښیږدی لکه د ستمال ، څادر یا بل شی ، او بیا بل سړی راشی پردی ځای ودریږی ،هغه اول سړی د دې ځای مستحق دی ، کولای شی چې دا دویم سړی له ځایه پاڅوی او پخپله پر ودریږی ، او که چیری ئي خپل یوشی وربا ندی ایښي نه وو ، نو بیا حق نلري ، ښه کار نه دی چې هغه ولاړه وی. (فتاوی دارالعلوم ص۳۵۱ج۳)

کوم سړی چې اول راشی د خالی ځای هغه مستحق دی ، نو که بیا د او داسه او بل داسی ضرورت په وجه ووزی ، نو د ځای بندول ورته

جائز دی ، او که د ی ځای په دستمال یا بل شی بند کړی ، پر خپله مخه کوریا بلی خواته ولاړ شی ، دا ناجائز دی. (رفعت قاسمی غفرله)

**مسئله** : په اول صف کې هم په اعتبار د دې چې کوم طرف یا کومې خواته نژدې ده ، په ثواب کې زیاتوالی او کموالی وی ، کوم سړی چې په امام پسې بلکل متصل ولاړ وی د هغه ثواب د نورو په پرتله زیات دی ، او بیا چې ښي اړخ ته وی او نژدې وی ، او که چیری دغه سړی د نورو د تکلیف باعث شی ، په صف کې ، بیا ثواب نلری ، نو پکار ده چې نور په زحمت نکړی او دا ځای پریږدی ، او بل هغه څوک د زیات ثواب مستحق دی چې ترټولو لومړی مسجد ته راشی.

(فتاوی دار العلوم ص۳۵۰ ج۳)

**مسئله** : د صف په ښی اړخ کې ثواب زیات دی ، خو دا هم ضروري ده چې د صف په چپ (کیڼ) اړخ کې به هم خلک دریږی ، ترڅو د صف توازن وساتل شی او هر یو طرف ته خلک ډیر نشی. (آپ کی مسائل ص۲۱۸ ج۳)

**مسئله** : که د باران یا ګرمۍ داسی ضرورت له امله مقتدی په امام پسی دومره نژدې دریدلای شی چې صرف ۴ ګوتی راشاته وی ، یعنی لکه د یوه مقتدی په صورت کې چې دریږی ، لمونځ ئې صحیح دی

(فتاوی دار العلوم ص۳۵۱ ج۳)

**مسئله** : په امام پسی که اهل علم او پوه خلک نژدې ودریږی ، دا بهتره ده مګر که نور خلک مخکې دریدلي وو ، نو بیا د هغوی د لیری کولو ارتیا نشته ځکه چې لمونځ هر ډول صحت لری.

(فتاوی دار العلوم ص۳۷۵ ج۳ ، فتاوی رحیمیه ص۲۶۴ ج۷)



**مسئله** : مخنث (نربنځی) د خلکو په جماعت کې شاملیدلای شی ، مګر دا چې د صفونو په شاکې به دریږی ، د دوی په شاملیدلو سره د خلکو لمانځه ته کوم نقصان نه رسیږی ، او په مسجد کې د هغوی پیسی خرچ کول درست دی. (فتاوی دار العلوم ص۳۵۲ ج۳ بحواله درمختار ص۴۱۴ ج۱)

**مسئله** : که چیری یو نابالغ وی ، د بالغانو په صف کې دریدلای شی.

(فتاوی محمودیه ص۷۵ ج۹)

**مسئله** : که د مصلی او صف سوړ (پراخوالی) کم وی ، چې سجده نشی ورباندی کیدلای ، نو بیا دی یا مخکې کړی یا وروسته ، دواړه صورته درست دی ، که پښی پر مصلی ږدی او سجده پر فرش لګوی او یا پښی پر فرش ږدی ، سجده پر مصلی لګوی.

(فتاوی دار العلوم ص۳۵۲ ج۳ ، فتاوی محمودیه ص۲۲۰ ج۲ ، کبیری ص۳۴۲)

مګر د ځای پاکوالی ضروری دی ، د مصلی غټوالی ، کوچنیوالی مهم نه دی.— رفعت قاسمی)

**مسئله** : د کوم سړی په مخکې چې ځای خالی وی ، که دی خپل ځای پریږدی هلته ولاړ شی ، نو څه ګناه نشته باندی ، خو که د خالی ځای د شته والی باوجود ، دی شاته ناسته اختیار کړی ، نو دا خلاف اولی کار کوی. (فتاوی دار العلوم ص۳۴۵ ج۳ ، ردالمحتار ص۵۳۳ ج۱ ، فتاوی رحیمیه ص۲۶۲ ج۷)

**مسئله** : چې جماعة شروع وی او یو سړی وروسته راشی ، په مخکنی صف کې څه خالی ځای ووینی او د صفونو په څنګ کې په یو ترتیب ځان ورتیر کړی ، نو څه ګناه نشته باندی ، په دې شرط چې چا ته په لمانځه کې مخل واقع نشی. (فتاوی دار العلوم ص۳۵۴ ج۳)

**مسئله**: که په مخکنی صف کې، د کوم ځا اودس مات شی، یابل. عذر ورته پیښ شی، نو کولای شی چې د وروستیو صفونو په منځ کې په یو ډول ځان وباسی. (فتاوی دارالعلوم ص۲۰۲ج۳)

## معذور سړی به په صف کې چیری دریږی؟

پوښتنه: زموږ په مسجد کې دوه تنه معیوب دی چې په ولاړې لمونځ نشی أداء کولای، که په لمړی صف کې د مؤذن په خواکې کښینی، نو ډیر زیات ځای نیسی، او په صف کې ډیره خلاهم پاتی کیږی، دا راز نورو لمونځ کوونکو ته هم تکلیف رسیږی، د داسی خلکو لپاره حکم څه دی؟

جواب: ـ په دغه مسئوله صورت کې د داسی خلکو لپاره بهتره دا ده چې په اخیری صف کې او یا چیری په څنډه کې چې ځای وی؛ لمونځ اداء کړی، ان شاء الله د جماعة او لومړي صف دواړو کامل ثواب به ورته رسیږی، په شامی کې راځی، که چاته د دې اندیښنه وه چې بل چاته تکلیف ورځینی رسیږی نو هغه ته بهتره داده چې په وروستی صف کې ودریږی، ځکه چې نبی کریم ﷺ فرمایی: که څوک د دې اندیښنې له امله چې څوک مسلمان ورځینې په تکلیف نشی، اول صف پریږدی، نو هغه ته د اول صف دوه چنده اجر ورکول کیږی.
(فتاوی رحیمیه ص۳۶۴ج۷، شامی ۵۳۲ج۱)

**مسئله**: د ډیری عوامو خلکو معمول دا وی چې ناروغ په جماعة کې شرکت وکړی نو د ټول صف په څنډه کې پرچپ طرف کښینی، ګویا په منځ کې د مریض کښیناستل، بدګني او کرکه ځینی کوی، چې دا سراسر یو غلط عمل دی. (اغلاط العوام ۶۷ص)



یعنې په مینځ کې هم کښیناستلای شی، په لمانځه کې هیڅ خرابی نه راځي. (رفعت)

**مسئله**: که چیری له امام سره یو مقتدی وی، بیابل سړی راشی نو بهتره داده چې اول مقتدی راشاته شی او دواړه یو ځای برابر په امام پسی ودریږی

خو په دې شرط چې د دې مقتدی د لمانځه د فساد احتمال نه وی، که دا احتمال وو چې په راشاته کیدلو سره به ئي لمونځ فاسدشی، نو بیا دی نه شاته کیږی. له دی نه څرګنده شوه چې د شاته کیدلو ضرورت هغه وخت وی چې دامعلومه وی، چې لومړی مقتدی شاته کیږی او هغه ته مسئله معلومه وی. (فتاوی دارالعلوم ص۳۵۸ج۳)

**مسئله**: په دې حالت کې که امام لږ مخکې شی او یا مقتدی راشاته شی دواړه جائزدی، مګر که مقتدی راشاته شی دا بهتره ده تردی چې امام مخکې کیږی. (فتاوی دارالعلوم ص۳۵۳ج۳بحواله ردالمحتار ص۵۳۱ج۱)

**مسئله**: د امام لپاره سنت په محراب کې او یا د قوم په منځ کې دریدل دی، نو که چیری دباندی په انګړ کې دریږی نو هم د محراب پرمحاذاة به دریږی، که څه هم لمونځ په هرترتیب کیدلای شی، خو سنت طریقه همداده چې ذکر شوه.

**مسئله**: که چیری د مسجد صحن یوې یابلې خواته پراخ شی، نو امام ته د صحن په اعتبار بیاهم په منځ کې دریدل پکاردی، یعنی که د باندی ولاړوی، نو د صحن (انګړ) خیال دی وساتی.
(فتاوی دارالعلوم ص۳۶۱ج۳بحواله ردمحتار ص۵۳۱ج۱)

**مسئله** : امام که د صف په منځ کې ودریږي، نو دا سنت دی، او که مقتدیان ټول یو اړخ ته ودریږي نو لمونځ صحت لري خو سره له کراهته. (فتاوی دارالعلوم ص۳۶۴ج۳، ردالمحتار ص۵۳۱ج اول)

**مسئله** : که امام په درکي ودریږي (یعنی د دوسنتو منځ) په داسې توګه چې پښې ئې هم د ننه وي، او مقتدیان پر فرش وي، نو دا مکروه دی، لکه څنګه چې په محراب کې دننه امام ته دریدل مکروه دي، خو که پښې دباندې پر فرش وي، بیا څه خبره نه ده کراهت نلري.

**مسئله** : امام ته په منځ کې دریدل پکاردي، دواړو طرفونو ته برابر مقتدیان درول پکاردي. چپ طرف ته زیات مقتدیان درول د سنت خلاف دي.

سنت طریقه دا ده چې څه وخت جماعت ودریږي، دواړو طرفونو ته دې برابر مقتدیان دریږي. بیا چې څوک وروسته راځي او په جماعة کې شرکت کوي، هغوی ته هم پکار ده چې حتی الوسع د دواړو طرفونو د توازن خیال وساتي. (فتاوی دارالعلوم ص۳۴۷ج۳، عالمګیری ص۸۳ج۱)

**مسئله** : د مقتدي د سجدې ځای او د امام د ولاړیدو ځای (یعنی د مقتدي او امام) ترمنځ باید دومره فاصله وي چې سره نژدې وي او نور کوم خاص تحدید نشته. (فتاوی دارالعلوم ص۳۲۷ج۳ بحواله ردالمحتار ص۵۳۰ج۱)

(یعنی د امام او مقتدي ترمنځ به دومره فاصله وي چې د مقتدي سر د رکوع او سجدې ته د تللو پرمهال له امام سره ونه لګیږي- محمدرفعت قاسمي غفرله).



**مسئله** : که چیري د امام لمونځ ونه شو، (یعنی فاسد شو) نو د مقتدیانو لمونځ هم نه کیږي. پرټولو یې راګرځول لازم دي. یوازې د امام په راګرځولو سره د مقتدیانو لمونځ نه کیږي.

(فتاوی دارالعلوم ص۳۷۲ج۳، ردالمحتار ص۳۵۳ج۱)

(که چیري مقتدي تللي وي، نو امام به ټولو ته خبر ورکوي چې بیا پرهغوی د لمانځه راګرځیدل لازمي دي. که چیري خبر یا اطلاع ورته ونه رسیده، نو مقتدي معذور دي، هیڅ مواخذه نشته باندې. محمدرفعت قاسمي غفرله)

**مسئله** : دا خبره په غلطه مشهوره شوي چې وایي که څوک پرچارپایي لمونځ وکړي، بیزو کیږي. دا محض یو بې اصل او بې بنیاده خبره ده.

(اغلاط العوام ص۵۲)

**مسئله** : پرچارپائي (پلنګ) باندې که یو څوک د صحت په حالت کې لمونځ وکړي، فرض یا نفل، نو لمونځ صحت لري.-

(فتاوی دارالعلوم ص۱۲۳ج۴، بحواله ردمحتار ص۴۶۸ج۱، باب صفة الصلاة، امداد الاحکام ص۵۶۳ج۱)

(مګر پلنګ که ښه سخت وي د دې لپاره چې په سجده او نورو کې د ملا (کمر) توازن صحیح واوسي. په اوس وخت کې د اوسپنې یو ډول پلنګونه دي چې دا بلکل درست دي. لکن که د کومې ناروغۍ په وجه پرداسې عام پلنګ باندې لمونځ ادا کړي، نو صحت لري، چې په کوم کې دې استراحت کوي. (محمدرفعت قاسمي)

**مسئله** : هغه مصلی چې د ښایست لپاره انځورونه او نقشونه ورباندې جوړ شوي وي، لمونځ باندې صحیح دی. په دې شرط چې د

ذی روح تصویر نه وی ، که ذی روح تصویر وی بیا لمونځ جائز نه دی. او بل داچې دا نقش داسی وی چې د سړي توجه اړوی نو بیا هم لمونځ مکروه دی. (فتاوی دارالعلوم ص۱۲۷ ج۴، ردالمحتار ص۲۰۷ ج۱)

**مسئله** : د تصویر حکم د اصل نه دی. نو پر هغه مصلی باندی لمونځ کول چې د بیت الله تصویر پری نقش شوی وی. داسی نه ده لکه چې سړی ګواکې پر بیت الله لمونځ کوی ، لهذا په دی سره د بیت الله اهانت او سپکاوی نه کیږی. (فتاوی محمودیه ص۲۰۳ ج۱۴)

**مسئله** : پرکمه مصلی یا جای نماز کې چې د مرغه تصویر وی ؛ نو چې پر هغه باندی برسیره بل کالی هوار شی ، بیا لمونځ وړباندی جائز دی ، بلاکراهت. (فتاوی دارالعلوم ص۱۲۹ ج۴، ردالمحتار ص۶۰۶ ج۱)

**مسئله** : هغه پوست چې پوخ کړل شوی وی ؛ مصلي ځینی جوړول او لمونځ پر کول روا دی. بلاکراهت.
(فتاوی دارالعلوم ص۱۰۰ ج۴، فتاوی عالمگیری ص۲۲ ج۱، باب المیاه)

**مسئله** : د مسجد بندول مکروه دی ، مګر که د سامان د غلاکیدلو ویره وی ، بیا د لمانځه د وختونو څخه پرته مسجد بندول درست دی.
(فتاوی دارالعلوم ص۱۴۹ ج۴، ردالمحتار ص۶۱۲ ج۱ باب احکام المسجد)

(او دا د کلی یا د محلی خلکو پوری اړه لری ، څه وخت چې دوی مناسب ګڼی ؛ د لمانځه له وختونه پرته ؛ بندوی دی ) ــ رفعت قاسمی غفرله)

**مسئله** : که له اجازی پرته د بل سړی په ځمکه کې څوک لمونځ وکړی ، لمونځ ئي کیږی. (فتاوی دارالعلوم ص۹۲ ج۴، ردالمحتار ص۳۵۲ ج۱)

که چاد بل چا ځمکه غصب کړه او لمونځ ئي پکې اداء کړ ، لمونځ ئي وشو ، خو د غصب کولو سزاء ئي لا پر ځای ده ــ محمد رفعت قاسمی غفرله )



**مسئله** : پروښوباندی لمونځ کول درست دی. (فتاوی دارالعلوم ص۱۵۲ ج۲)

**مسئله** : که په لومړي صف کې ځای وی ، بیا په دویم صف کې لمونځ کول مکروه دی. (کتاب الفقه ص۴۴۰ ج۱)

**مسئله** : د زکوة په پیسو اخیستل شوی صف (فرش) کې لمونځ صحیح دی ، لیکن زکوة ئي اداء شوی نه دی.
(فتاوی دارالعلوم ص۵۱ ج۴ بحواله ردمحتار ص۸۵ ج۱) (ملاحظه ۹۴ مخ)

(دزکوة ورکوونکي زکوة ځکه اداء نشو چې په زکوة کې تملیک شرط دی ، او په مسجد کې دا ورتیا نشته چې څوک دې د مسجد مالک شی. )

د تفصیل لپاره (مکمل او مدلل مسائل زکوة وګورئ محمد رفعت قاسمی غفرله)

**مسئله** : د مسلمان یا غیر مسلمان په کورکې که د چارپایانو د امبار څخه پرپاک شوی وچ ځای باندی پاک کالی هوار کړل شی ، او لمونځ پري وشی ، نو په دې کې هیڅ حرج نشته ، لمونځ صحیح او جائز دی.
(فتاوی رحیمیه ص۲۳۱ ج۱)

## جماعة باید په مسجد کې د ننه اداء شی ، که د باندی په انګړ کې ؟

پوښتنه : په مسجد کې د ننه او یا د باندی په صحن کې لمونځ کول سره برابر دی ؛ په ثواب کې ئي څه فرق شته کنه ؟ ځکه چې د ګرمی په موسم کې لمونځ اکثرا د باندی په صحن کې اداء کیږی ؟

جواب : ــ : ترکومه ځایه چې ځمکه د مسجد لپاره یعنی د لمونځ کولو لپاره وقف کړی شوی وی ؛ هغه ټوله په ثواب کې سره برابره ده ، کله چې په مسجد کې د ننه صف بندی وشی او ځای پاتی نشی ، نو رخلک د باندی صفونه جوړ کړی په جماعة کې شریک شی ، نو هغوی

ته هم د مسجد د داخل خلکو په څیر پوره أجرورکول کیږي ، مطلب داچې د مسجد د دننی او د باندی هیڅ فرق نشته مګر فقهاء کرامو د مسجد د بام فرق ذکرکړی دی. چې وائي پرچت باندی هغه ثواب چې په مسجدکې دننه شته ، هلته نشته ، ګویا د اعتکاف په حکم کې هغه هم مسجد دی. (امدادالاحکام ص۴۲۳ج۱)

**مسئله:** مسجد هغه بولی چې وقف کړل شوی وی ، او هغه چې وقف نه وی مسجد نشی بلل کیدای ، په هغه کې د جمع ثواب خو موندل کیږي مګر د مسجد ثواب نشته پکښې. مکان صرف د لمانځه په اجازسره مسجد نشي ګرځیدای. او که چیری له مسجد پرته په کور یابل ځای کې جماعة وشی ، د ۲۷ لمونځونو اجرلری ، او د مسجد ثواب بیا پرهغه برسیره دی. (امدادالاحکام ص۴۴۶ج۱)

**مسئله :** پرمسجد باندی پورته لمونځ جائزدی ، په دې شرط چې لاندی ډک شوی وی. (امداد الاحکام) ص۴۳۹

**مسئله :** که دباندی په صحن (انګړ) کې جماعة ودریږي نو د جماعت په وخت کې د مسجد دننه دروازې بندول ضروری دی. (فتاوی محمودیه ص۲۶۱ج۳)

**مسئله :** که چیری شاوخوا نژدی ډیر مساجد وی ، اودسړي په محله کې وي نو په دې تولو کې چې هریو ډیر پخوانی وی ، هغه بهتردی لمونځ پکې افضلیت لری ، او که په دې کې تول سره برابر وو او یادا معلومه نه وه چې کوم یو ډیر پخوانی دی؟ نو بیاچې کوم یو ډېر سړي ته نژدی وی ؛ هغه افضل دی. (امداد لاحکام ص۴۵۹ج۲)



## په مسجد کې پای زار اینبودل څنګه دی؟

**مسئله :** که چیری پرپایزار باندی نجاست (ناپاکی) نه وی ، نو بیائي په مسجد کې اینبودل جائزدی ، مګر که د غلا یاورک کیدلو ویره نه وی ، بهتره داده چې له مسجد څخه دباندی کینښود ل شی ، او که چیری نجاست وی باندی ، بیاخوئي په جومات کې اینبودل جواز نلری. (امدادالاحکام ص۴۲۴ج۱)

## لمونځ باید پرخالی ځمکه اداشی او که پر پوزی یابل شئ؟

له آنحضرت ﷺ څخه د دواړو ثبوت راغلی دی ، د لیلة القدر له حدیث څخه ثابتیږي چې آنحضرت ﷺ پرځمکه لمونځ اداء کړ ، تردی چې د هغه ﷺ تندی مبارک په خاورو سپیره شو. او په شرح المنیه کې بیا راځی چې د آنحضرت ﷺ لپاره د لمانځه پروخت د خرما یو پوزی وغوړول شو. (کبیری ص۲۸۲ج۱)

له دې نه څرګنده شوه چې دواړې طریقې سنت دی ، هره یوه چې غوره کړي ؛ سمه ده مګر د یخنی یاګرمی په وجه که له خالی ځمکې څخه د تکلیف تشویش وي نو بیا پوزی یافرش غوړول افضل دی ، همدا راز که پر خالی ځمکه د کالیو د خرابیدلو احتمال وو ، بیاهم پوزی یافرش هوارول افضل دی ، ځکه په دې کې د مال تحفظ دی او شرعا د مال د ساتنی اجازه شته ، په لمانځه کې. او داچې تندی یاپوزه ، لاس ئي په خاورو ککړشی ، له دی څخه ئي په طبیعت کې کرکه نلرله ، نو بیا پرځمکه لمونځ ځکه افضل دی چې تواضع او انکساری پکښی شته. (فتاوی دارالعلوم ص۵۸ج۱، مع امداد المفتیین)

د حضرت ابو سعید خدری رضی الله تعالی عنه روایت دی چې وایي : یوه ورځ نبی کریم ﷺ ته ورغلم ومی لیدل چې هغه ﷺ پرپوزی لمونځ کوی او پرهغه سجده لګوی.

تشریح: له دې حدیث شریف نه دا معلومیږي چې کوم شئ ، د لمونځ کوونکی او د ځمکې ترمنځ حائل وی پرهغه باندی لمونځ کول جائز دی. نورکه هغه د نباتاتو څخه وی لکه جامې ، وړی اوداسی نور.... په حدیث کې که څه هم حصیر یعنی پوزی ذکر راغلی دی. لکن علماء د ځینو نورو دلائلو په آساس د پوزی څخه علاوه پرجامه اونورو داسی شیانو لمونځ جائز بللی دی. په دې شرط چې پاک وی او نجاست په وی پرې لګیدلی. (فتاوی دارالعلوم ص۱۳۹ج۲)

## د نامسلمان په لاس جوړشوي فرش باندی لمونځ

سوال : ـ: آیا هغه صفونه (فرشونه) چې د هندو یا بل نامسلمان په لاس جوړشوی وی پریمنځل یې پکاردی ، کنه ؟ ځکه چې هغوی زیاتره وخت ناپاکي اوبه باندی اچوی ولی چې هغوی په کوم لوښي کې اوبه ږدی اوبیا دافرش وړباندی پریمنځی ، په هغه کې اکثرا سپي هم اوبه څښي ، مطلب دا چې هغوی احتیاط نه کوی؟

جواب :که په یقین سره دامعلومه وی چې په ناپاکو اوبو جوړشوی او یا بل ناپاکي وړباندی لګیدلی وی ، نوبیائې پریولل ضروری دی ، که شبه پکښی وی ، بیا احتیاط نه ده چې پریمنځله شي ، او ځینی وخت په ځینو ځایونو کې عام یقین او ګمان داسی وی ، چې د ناپاکۍ احتمال نه وی ، نوبیا ضروری نه ده چې پریمنځلی شی ، لمونځ وړباندی صحیح دی.

(امدادالاحکام ص۳۹۹ج۱فتاوی دارالعلوم ص۱۳۲ج۲)



**مسئله** : په زندان کې د یو بندي په لاس جوړشوی جای نماز باندی لمونځ صحیح دی. (فتاوی دارالعلوم ص۱۳۸ج۲، درمختار ص۳۶۳ج۱)

سوال : که په مسجد کې ایرکنډیشن نصب شوی وی ، او د ایرکنډیشن لپاره ضروری داده چې دروازې به تړلی شوی وی ، په داسی حال کې چې په مسجد کې خو کله ناکله خلک زیات شی او د باندی ودریږي نو د دې لپاره بیا باید دروازې خلاصی وی ، نو دلته حکم څه دی. ؟

جواب : که دروازې بندی وی ، لیکن د باندی خلکو ته د امام د انتقالاتو (تکبیرونو) پته لګیږی نو اقتداء درست ده ، همدارنګه که دروازې د ښیښو څخه جوړې شوی وی ، نو بیاهم اقتداء صحیح ده ، په دې چې د امام د تکبیر آواز مقتدیان اوریدلای شي. (آپ کی مسائل ص۲۲۸ج۳)

## د جماعة د صحت لپاره شرطونه

**مسئله** : مقتدی ته پکارده چې د خپل نیت د تړلو په ترځ کې په امام پسی د اقتداء نیت هم وکړی ، یعنی په زړه کې دا اراده وکړی چې زه په دې امام پسی د فلانی وخت لمونځ اداکوم.

**مسئله** : د امام او مقتدی د مکان (ځای) یو والی ضروری دی ، هغه که حقیقتا وی ، که حکما ، حقیقتا لکه په یوه مسجد یا یوه کور کې دریدل ، حکما لکه داسی چې امام د سینډ په یوه غاړه وی او مقتدی پربله غاړه ، خو په دې منځ کې پرپل باندی نورصفونه وی چې د امام او دغه مقتدی پوری رسیدلی وی ، نو د ده اقتداء او لمونځ صحیح دی او دی ته حکما د مکان یو والی ویل کیږی ، حقیقتا که څه هم سره متحد نه دی ځای ئي.

**مسئله** : که چیرې د امام او مقتدي ترمنځ دومره فاصله خالي پاتې وي چې دوه صفه پکې راتلای شي، او څوک هم پکښې نه وي، نو دا اقتداء او لمونځ صحت نلري، د دې خیال ساتل ضرور پکار دي، داسې نه چې څوک چیرې اساني او سهولت ویني، هلته نیت تړي، نو چې کله اقتداء درست نه وي. لمونځ هم نه صحیح کیږي. (رفعت قاسمی منزه)

**مسئله** : د مقتدي او امام لمونځ به سره بیل نه وي، مثلا امام د ماپښین لمونځ کوي او مقتدي د مازیګر اقتداء وکړي، یا امام د پرون ماپښین قضائي راګرځوي او مقتدي د نن ماپښین خپل لمونځ ادا کوي او یا داسې بل صورت. مګر که دواړه د یوه بل تیر وخت قضائي راګرځوي بیا درست ده. مطلب دا چې په لمانځه کې به ئې مغایرت نه وي. (مراقي الفلاح، شامي)

**مسئله** : که امام فرض لمونځ کوي او مقتدي د نفل نیت پسې وتړي (څکه چې مقتدي فرض مخکې اداء کړي وي) نو اقتداء صحیح ده. څکه چې دا لمونځونه سره مغایر نه دي. (نقل له هر فرض لمانځه سره کیدلای شي) (په سهار او مازیګر کې به شرکت نه کوي).

**مسئله** : د امام لمونځ به صحیح وي، که چیرې د امام لمونځ له څه وجې څخه فاسد شي، نو د ټولو مقتدیانو لمونځ فاسد ګرځي، نو که د غه فساد د لمانځه ترختمیدلو مخکې معلوم شي او که وروسته.

**مسئله** : که چیرې د امام لمونځ د څه وجې څخه فاسد شوی وي، او خلکو ته دا معلومه نشي چې لمونځ فاسد دی، نو پر امام صاحب دا ضروري دي چې خلک به خبروي ترڅپله وسه پورې، ترڅو هغوی خپل لمونځونه راوګرځوي که په هره وسیله ئې خبرولای شي. د مخامخ



وینا په ذریعه یا د بل چاپه واسطه او یا د خط او یا تلیفون یا بله ذریعې
8 سره، حتی الوسع به کوښښ کوي. دا په هغه صورت کې چې مقتدیان چیرې لیرې تللي وي. (درمختار)

**مسئله** : که چیرې د امام او مقتدي مسلک (مذهب) یو نه وي، مثلاً امام شافعي، یا مالکي مسلکه وي او مقتدي حنفي وي نو په دې صورت کې دا کافي ده چې د امام لمونځ د هغه د خپل مذهب سره موافق صحت ولري. د مقتدي له مذهب سره موافق که صحیح وي که نه وي. په هر حال اقتداء بلاکراهت صحیح ده مګر که د امام لمونځ د خپل مذهب له نظره صحت ونلري، یعنی دا چې د ده په مذهب کې دا د ده لمونځ فاسد وبلل شي، نو بیا د مقتدي لمونځ هم نه صحیح کیږي، که څه هم د مقتدي د مذهب موافق د ده په لمانځه کې کومه خرابي رانشي.

او دا حکم په دې کې هم ده چې د غیر مقلدینو ترشا لمونځ کول څنګه دي؟ یعنی د مقلد لمونځ په غیر مقلد پسې بلاکراهت صحیح دی. هغه که د مقتدي د مذهب خیال وساتي، که یې ونه ساتي. (علم الفقه ص۵۸ ج۲، کتاب الفقه ص۱۶۶ تر ۱۸۲ ج۱)

**مسئله** : مقتدي به له امام څخه وړاندې نه دریږي، که مخکې شي نو اقتداء صحت نلري. د مقتدي مخکې دریدل هغه وخت معلومیږي چې د مقتدي د پښو پوندې د امام تر پوندو مخکې نه وي. نوره پښه یا ګوتې که یې د غټوالي په وجه تیرې وي څه باک نلري. اقتداء درسته ده. مطلب دا چې پوندې به یې د امام له پوندو څخه وروسته وي. -- (درمختار)

**مسئله :** مقتدی ته ضروری ده چې د امام له انتقالی حرکاتو څخه په خبربږی ، مثلاً له رکوع څخه سجدی ته او یا داسې نورو ... څخه په خپله به مستقیماً امام وینی ، آواز به یې اوری او یا به د بل مکبر په واسطه یې تکبیر اوری او یا بل کوم څنګلوری مقتدی ته په نظر کولو سره معلومات ورته کیږی ، په هر صورت دا ضروری ده. که چیري مقتدی ته د امام له حرکاتو هیڅ معلومات نه کیږی ، نه یې آواز اوری ، نو اقتداء قطعاً صحی نه ده. (درمختار)

**مسئله :** مقتدی ته دا هم ضروری ده چې د امام له حالت نه به خبر وی چې مقیم دی که مسافر ؟ که له لمانځه نه مخکې ورته معلومه شي او که له لمانځه ن [illegible] وسته څرګنده شي. (درمختار)

**مسئله :** مقتد [illegible] کې شرکت کوی پرته له قرائت نه. که امام سره یو [illegible] ی یې [illegible] دوی که وروسته وی ، که مخکې. په دی شرط چې د هغه رکن تر اخیره پوری امام له ده سره شریک پاتې شي.

دلومړی صورت مثال: له امام سره به یوځای رکوع ، سجده وغیره کوی.

د دوهم صورت مثال: امام چې رکوع پوره کړی او راپورته شی ، له هغه وروسته مقتدی ورپسې راپورته شی.

د دریم صورت مثال: له امام څخه مخکې رکوع ته ولاړ شی خو په رکوع کې دومره وځنډیږی چې د امام رکوع ورسره مکمله شی. (ردالمحتار)



که چیری په یو رکن کې له امام سره شرکت ونشی مثلاً امام رکوع وکړی او مقتدی یې ونکړی یا امام دوی سجده پوره کړی ، مقتدی یوه سجده وکړی یا مقتدی په یو رکن کې مخته سی او له مخه ورځینی راپورته سی ، مثلاً مقتدی تر امام مخکې رکوع ته ولاړ شی یا د امام د رکوع تر پوره کیدلو مخکې راپورته شی. په دی دواړو صورتونو کې اقتداء صحت لری.

**مسئله:** مقتدی به له امام سره برابر یا کم وی ورځینی زیات به نه وی. مثلاً

۱ - هغه څوک چې قیام کولای شی اقتداء یې په هغه چا پسې درست ده چې له قیام څخه عاجز وی.

۲ - هغه څوک چې تیمم یې وهلی وی ، په هغه پسې د اودس لرونکې اقتداء صحیح ده ځکه چې د تیمم ، اوداسه او غسل حکم د طهارت (پاکی) په برخه کې یو ډول دی. یو له بل څخه زیات نه دی.

۳ - په مسح کوونکې پسې د پریمنځونکې اقتداء درست ده. هغه که پر موزه یې کړی وی ، که پر زخم پټی پاندی. ځکه چې دا هم یعنی مسح او پریولل دواړه یوه درجه او مرتبه لری په طهارت کې یو پر بل فوقیت نلری.

۴ - د معذور اقتداء په معذور پسې صحیح ده ، په دی شرط چې دواړه په یوه عذر مبتلا وی.

۵ - د اُمی (نالوستی) اقتداء په بل اُمی پسې درست ده. په دی شرط چې په دوی کې بل کوم قاری یا تعلیم لرونکې نه وی.

۶ - د ښځی یا نابالغ کس اقتداء په بالغ سړی پسې صحیح ده.

۷ - د ښځی اقتداء په ښځه یا مخنث (نرښځی) پسې سمه ده.

۸ ـ د نابالغې ښځې یا نابالغ نارینه اقتداء په نابالغ سړي پسې صحې ده.

۹ ـ د نفل کوونکې اقتداء په هغه چا پسې درست ده چې واجب لمونځ کوي.

۱۰ ـ د نفل کوونکې اقتداء په نفل کوونکې پسې صحت لري.

حاصل دا شو چې کله مقتدي تر امام کښته او یا ورسره برابر وي نو اقتداء یې ورپسې صحې ده. (علم الفقه ص۸۷ ج ۲)

**مسئله** : د امام یوه یا بل جانب ته د ډېرو مقتدیانو دریدل مکروه تنزیهي دي (فتاوی محمودیه ص۲۴۵ ج۲)

**مسئله** : که چیرې له امام سره صرف یو سړی او یا باشعوره هلک وي ؛ نو مستحب دا ده چې د امام په ښي اړخ کې لږ شاته ودریږي، برابر ورسره دریدل مکروه دي او دغه راز په کیڼ اړخ کې ئي دریدل او یا شاته یوازې دریدل مکروه دي. او که چیرې دوه تنه وي نو بیا مستحب دا ده چې دواړه د امام شاته ودریږي.

همدارنګه د یوه سړي او یوه هلک په صورت کې هم همداسې کول پکار دي. او که چیرې یو نارینه او یوه ښځه وي نو نارینه دې د امام ښي اړخ ته لږ شاته ودریږي او ښځه دې د هغه شاته پسې ودریږي.

همدا مسئله د هلک هم ده. که چیرې دلته نارینه، هلک، مخنث، ښځه وي نو دې مخکې سړي ودریږي بیا دې په هغه پسې هلک، بیا دې مخنث او له هغه وروسته دې ښځې ودریږي. (کتاب الفقه ۶۹۱ ج۱)

**مسئله** : که یو مقتدي وي، هغه کیڼ اړخ ته او یا شاته ودریږي لمونځ صحي دی مګر خلاف سنت په وجه د اسائت مرتکب ګرځي.

(فتاوی رحیمیه ص۳۲۵ ج۳، عینې شرح کنز ص۳۹ ج۱)



**مسئله** : امام ته پکار ده چې د صف په مخکې په داسې ځای کې ودریږي چې هغه د صف مینځ وي نه دا چې یو ه یا بل طرف ته، چې دا طریقه د سنت خلاف دی. او کوم خلک چې په جماعة کې افضل وي، هغه باید په اول صف کې او د امام پسې نژدې ودریږي. د دې لپاره چې امام ته د حدث او یا بل ضرورت د ورپیښیدو په صورت کې د امامت ورتیا ولري.

**مسئله** : لمړی صف پردویم، دویم پردریم او داسې نور هر یو مخې ته پروروسته أفضلیت لري.

**مسئله** : له امام سره که یو مقتدي وي، هم جماعة کیږي او د جماعة پوره ثواب ورکول کیږي. (فتاوی دار العلوم ص۳۷ ج۳ بحواله درمختار ص۵۱۸ ج۱)

**مسئله** : که بالغ مقتدیان نه وي، نو ماشومانو ته هم جماعة ورکولای شي، او د جماعة کامل أجر او ثواب لري. (فتاوی دار العلوم ص۴۲ ج۳ بحواله الاشباه ص۲۸۰)

**مسئله** : که چیرې یو سړی په داسې وخت کې راشي چې امام پر رکوع وي، او په وروستي یا بل صف کې ځای خالي وي، نو ده ته پکار ده چې هغه خالي ځای ته ځان ورسوي نیت دې وتړي او تکبیر تحریمه دې وو ایې، تر هغه پورې چې صف ته نه وي رسیدلی دې باندې وي؛ تکبیر به نه وایې، که څه هم رکعت ځیني تیریږي. (کتاب الفقه ص۶۹۲ ج۱)

**مسئله** : که د لمانځه د شروع پر مهال یو مقتدي وي او هغه د امام په ښي اړخ کې ودریږي له دې وروسته نور مقتدیان راشي؛ نو لمړي مقتدي ته پکار ده چې راشاته شي ترڅو په ټولو برابر یو صف جوړ کړي، که هغه خپله راشاته نشي نو دا نور مقتدیان دې په لږ حرکت

سره هغه راشاته کړي ، که بیاهم راشاته نشي ، په ناپوهۍ . سره ئیو یا بل څنګ ته دریدلی وی ، نو بیا امام ته پکار ده چې مخکې شی ، ترڅو خلک له هغه مقتدی سره برابرو دریږي او صف جوړ کړي.
همدارنګه که د مقتدی د راشاته کیدلو زمینه نه وی ، نو په دغه صورت کې به هم امام مخته کیږي.

**مسئله** : که مقتدی ښځه وی او یا نابالغه نجلۍ ، نو هغوی ته پکار ده چې د امام پسې له شا ودریږي ، که یوه وي او که ډیری . (یعنې پرڅنګ به نه ودریږي )

**مسئله** : که چیری په جماعة کې بیلابیل خلګ وی ، څه نارینه وی ، څوک ښځې ، څوک مخنث او څوک نابالغ وی . نو امام ته پکار ده چې په همدې ترتیب د هغوی صفونه برابر کړي و لمړی د نارینه وو صف ، بیا د نابالغ هلکانو ، بیا د مخنثو ، بیا د نابالغ مخنثو ، بیا د بالغو ښځو ، او بیاد نابالغو نجونو .

**مسئله** : امام ته پکارده چې د صفونو په برابر ولو کې پوره اهتمام وکړي یعنې چې خلک سره شا ومخ ته نه وی ، اوږې او پوندې سره برابری وی ، په منځ کې د هریوه خالی ځای پاتې نه وی ، یو بل سره ډیر نژدې ودریږي . مګر د مخنثانو (نرښځیانو) په صف کې به داسې نه وی چې یوله بل سره ډیر نژدې اوښتی وی ، بلکې داسې به وی چې د دوو په منځ یو بل کس هم ځائیدلای شی . داځکه چې په هر مخنث کې د نراوښځې دواړو احتمال وی نو داسې چې ډیر نژدې یوله بل سره ودریږي ، نو لمونځ ئی فاسدیږي.



**مسئله** : تنهاد یوه سړی شاته دریدل مکروه دی ، نو په داسې وخت کې که اول صف پوره شی ، یوازی یو سړی پاتې شی ، هغه به له اول صف نه یو سړی راشاته کړي او دویم صف به په ګډه سره بنا کړي ، (په داسې حال کې په اول صف کې ځای وی ) په دوهم صف کې دریدل مکروه دی ، مګرداچې هغه خالی ځای ډک شی.

**مسئله** : که چیری جماعة یوازی د ښځو وی ، یعنی امام هم ښځه وی ، نو امام به د مقتدیانو په منځ کې دریږي د نارینه وو د جماعة غوندې به مخکې نه دریږي . که یو مقتدی وی او که زیات وی ، امام به ئی په منځ کې وی . (اوصحیح خبره داده چې صرف د ښځو جماعة مکروه نه ، بلکې جائزدی . )

**مسئله** : که ټول جماعة یوازی د مخنثو وی ، نو امام به ئی ترمقتدیانو مخکې دریږي په منځ کې به ئي نه وی ، او نه ورسره برابر دریږي ، که څه هم یو مقتدي وی ، که امام له مقتدیانو سره برابرو دریږي نو لمونځ فاسدیږي ، چې وجه ئی لږ مخکې تیره شوه.

**مسئله** : نارینه ته د ښځو امامت کول هغه وخت مکروه تحریمی ده چیری چې نه بل نارینه وی او نه کومه محرمه ښځه ، لکه د ده مور ، خور ، ښځه او یاداسې بله ... مګر که چیری یو نارینه موجود وو او یا محرمه ښځه وه نو بیا مکروه نه بلکې صحت لري: (درمختار وغیره)

**مسئله** : که چیری یو سړی تنها د سهار ، ماښام یاماخستن فرض لمونځ په ټیټ (خفیه) آواز سره وایه ، په دې وخت کې بل سړی وریسې اقتداء وکړه نو پرده باندی واجب ده ، چې په لوړآواز سره به قرائت وایی ، که ئي سورة فاتحه او بل سورة په خفیه آواز سره ویلی

وو ، نو دوهم ځل به ئې بيا په لوړآواز وايي ، ځکه چې په دغو دريو وختونو کې په جهر قرائت کول واجب دی ، ليکن د سورة فاتحی د تکرار له امله سجده سهو ورباندی لازمه کرځی. (درمختار، علم الفقه ص۹۲ تر ۹۵ ج ۲ ، فتاوی رحيميه ص۴۵ ج ۳)

## د اقامت پر وخت به مقتدی کله دريږی ؟

**مسئله** : د «قدقامت الصلوة» پر وخت امام او مقتدی دواړو ته په لمانځه شروع کول مستحب او له آدابو څخه ده. ليکن دا چې دغه اقامت کوونکی (مؤذن) له امام سره لمونځ نشی پيل کولای ؛ نو ځکه نبه دا ده چې کله اقامت ختم شي تول دی لمونځ شروع کړی چې دی ته اصح ويل شوی دی. همدا راز د صفونو د برابرولو چې ډېر تاکيد راغلی او په نه رعايت کولو يې ډېر وعيدونه دی ، د هغوی په نظر کې نيولو سره بايد چې د اقامت د شروع سره سم خلک د صف په برابريدلو پيل وکړی ، نه دا چې د «حی علی الفلاح» څخه وروسته ولاړ شی ، ځکه چې هغه وخت بيا صفونه نشی برابريدلای صفونه همغسی کاږه واږه پاتی کيږی په داسی حال کې چې په احاديثو کې يې پر سميدلو ډېر زيات تاکيدات راغلی دی.

په يو حديث کې راځی چې : صفونه سيده کړئ ، خپلی اوږې سره سره برابری کړئ او په خپل منځ کې جوخت ودريږئ ، په مابين کې خالی ځای مه پريږدئ. (الحديث - مشکوة ص۹۹ ج ۱)

خلاصه دا چې د «حی علی الفلاح» څخه وروسته ولاړيدل له آدابو څخه دی ، مګر په پرينبودلو کې يې هيڅ کراهت نشته ولی چې د صفونو د برابرولو ډېر تينګار شويدی. پر نه رعايت باندی يې ډېر



وعيدونه ذکر شويدی. نو له همدې امله له کراهت څخه او له هغو وعيدونو څخه د خلاصون په خاطر ، پکار ده چې د اقامت له پيل سره سم بايد جماعة ته خلک ودريږی او دا افضل دی. ځکه چې له صحابه کرامو رضی الله تعالی عنه څخه هم په دغه مهال دريدل ثابت دی. نو بيا ولی دی ته مکروه ويل کيدای شی.

(مصنف عبدالرزاق ص۵۰۷ ج ۱ ، فتح الباری ص۹۹ ج ۲)

په بحرالرائق (ص۳۰۴ ج۱) کې د «حی علی الفلاح» پر وخت د ولاړيدلو علت دا بيان شوی چې په - حی علی الفلاح - کې حکم دا دی چې (راشئ کاميابی) ته نو ځکه دا افضل ده چې د - حی علی الفلاح - پر مهال خلک ودريږی.

له دی نه معلوميږی چې پر حی - علی الفلاح - باندی ولاړيدل مستحب دی. مطلب يې دا دی چې له دې امر وروسته کښيناستل خلاف أدب دی. دا نه چې تر دی مخکې ولاړيدل بی ادبی ده. ولی چې مخکې ولاړيدل بيا نور هم افضل ګڼل کيدای شی. يعنی مقصد دا شو چې په ولاړی کې تر هغه پوری چې - حی علی الفلاح - ويل کيږی تاخير کول څه باک نلری. په همدی اساس علامه طحطاوی رح له دی وروسته فرمايی که د اقامت له شروع سره سم سړی ودريږی نو په دی کې هيڅ حرج نشته.

(طحطاوی علی الدرالمختار ص۲۲۱ ج۱، فتاوی رحيميه ص ۲۳۲ ج۴ ، ص۲۱۷ ج ۴ ، امدادالفتاوی ص۱۸۵ ج۱)

**مسئله** : دا ضروری نه ده چې امام به خپلی مصلی ته راځی ، هغه وخت به د اقامت تکبيرات شروع کيږی ، بلکې امام چې په جومات

کې هرچیرې موجود وی تکبیر ویل درست دی. امام چې تکبیر واوری پخپله مصلی ته راځی. (فتاوی دارالعلوم ص۱۱۲ ج۲)

**مسئله:** که چیرې د امام آواز ترټولو خلکو پورې نه رسیږی نو بیا مؤذن چې اقامت یې کړې وی او یا هم بل څوک کولای شی، تکبیر له امام سره په لوړ آواز ووایی ترڅو یې نور خلک واوری، په دې شرط چې دغه مکبر د تکبیر تحریمه پرمهال دا نیت هم کړې وی چې تکبیر به په لوړ آواز وایی ترڅو یې خلک واوری او د لمانځه نیت به یې هم کړې وی او که یې د لمانځه نیت نه وي کړی صرف د تکبیر لوړولو نیت یې کړی وی، نو د ده لمونځ هم باطل دی او د هغو خلکو هم چې د ده په تکبیر انتقالات کوی. خو په دې شرط چې که لمونځ کوونکو ته دا معلومه وه چې مکبر د لمانځه نیت نه دی کړی. (کتاب الفقه ص۴۰۲ ج۱)

## هغه صورتونه چې اقتداء پکښې صحی نه ده

دلته به لاندې هغه صورتونه بیان شی چې تر امام مقتدی زیات وی او اقتداء په دې صورت کې صحت ونلری:

۱- د بالغ اقتداء (که نارینه وی او که ښځه) په نابالغ پسې درست نه ده.

۲- د روغ سړي اقتداء په لیوني، مست، بې هوښه او بې عقل پسې.

۳- د مخنث اقتداء په مخنث پسې. (کیداې شی څوک چې امام دی، ښځه وی او څوک چې مقتدی دی؛ نر وي. ځکه چې په مخنث کې دواړه احتماله وی.)

۴- د هغې ښځې چې د خپل حیض موده ورته معلومه نه وی؛ په همدغسې ښځې پسې صحیح نه ده. (داځکه چې کیدای شی، د هغه



امام د حیض همدا شپې وی او ورپسې د مقتدی د طهارت شپې وی، لکه څنګه چې د بالعکس امکان لري.)

۵- د مخنث اقتداء په ښځه پسې، په دې خیال چې کیدای شی مخنث وي.

۶- د جوړ، پاک سړي اقتداء په ناپاک ناروغ پسې، مثلا په هغه چاپسې چې د سلسل البول او یا دا ډول بله ناروغی لرونکې وی.

۷- د یوه عذر لرونکې اقتداء په دوه عذره والا پسې.

۸- د قاري اقتداء په نالوستی پسې.

۹- د نالوستی اقتداء په نالوستي پسي، په دې شرط چې هلته کوم قاري هم موجود وي درسته نه ده.

۱۰- د نالوستی (امی) اقتداء په ګونګي پسې، ځکه چې أمی که څه هم بالفعل قرائت نشی لوستلای، قادرخودی پرلوستلو، ولی په ګونګی کې خو دا احتمال له سره نشته.

۱۱- د هغه سړي چې بدن ئې پټ وی په جامه؛ اقتداء ئې په هغه چاپسی چې لڅ وی، صحیح نه دی.

۱۲- رکوع او سجده کوونکې اقتداء په هغه چاپسی چې دادواړه نشی کولای که چیرې یو سړی رکوع کولای شی خو یوازې سجده نشی کولای؛ په هغه پسې بیاهم اقتداء درست نه ده.

۱۳- د فرض لمونځ کوونکی اقتداء په نفل کوونکی پسې.

۱۴- د نذر د لمونځ کوونکی اقتداء په نفل کوونکی پسی صحت نلری، ځکه چې د نذر لمونځ واجب وي.

۱۵- د نذر د لمونځ کوونکي اقتداء په هغه چاپسې چې د قسم لمونځ اداء کوي. صحیح نه ده. ځکه چې د نذر لمونځ اداء کول واجب دي. او د قسم اخیستونکي اختیار لري، که لمونځ اداء کوي له قسم څخه ځان خلاصوي، او که په فدیه ورکولو سره د قسم کفاره اداء کوي.

۱۶- هغه څوک چې په لمانځه کې پوره واضح حروف نشي اداء کولای یا یو د بل پرځای اداء کوي مثلاد (ث) پرځای (س) وایي او یا داسي نور... حروف سره رداو بدل وایي، په داسي سړي پسې د هغه چا اقتداء صحیح نه ده چې حروف ښه سم اداء کولای شي. (مگر که په ټول قرائت کې یو یا نیم حرف سم اداء نشي نو بیا هم اقتداء صحت لري.)

۱۷- امام به د چامقتدي نه وي (د امامت کولو په وخت کې) ځکه چې یو سړی چې هم امام وي، هم مقتدي، دانشي کیدلای. (یعنې که یو څوک په بل چاپسې مقتدي وي، بیابل سړی په هغه مقتدي پسې اقتداء پیل کړي، صحت نلري.) (علم الفقه ص۸۷ تر۸۹ پوری ج۲)

**مسئله**: د نارینه اقتداء په ښځینه او نابالغ پسې نه صحیح کیږي.

**مسئله**: د نابالغ ماشوم پسې، فرض، تراویح، وتر، نفل او بل هیڅ ډول لمونځ صحیح نه دی. (هدایه ص۷۸ ج۱، شرح وقایه ص۸۷، کبیری ص۵۱۶، کتاب الفقه ص۶۵۲)

مسئله: که چیرې یو مقتدي د «الله» لفظ له امام سره اداء کړي او «اکبر» ترامام وړاندې ختم کړي، یا مقتدي امام د رکوع په حالت کې پیدا کړي، نیت پسې وتړي، لفظ الله د قیام په حالت کې ووایي، او اکبر په رکوع کې ووایي، نو په دې دواړو صورتونو کې اقتداء



درست نه ده، لکه څرنگه چې د هغه سړي اقتداء صحت نلري چې د «الله» لفظ له امام سره ووایي او «اکبر» ترامام مخکې ختم کړي. (درمختار ص۲۷ ج۱ کتاب الصلوة)

(په اول صورت کې د نه صحت وجه داده چې ترڅو پورې امام پوره جمله اداء کړې نه وي د لمانځه شروع کوونکي نه گڼل کیږي. او مقتدي خو مخکې له دې چې امام په لمانځه پوره شروع وکړي، ده د «اکبر» ټکی پوره کړی؛ چې دا درست نه ده.) او په دوهم صورت کې د نه صحت علت دادی، چې مقتدي تحریمه (الله اکبر) د قیام په حالت کې نه ده ویلې چې یو ضروري شرط دی، بلکې صرف «الله» ئې ویلی، او اکبرئې په رکوع کې اداء کړی، او داچې هغه د اقتداء په نیت داخل شوی وو، لهذا په دې دواړو صورتو کې تنها هم شروع کوونکی نه گڼل کیږي، (رفعت)

**مسئله**: که چاله نیت پرته لمونځ پیل کړ، بیا ورته یاد شوه چې نیت ئې نه وو کړی او یا ئې غلط نیت کړی، مثلاد ماپښین پرځای ئې د مازدیگر نیت تړلی وو. نو اوس د نیت وخت تیر شوی، د لمانځه له شروع کیدلو وروسته نیت څه اعتبار نلري، له سره به نیت تړي او تکبیر تحریمه به ووایي بیا به لمونځ پیل کړي. (فتاوی رحیمیه ص۲۰۳ ج۴، شامی ص۵۸۷ ج۱)

## له امام څخه مخکې د رکن اداء کول

**مسئله**: که چیري یو مقتدي کوم رکن د خپل امام تر اداینې له مخه اداء کړي، مثلاً مقتدي ترامام مخکې رکوع ته ولاړ شي، ترڅو چې امام ورځي دی بیرته راپورته سي، یعني مقتدي نه د هغه رکوع له امام سره اداء کړه او نه ئې ترهغه وروسته اداء کړه، له امام سره ئې یو

خای سلام وګرځاوه نو په دی صورت کې د مقتدی لمونځ ونه شو.
(درمختار ص۵۷۶ج۱)

**مسئله** : امام لا تر اوسه په اوله سجده کې ده ، مقتدی بیا دواړه سجدی پوره کړی ، نو دده دغه دوهمه سجده اعتبار نلری ، بله سجده راګرځول ورباندی واجب ده ، کنه نو لمونځ ئي فاسد دی. (درمختار ص۶۶۲ج۱)

## معذور سړی پخپل کور کې په امام پسی اقتداء کولای شی ؟

پوښتنه : زه یو معذور یم د جمعی د لمانځه لپاره مسجد ته نشم تللی ، جومات می کور ته ډیر نژدی دی ، د جماعة لمونځ پوره اوریدلای شم ، نو آیا زه کولای شم چې له کوره په امام پسی اقتداء وکړم ؟

جواب :ـ د اقتداء لپاره صرف دا شرط نه دی چې د امام آواز به اوریدل کیږی. بلکه دا هم ضروري ده چې صفونه به تر هغه ځایه پوری رسیږی چیری چې دی ولاړ وی ؛ په منځ کې به کوم حائل نه وی ، که چیری ئي په منځ کې نهر ، یا سړک یا دیوال وی ، نود مقتدی اقتداء نه صحيح کیږی ، نو له همدي کبله ستا اقتداء په امام پسی چې هغه په جومات کې وی ، صحت نلری. خو دا چې ته مسجد ته نشی تللی دعذر له امله ، نو خپل د ماپښین لمونځ په کور کې اداء کره.
(آپ کی مسائل ص۲۶۳ج۲)

که چیری تر کوره او یا تر هغه ځایه پوری چې ته لمونځ کوی ، صفونه در ورسیږی په منځ کې موکومه خلا پاتی نشی ، نو په دی صورت کې دا اقتداء صحي ده ، -- محمد رفعت)



## ایا له تلویزون نه اقتداء کیدای شی ؟

سوال : کله ناکله پر تلویزون باندی مستقیما د حرم شریف څخه جماعة ښکاره کوی ، نو که سړی تلویزون نهام کښیږدی آواز ئې لوړ شی ، اقتداء پسی صحي ده کنه ؟ لمونځ کیدلای شی ؟

جواب : دا کومه طریقه چې تا ذکر کړه په دې توګه نه اقتداء صحیح ده او نه ستا لمونځ اداء کیږی. (آپ کی مسائل ص۲۶۳ج۳)

**مسئله** : جماعة د مسجد په دننه کې کیږی او پردرو باندي پردې څړیږي (یعنی د دوو ستنو ترمنځ) تردې د باندی د خلکو جماعة صحت لری. (فتاوی دارالعلوم ص۳۳۸ج۱، بحواله ردالمحتار ص۵۴۸ج۱)

(یعنی د پردې ترشا لمونځ صحیح دی په داسی حال کې چې دننه ځای نه وي ، ـ محمد رفعت)

**مسئله** : که امام پر مصلی باندی وی او مقتدی پر فرش ولاړ وی ، صحت لری.

**مسئله** : که امام پر چوکۍ باندی او مقتدیان پر فرش وی ، نو که چوکۍ د یو لویشتې په اندازه لوړه وی نو مکروه ده او که تردې کمه وی ، بیا صحیح ده. (فتاوی دارالعلوم ص۳۲۳ج۳ بحواله ردالمحتار ص۶۰۴ج۱)

**مسئله** : که نور خلک د لمر په ګرمۍ کې پر لمانځه ولاړ وی او یو تن له ګرمۍ څخه د ځان ساتلو په غرض سایی ته ودریږی ، لمونځ ئي درست دی. (فتاوی دارالعلوم ص۲۶۱ج۳)

مګر داسی کار کول نامناسب دی ، ځکه په دې سره به هرومرو دی له صفونو څخه لرې بیلیږی ، چې دا ښه عمل نه دی ، ولی د ګرمۍ لپاره

هم باید نوري لارې چارې ولټولي شي، ترڅو لمونځ کوونکو ته تکلیف نه وي. (محمد رفعت)

**مسئله:** که ئي په زړه کې مازیګر وي او ترخوله ئي ماپښین ووزي، نو په دې کې څه حرج نشته، لمونځ وشو.

(فتاوی رحیمیه ص۲۰۲ج۴بحواله ردالمحتار ص۳۷۵ج۱)

## په لمانځه کې د امام پیروي په څه وخت کې ضروري ده؟

**مسئله:** په لمانځه کې د امام پوره متابعت کول د مقتدي لپاره د امامت له شرائطو څخه دي. د احنافو په نزد له امام څخه د مقتدي پیروی، ۳ قسمه لري. یو داچې د مقتدي عمل به د امام له عمل سره بلکل متصل وي، (یعني کوم وخت چې امام نیت وتړي، مقتدي به هم سمدستي نیت ورسره تړي) د امام له رکوع سره به سمدستي رکوع کوي او چې هغه سلام ګرځوي، نو دی به هم سلام ورسره ګرځوي، که کله داسې پیښه سي چې مقتدي له امام نه مخکې رکوع ته ولاړ شي، تر هغو پورې وځنډیږي، ترڅو امام هم رکوع ته ورشي. رکوع ورسره پوره کړي دواړه راپورته شي، نو دا صورت هم د امام په پیروي کې حساب دی.

دوېم داچې مقتدي د امام له عمل څخه وروسته عمل پیل کړي، په دې توګه چې په هر رکن باندې شروع اول د امام وي، خو چې هغه لا پوره شوی نه وي په پاتې حصه کې مقتدي ورسره پوره شرکت وکړي.

دریم داچې مقتدي د امام پیروی کوي خو په تاخیر او ځنډ سره، دارنګه چې کله امام یو عمل انجام کړي نو مخکې له دې چې امام په



بل رکن پیل کړي وي مقتدي هم هغه عمل انجام کړي، په دې توګه صورتونو کې دا تسلیمیږي چې مقتدي د امام پیروي کړې ده. مطلب داچې امام رکوع وکړه، او ورسره ورسره مقتدي هم رکوع پوره کړه. یائي له هغه نه وروسته وکړه چې له امام سره په رکوع کې شامل شوی و.

او یا داچې له رکوع څخه د امام د پورته کیدلو نه بعد وي، لیکن مخکې له دې چې امام سجدې ته د ټیټیدو میلان وکړي، نو مقتدي د امام پیروي وکړه، په دغو دریو صورتونو کې په هریوه کې متابعت ترسره شو. (کتاب الفقه ص۶۶۸ج۱)

## په فرضي اعمالو کې پیروي کول

**مسئله:** په لمانځه کې چې کوم شیان فرض دي، په هغوی کې د امام پیروي کول فرض دي، او چې کوم واجب دي په هغوی کې متابعت کول واجب دي، او کوم چې سنت دي په هغوی کې متابعت سنت دي

مثلاً اوس که په رکوع کې د امام پیروي پرېښودله شي، په دې توګه چې له امام سره رکوع ته ولاړ شي، خو تر امام مخکې راپورته شي، نو په دې رکوع او د راتلونکې رکعت په رکوع کې هم همداسې شمولیت وکړي، نو لمونځ باطل شو، ځکه چې په فرض عمل کې ئي متابعت ونکړ چې فرض و، دا راز تر امام وړاندې ئي رکوع او سجده وکړه نو دغه رکعت چې دا دول عمل پکې وشو، رایګان (بیکاره) ولاړي، فرض اداء نشو.

د دوېم رکعت افعال لومړي ته، د دریم رکعت افعال دوېم ته، د څلورم دا دریم ته منتقل کیږي او د ده پر ذمه یو رکعت پاتې کیږي چې

د امام له سلام ګرځولو نه وروسته ئي وربانديں اعاده واجب ده. که ئي داسي ونکړل (يعني وروسته ئي دغه يو رکعت اداء نکړ، نو لمونځ باطل ګرځي)

همدارازکه ئي په قنوت (د وترو دوعا) کي د امام متابعت ونکړ، نو ګناه ئي وکړه، ځکه چي واجب ئي ترک کړ، او که د رکوع په تسبيح کي ئی متابعت ونکړ، نو سنت ئي ترک کړ. (کتاب الفقه ص۶۶۹ج۱)

**مسئله**: په اوله ناسته کي که چيري امام د مقتدي د تشهد (التحيات) پوره ويلو نه مخکي ولاړشی، نو مقتدی به خپل تشهد پوره ولولی او بيابه ولاړشي، او د وترو په قنوت کي که چيري امام د مقتدي د قنوت ختميدلو نه وړاندی رکوع ته ولاړشي، نو متابعت به ئي کوي، د دي دواړو صورتو ترمنځ فرق دادی چي دعاء قنوت چي څومره اندازه وويلی شی واجب پري اداء کيږي مګر تشهد پوره ويل واجب دي. (فتاوی دارالعلوم ص۳۷۰ج۳، شامی ص۸۶ج۱)

**مسئله**: په اخيره ناسته کي چي کله امام سلام وګرځوي، مقتدي به هم سلام ګرځوي، البته که کوم مقتدي تشهد پوره ويلی نه وی، نو هغه دي پوره کړی بيا دي سلام وګرځوي. (فتاوی دارالعلوم ص۳۶۸ج۳)

## په کومو ځايونو کي چي امام پيروی بايد ونشي

**مسئله**: څلور خبري داسي دي چي په هغوی کي متابعت لازمي نه دی

۱- دا چي امام عمداً يوه سجده زياته وکړی نو په هغه کي به متابعت نه کيږي.



۲- د اخترونو په لمانځه کي که چيري امام تکبيرونه له شپږو نه زيات وواييي، کوم چي له صحابه کرامو څخه مروي وی نه دي، متابعت ئي نه کيږي.

۳- که امام د جنازي په لمانځه کي تکبيرونه زيات کړي، متابعت به ئي نه کيږي.

۴- څلورم کله چي امام د فرضو له مکمل کولو او اخيره ناستی له پوره کولو نه وروسته په هر بل رکعت ته ولاړشی دغه مهال دي هم د امام پيروي نه کيږي. که امام بيا هم داسي وکړی او هغه زيات رکعت پسی پوره کړي سجده وکړی، نو مقتدي دي پرخپل سر سلام وګرځوی له لمانځه څخه دي جدا سی، او که چيري بيا امام سجده ونکړی بيرته اخيری ناستی ته راوګرځي او بيا سلام وګرځوی، نو مقتدی ته هم پکار ده چي دلته ځينی جدا نشي، له امام سره يو ځای سلام وګرځوی، مګر که امام له اخيری قعدی (ناستی) پرته سيده، بل فاضل (زيات) رکعت ته او چت شو او سجده ئي هم وکړه نو د ټولو لمونځ باطل شو. دا لاندينی نه خبری داسی دي چي که چيری امام هغه پريږدی، نو مقتدي ته پکار ده چي په هغه کي د امام پيروي ونکړی (يعني پري يی نږدی. چي هغه نه (۹) خبري دا دی:

په تکبير تحريمه کي دواړه لاسونه پورته کول، ثناء (سبحانک اللهم) ويل، د رکوع لپاره تکبير ويل، د سجدي تکبير ويل، په رکوع او سجده کي تسبيح ويل، سمع الله لمن حمده» ويل، التحيات ويل، السلام عليکم ورحمة الله ويل، په عيد الاضحی کي تکبيرات التشريق ويل، دا نه ۹ امور هغه شيان دي، چي که امام ئي کله

پرېږدي ، نو مقتدي ته پکار ده چې د امام پیروي ونکړی ،بلکې اداء بې کړی ، پخپل سر. (کتاب الفقه ص۶۷۱ج۱)

همدارنګه څونوري خبري داسی شته چې که امام هغه پرېږدي ، نو مقتدي ته ئې هم پرېښودل پکاردی ، هغه پنځه خبری دا دي: د اختر تکبیرونه ، لمړی ناسته ، سجده تلاوت ، سجده سهو او دعاء قنوت. دا په هغه صورت کې که چیری د رکوع د تیریدلو احتمال وی که دا اندیښنه نه وی نو بیا قنوت لوستل پکاردی. وړاندی ویل شوی چې په امام پسی قرآن ویل مکروه تحریمي دی. له همدې وجی په دې کې د هغه پیروي جواز نلری

مسئله : که مقتدي تشهد (التحیات) پوره کړی وی ، نو په سلام کې به د امام پیروي کوی.

مسئله : په سلام ګرځولو کې د امام د متابعت ترټولو بهترینه طریقه داده چې مقتدی له امام سره جوخت یو ځای سلام ونرځوی ، نه وړاندی وی ، نه وروسته.

مسئله : که چاتر امام وروسته سلام وګرځاوه ، نو ګویا أفضله طریقه ئي پرېښودله. مګر که چا تکبیر تحریمه له امام نه وړاندی ووایه ، نو لمونځ ئی صحیح نه دی ، او که ئي بلکل جوخت ورسره ووایه: بیاهم درست نه دی ، او که ئي ورسته په تأخیر او ځنډ سره ووایه نو بیائي د تکبیر تحریمه د ویلو افضل وخت فوت او نظرانداز کړ. (کتاب الفقه ص۶۷۱ج۱)

مسئله : ځینی خلک داسی عادت لری چې د سلام ګرځولو په وخت کې غاړه ښه کږه کړی او بدن ټول ورسره وګرځوی ، چې دا یوه بې بنیاده خبره ده ، هیڅ اصل نلری. (اغلاط العوام ص۶۳)



## د لمانځه په مخکې تیریدل

د لمونځ کوونکي په وړاندی تیریدل حرام دی. که څه هم لمونځ کوونکی له څه عذره پرته ستره هم درولی نه وی په مخکې ، همدارنګه لمونځ کوونکی ته هم دا حرام دی چې د خپل لمانځه په وجه د خلکو د تیریدو راتیریدو په لاره کې خنډ جوړ کړی ، په دې توګه چې په داسی یو ځای کې ودریږی چې په مخکې ئي د خلکو ګڼه ګوڼه زیاته وی او دی خپلي مخي ته څه ستره هم ونه دروی ، په داسی صورت کې که څوک دهغه په مخکې تیرشی نو ګناه ئي پرده باندی په دې وجه ده چې په داسی نامناسب ځای کې پرلمانځه دریدلی دی. او که په همداسی ځای کې بیاهم دی ودریږی خو څوک یی ترمخ تیرنشی نو څه ګناه نشته باندی ، د سترې نه ښودل ګناه نه ده ځکه چې ستره پخپله یو واجب امر نه دی.

که چیری لمونځ کوونکی د تیریدونکي سرې لپاره خنډ وی ، او تیریدونکي ته هم دا زمینه برابره وی چې له بلي لارې تیرشی ، خوله دې سره سره بیاهم د لمانځه ترمخ تیرشی نو دواړه ګناهکار دي او د دې برعکس بیا پریوه ګناه نشته ، هغه دا چې لمونځ کوونکی د چا لپاره د تیریدلو خنډ نه وی او تیریدونکي ته هم بله هیڅ لاره د تیریدلو نه وی نو بیا تیریدل صحیح دی او ګناه نشته پریوه باندی.

او که په دوی دواړو کې د یوه طرفه غلطي وشوه ،نو بیا ګناه پر هغه شخص ده. پردا بل نه ده .(کتاب الفقه ص۴۲۰ج۱، درمختار ص۵۸۱ج۱، نظام الفتاوی ص۲۵ج۱)

«ستره» هغه شی ته ویل کیږی چې یو لمونځ کوونکی ئې د لمانځه پرمهال مخی ته ږدی هغه که د لکړي وی ، یا کومه ستن وی ، یا دیوال

او یا بل داسې شئ وي، د دې سترې له دریدلو نه مطلب او مقصد دا وي چې د هغې په وسیله د سجدې ځای بېل شي، او څوک که وغواړي د لمونځ کوونکي په مخکې تیر شي، نو ګنهکار به نه وي.

د سترې دریدلو ارتیا هغه وخت او په هغه ځای کې رامنځ ته کیږي چیرې چې کوم محفوظ او بند ځای نه وي، پریو خالي میدان څوک پرلمانځه ودریږي، که په مسجد یا بل داسې ځای کې نه وي، پریو خالي میدان څوک پرلمانځه ودریږي، که په مسجد یا بل داسې ځای کې وي، نو بیا یې هیڅ ضرورت نه وي د سترې اوږدوالی به له یوه لاس څخه کم نه وي، او پنډوالی به یې لږترلږ د یوې ګوتې برابر وي، د جماعة د لمانځه پروخت د امام ستره د ټولو مقتدیانو لپاره کافي ګڼله کیږي، یعنې که چیرې د امام په وړاندې ستره وي، نو د مقتدیانو په مخکې تیریدل هیڅ باک نلري، که څه هم د دوی په مخکې شئ نه وي، مګر د سترې ترشا تیریدل صحیح نه دي، خو که په جماعة کې د ګډون لپاره کوم سړی راشي په لومړي صف کې خالي ځای ووینی، نو هغه ته جائز ده چې د دویم صف ترمخ تیرشي او خالي ځای ته ځان ورسوي، په جماعة کې شریک شي، په دې صورت کې پره د دویم صف پرغاړه کیدلای شي، چې ولې ئې په مړی صف کې خالي ځای پرینبوده، لمړی به یې هغه صف پوره کاوه
(سظاهرحق ص۶۲۵ج۱، هدایه ص۸۹ج۱، شرح نقایه ص۹۶ج۱، کبیری ص۳۶۸، علم الفقه ص۹۳ج۲، کتاب الفقه ص۴۲۷ج۱)

**مسئله**: ستره درول سنت دي. (هدایه ص۸۹ج۱)



**مسئله**: د سترې پرځای که په مخکې څادر، سایوان، مصلی او یادی ته ورته بل شئ دلمونځ کوونکي په وړاندې وي، نو هغه کافی ده ،داضروري نه ده چې لکړه به وي. (فتاوی دارالعلوم ص۳۲ج۴، ردالمحتار ص۵۹۵ج۱)

**مسئله**: دلمونځ کوونکې په مخکې تیریدل ګناه ده، مګر لمونځ نه فاسدوي، او که څوک په ناپامی اوغلطی سره تیرسی، نو معذوربلل کیږي.

**مسئله**: که څوک په لویه میدانی او یالوی مسجد کې لمونځ کوي، نو ترمنځ ئي دوه درې صفه وړاندی د تیریدلو ګنجایش سته، او په کوچنیو مسجدونو کې خو قطعا د لمونځ کوونکې ترمخ د تیریدلو اجازه نشته. (آپ کی مسائل ص۲۹۴ج۳)

**مسئله**: د لمونځ کوونکې ترمخ تیریدونکې سړی ته که دامعلومه شی چې دلمانځه ترمخ تیریدل څومره عظیمه ګناه ده، نو په کلونو کلونو به پرځای ودریږی خو د تیریدلو جرأت به ونکړی.
(فتاوی رحیمیه ج۳بحواله مشکوة ص۷۴ج۱)

## د لمونځ کوونکې په وړاندی د تیریدلو اندازه

**مسئله**: چیرې چې د لمونځ کوونکې نظر رسیږي، یعنې نظر ئې د سجدې پرځای لګیږي؛ ترهغه ځایه پورې به مخ ته نه تیریږي، بیاکه چیرې یو سړی د باندی پرفرش لمونځ کوي، نو د دنني په درجه کې مخی ته تیریدلای شي. (فتاوی دارالعلوم ص۱۰۱ج۴)

**مسئله**: په غټ مسجد او ځنګل کې خو د لمونځ کوونکې څخه په دومره فاصله کې تیریدل جائز دي چې سترګې د سجدې پرځای

ولګیږي ، له دې ورسته چې ترکومه ځایه پوري دا ته په نظرځه نه ورځي . (امدادالاحکام ص۶۶۲ج۱)

**مسئله** : که چیرې دوه لمونځ کوونکي وروسته شاته لمونځ کوي ، دمخکي تن لمړی فارغ شو ، نو دی اوس ښي ، یاچپ اړخ ته تللای شي ، دا جائز دی. (فتاوی دارالعلوم ص۱۴۸ج۴)

**مسئله** : د بیت الحرام طواف کوونکي ته رواده چې د لمونځ کوونکي ترمخ تیرشي ، همدا راز دکعبې شریفې دننه او د مقام ابراهیم شاته د لمونځ کوونکي په مخکي تیریدل جائز دی. او داهم جوازلري چې د تیریدونکي او لمونځ کوونکي ترمنځ ستره نه وي. (کتاب الفقه ص۴۳۱ج۱)

(داځکه چې دلته مجبوري ده ، محمد رفعت قاسمي غفرله)

## د لمانځه فرائض

دلته به د لمانځه فرائض ، واجبات ، سنن ، مستحبات ، مفسدات ، او مکروهات په لیکلې بڼه ذکرکړو ، ترڅو داڅرګنده شي چې دلمانځه د اداء کولو دا پورتنۍ طریقه کې کوم شئ فرض دی او کوم واجب ، کوم سنت او کوم مستحب دی ، او د کوم یوه په نه رعایت کولو سره لمونځ ته نقصان رسیږي ، د لمانځه فرائض ٦ شپږ دي چې په دې شپږو کې پنځه د لمانځه ارکان دي ، یعنې لمونځ له هغوی څخه جوړ دی او دوی د لمانځه اجزاء دي ، اوشپږم یعنی لمونځ په خپل فعل سره پای ته رسول ، رکن نه دی .

۱- قیام (دریدل) دومره څنډ کول فرض دی چې په هغه کې فرض قرائت وویلای شي. د دریدلو اندازه فقهاؤو په دې ډول بیان کړې .



چې که لاس وغزول شي نو د ځنګانه ترسترګیو پورې نه رسیږي. (مراقی الفلاح)

قیام تنها په فرائض او واجب لمونځونو کې فرض ده ، له دې پرته په نورو کې فرض نه ده.

**مسئله** : کوم سړی چې د قیام توان نلري ، پرهغه باندې فرض نه ده.

۲- قرائت: یعنی په لمانځه کې د قرآنکریم لوستل ، د قرآنکریم دیوه آیة لوستل فرض دی ، که غټ وی ، که ووړ ، مګر شرط دا دی چې لږ ترلږه له دوو لفظونو څخه به جوړ وی ، لکه «ثم نظر» او که چیرې یو لفظ وی لکه: «مدهامتان » یا یو حرف وی لکه: (ص، ق ، وغیره...) یادوه حرفه وی لکه : حم ، و غیره یاڅو حروف وی لکه : الم ، حم ، عسق ، او داسې نور... نو په دې ټولو صورتونو کې د داسې یوه آیة له ویلو نه فرض نه اداء کیږي. (مراقی الفلاح ، درمختار)

**مسئله** : په فرض لمونځو کې یوازې په دوو رکعتونو کې قرائت فرض دی ، دا هم تخصیص نلري چې په اولو دوو رکعتونو کې به وی او که په وروستیو کې او یا په منځنیو دوو کې ، لکه د ماښام په لمانځه کې که څوک په اول او دریم رکعت کې قرائت ووایي په دویم کې نه ، یایې په دویم کې ووایي په لمړي کې یې نه ووایي. نو په هرصورت فرض اداء کیږي. (کنزالدقائق، درمختار ، مراقی الفلاح)

**مسئله** : دوتراو نفل لمونځونو په ټولو رکعتونو کې قرائت فرض دی

**مسئله** : په امام پسې شاته مقتدی ته د قرائت ویل ضرورت نشته ، مګر مسبوق ته څوک چې یو رکعت یازیات ځینې تیرشوي وي ، په

هغو تیروشویو رکعتونو کې چونکه امام نشته نو ځکه ده ته د قرائت ضرورت شته.

۳- رکوع په هر رکعت کې یو ځل رکوع کول فرض دي، د رکوع اندازه فقهاؤو داسې بیان کړیده چې دومره اندازه سړی ټیټ شي چې دواړه لاسونه ئې ترځنګانه سترګیو پورې ښه ورسیږي او صرف دا ټیټیدل فرض دي، دانه چې ترڅه ځنده پورې دغسې ټیټ پاتې کیدل فرض دي.

**مسئله**: که یو سړی د بوډاتوب او کمزورۍ له امله پرملا کړوپ (کج) وي، همیشه داسې ښکاري لکه د رکوع په حالت کې، نو هغه ته په رکوع کې صرف سر ټیټیدل پکاردي. (مراقی الفلاح)

۴- سجده: په هر رکعت کې دوې سجدې کول فرض دي، یوه سجده په قرآنکریم او بله سجده په احادیث او اجماع سره ثابته ده.

**مسئله**: په سجده کې د یوې پښې ګوتې، یو ګونډه (د ځنګانه سترګې) او تندی پرځمکه لګول سجده بلل کیږي، که کوم چاته څه عذر او تکلیف وي، تندی نشي لګولی، نو هغه ته یوازې د پوزې اینښودل کافي دي. (که ئې د هغه هم وس درلودی)

۵- أخیره ناسته: هغه ناسته چې دلمانځه په اخیر کې د دواړو سجدو نه وروسته کیږي تردومره وخته پورې انتظار کول چې التحیات تراخیره پورې وویلای شي، له دې نه زیات کښیناستل فرض نه دي.
(درمختار، مراقی الفلاح)

۶- لمونځ په خپل فعل باندې پای ته رسول، یعنې د ارکانو ترختمیدلو وروسته یو داسې عمل ترسره شي چې د لمانځه سره منافي



وي، مثلاً، السلام علیکم وواییې یا له قبلې څخه مخ واړوي. یا بل کوم داسې فعل انجام کړي. (علم الفقه ص۶۱ج۲، هدایه ص۹۶ج۱، شرح نقایه ض۶۸، کبیری ص۲۷۵، کتاب الفقه ص۳۲۰ج۱)

## د لمانځه د فرائضو خلاصه

فرائض: ۱- قیام ۲- قرائت ۳- رکوع ۴- سجده ۵- اخیره ناسته ۶- لمونځ په خپل فعل پای ته رسول د واجب قرائت اندازه.

**مسئله**: د نفل او وتر لمانځه په هر رکعت کې او د فرض لمانځه په لومړیو دوو رکعتونو کې د سورة فاتحې ترڅنګ یوه بل سورة لوستل واجب دي، چې ترټولو وړوکې سورة وي لکه سورة کوثر یا د هغه برابر د قرآنکریم آیتونه، مثلاً ۳ کوچنې کوچنې آیتونه یا یو لوی آیة په لوستلو سره امر واجب آداء کیږي، کوچنې ایات مثلاً: «ثُمَّ عَبَسَ وَبَسَرَ ۲۲ ثُمَّ أَدْبَرَ وَاسْتَكْبَرَ» په دې کې لس الفاظ دي، او مشدد حروف چې په دوو شمیر کې نو دیرش حروف کیږي، او له اوږده آیة څخه په هر رکعت کې دومره اندازه د قرآنکریم ولوستله شي نو واجب اداء کیږي. لهذا که له آیة الکرسي څخه صرف دومره وویل شي، مثلاً: «الله لااله الاهوالحی القیوم لاتأخذه سنة ولانوم»—

(کتاب الفقه ص۳۸۰ج۱، صغیری ص۱۵۰، فتاوی رحیمیه ص۳۱۰ج۴، شامی ص۴۲۷ج۱)

## د لمانځه واجبات

۱- تکبیر تحریمه خاص د الله اکبر په لفظ سره ویل، که چیرې د دې له هم معنی لفظ څخه آداء شي، مثلاً «الله اعظم» او یا داسې بل لفظ... نو واجب اداء نشول.

۲ - له تکبیر تحریمه وروسته دومره اندازه دریدل چې سورة فاتحه او ورسره بل کوم سورة ولوستلای شي. (درمختار، شامی)

۳ - سورة فاتحه د فرض لمونځو په دوو رکعتونو کې او د نورو لمونځونو په ټولو رکعتونو کې یو ځل ویل.

۴ - له سورة فاتحې نه وروسته د یو بل سورة لوستل، د فرض لمونځو په دوو رکعتو کې او د نورو ټولو لمونځونو په ټولو رکعتونو کې، او دا سورة به لږ ترلږه ۳ آیة وي، که پوره سورة وي او که د یو سورة جزء وي.

۵ - لومړی سورة فاتحه لوستل، او بیا سورة لوستل، که چیری یو څوک تر سورة فاتحه وړاندې بل سورة ولولي او وروسته فاتحه ووایي، نو واجب نه اداء کیږي.

۶ - د فرض لمانځه په دوو لمړیو رکعتونو کې قرائت کول، که چیری په دویم، دریم او یا دریم څلورم کې وویل شي، خو په اول او دویم کې ونه شي نو واجب ادا نه شول که څه هم فرض اداء شول. (درمختار، مراقی الفلاح)

۷ - له رکوع نه وروسته پورته سیده دریدل، چې فقهاء کرام دغې ولاړې ته قومه وایي.

۸ - په سجدو کې دواړه لاسونه، څنګنونه، دواړې پښې او پوزه پرزمکه اېښودل. (مراقی الفلاح)

۹ - له لمړی سجدې نه ورسته فورا دویمه سجده کول، مخکې له دې چې بل رکن یا بل عمل پیل کړي، مثلا که یو سړی یوه سجده وکړي، بیا پرته له دې چې دویمه سجده وکړي؛ ولاړ شي، نو واجب



ئي آداء نشول، ځکه چې د دویمې سجدې تر اداء کولو وړاندې ولاړ شو قیامی ته. (شامی)

۱۰ - په رکوع او سجدو کې دومره ځنډېدل چې لږ ترلږه یو ځل «سبحان ربی العظیم» یا «سبحان ربی الاعلی» وویلای شي. (طحاوی، مراقی الفلاح وغیره)

۱۱ - د دواړو سجدو ترمنځ په ناستې کې لږ ځنډ کول، چې فقها ورته جلسه وایي.

۱۲ - په قومه او جلسه کې دومره ځنډیدل چې یو ځل «سبحان ربی الاعلی» یا د هغې په اندازه بله داسې کلمه وویله شي. (مراقی الفلاح)

۱۳ - اوله ناسته یعنې په دویم رکعت کې له دواړو سجدو ورسته کښیناستل، که چیرې لمونځ څلور رکعتي وو.

۱۴ - په اوله ناسته کې دومره اندازه کښیناستل چې «التحیات» په کې وویل شي.

۱۵ - په دواړو ناستو کې یو ځل «التحیات» لوستل، که بیخي ونه ویل شي او یا تر یو ځل زیات ولوستل شي نو واجب ترک سول.

۱۶ - په لمانځه کې له خپله ځانه داسې فعل نه کول چې د فرضو یا واجبو د تاخیر سبب وګرځي. (درمختار شامي وغیره) مثلا: د سورة فاتحې له لوستلو نه وروسته ترډیره پوري چپ پاتې کیدل، چې دا د دوهم سورة د تأخیر سبب کیږي. ۲ - دوې رکوع کول، چې دا د وهمه رکوع د سجدې د ځنډ (تاخیر) سبب کیږي ۳ - درې سجدې کول، چې دادریمه سجده د قیامې او قعدې د تاخیر سبب کیږي. ۴ - په اول رکعت یا دریم رکعت په اخیر کې زیات کښیناستل، چې دا

ناستې د دوهم یا څلورم رکعت د قیام د تاخیر سبب کیږي. (شامي)
۵-په دویم رکعت کې له «التحیات» نه وروسته تردېره کښیناستل دومره اندازه چې په هغه وخت کې یورکن لکه رکوع اوداسې بل اداء کیدای شي. (علم الفقه ص۶۳ج۲، درمختار ص۹ج۱)

۱۷-په وترلمانځه کې دوعاء قنوت لوستل، که څه هم هره دوعاوي.

۱۸-د اخترونو په لمانځه کې له خپلو معمولي تکبیرونو څخه علاوه ۶شپږ زیات تکبیرونه ویل.

۱۹د اخترونو په دویم رکعت کې رکوع ته د تللو پروخت تکبیر ویل.

۲۰-امام ته په زوره قرائت لوستل، د سهارپه دواړو رکعتونوکې، د ماښام او ماخستن په لمړیو دوو رکعتونو کې، هغه که قضاء وي، که اداء، او د جمعې او اخترونو او تراویحو په لمونځونو کې او د روژې د میاشتې په وترلمانځه کې.

منفرد (تنها لمونځ کوونکي) ته اختیار ده چې په لوړآواز ئې وایي، که په ټیټ آواز خود لوړ آواز لپاره اندازه فقهاوو داسې بیان کړې چې کوم دوهم تن ئې واوریدلای شي، او د سوکه آواز شودنه ئې داسې کړې چې پخپله ئې واوریدلای شي، نه بل څوک.

۲۱-دامام لپاره دماپښین، مازیګرپه ټولورکعتونوکي اودماښام ماخوستن په آخوي دوه رکعتونوکي ورو(سوکه) قرأت ویل (قاضي خان)

۲۲-کوم نوافل چې په ورځ کې اداء کیږي؛ په هغوی کې په وروآواز سره قرائت کول، او چې په شپه کې اداء کیږي، په هغوی کې اختیار لري. (مراقي الفلاح)



۲۳-منفرد (یوازې لمونځ کوونکې) که چیرې د سهار، ماښام، ماخستن قضاء په ورځ کې اداء کوي، نو په هغوی کې به هم قرائت په ټیټ آواز کوي، او که په شپه د غه قضائي اداء کوي، نو اختیار او خونبه ئي ده په زوره ئي وایي که ورو (سوکه)

۲۴-که چیرې کوم سړي په ماښام او ماخستن لمانځه کې په لمړیو رکعتونو کې د فاتحې وروسته دویم سورة هیر کړي، نو هغه دې بیا په درېیم، څلورم رکعت کې له سورة فاتحې وروسته بل سورة ورضم کړي، او په لوړ آواز به په دې رکعتونو کې هم قرائت لولي، دا واجب دي.

۲۵-لمونځ د «السلام علیکم» په لفظ سره ختمول، نه په بل لفظ سره.

۲۶-دوه ځله «السلام علیکم» ویل. (علم الفقه ص۶۲ج۲، هدایه ص۷۳ج۱، شرح نقایه ص۷۰ج۱، کبیری ص۲۹۸، کتاب الفقه ص۳۸ج۱، بحر ص۳۰۲ج۱)

**مسئله**: د واجب په پرېښودلو سره لمونځ ناقص کیږي.

**مسئله**: د واجب منکر فاسق وي، او د فرض منکر کافر.

**مسئله**: واجب که کوم یو پاتې شي نو په سجده سهوه تلافي کیدای شي چې له سلام ګرځولو وروسته د سهوې سجده اداء کړي.

**مسئله**: که په قصدي توګه څوک واجب پرېږدي نو د لمانځه اعاده او راګرځول وربانديواجب دي.

**مسئله**: د واجب ترک (پرېښودل) مکروه تحریمي ده، او د مکروه تحریمي په ارتکاب سره انسان فاسق او ګناه کار ګرځي.

**مسئله**: کوم لمونځ چې له مکروه تحریمي سره اداء کړای شي، نو د هغه اعاده راګرځول لازم دي. (نماز مسنون ص۳۰۲، کتاب الفقه ص۳۷۹ج۱)

## د سنت تعریف (پیژندنه) او حکم ئې

سنت هغه عمل ته ویل کیږي چې مکلف انسان ئې په ترسره کولو سره د اجراو ثواب مستحق گرځي ، خوکه پرېښودل شي نو څه مواخذه وربانديې نشته. که یو څوک د لمانځه ټول یا یو څه سنتونه پرېږدي ؛ څه مواخذه د الله تعالی له لوري نشته ، مگر دا چې له هغه ثواب او أجر څخه به محروم وي چې په ترسره کولو کې ئې شته.

نو له همدې امله مسلمان ته دا نه ښائي چې سنت داسې یو بې حیثیت شی تصور کړي ، ځکه چې د لمانځه مقصد د الله پاک په دربارکې تقرب حاصلول دي ، چې په نتیجه کې سړی د الله پاک له عذاب څخه نجات موندلای شي او د الله پاک له نعمتونو څخه برخمن کېدلای شي. په داسې صورت کې به هیڅ یو عاقل مسلمان دا مناسب ونه گڼي چې د لمانځه د سنتونو نه د کوم یوه سنت بې قدري او بې عزتي وکړي ، او هغه پرېږدي ، ځکه چې پرېښودل ئې د اجراو ثواب څخه د محرومیت سبب کیږي ، چې دا په خپله یو عذاب دی . له نعمت ، اجراو ثواب څخه محرومیت ، خو اوس پوښتنه دا ده چې د دې علت او لامل څه دی چې شارع علیه السلام په لمانځه کې ځینې شیان لازمي او فرض گڼلي او ځینې ئې بیا غیرضروري بللي دي ؟ د دې لپاره جواب دا ده چې الله تعالی پر خپلو بندگانو د آسانۍ پخاطر د ځینو اعمالو په ترسره کولو کې اختیار ورکړي چې په آداء کولو سره ئې پخپله خوښه اجراو ثواب ترلاسه کړي ، نو اوس که څوک هغه پرېږدي له ثواب څخه به محروم گرځي ، خو عذاب به هم



وربانديې نه وي ، چې دا پخپل ذات کې د شریعت اسلامي له نیکگڼو څخه یو ه گڼله کیږي. (کتاب الفقه ص۳۸۳ج۱)

**مسئله** : د لمانځه د سنتونو پرېښودل نه د لمانځه د فساد سبب گرځي او نه سجده سهو لازموي ، بلکې هغه وخت د گناه سبب کیږي چې په قصدي توگه پرېښودل شي ، خو دا هم په دې شرط چې سنت د سستۍ او کاهلۍ په وجه پرېږدي ، نو گناه ده ، او که په دې وجه ئې پرېږدي چې سنت ته په حقارت او سپکه وگوري نو د فتوا له مخې هغه سړی کافر کیږي.
(درمختار ص۱۹ج۱، کتاب الصلاة)

## دلمانځه سنتونه

۱ - دتکبیر تحریمه د ویلو پر مهال سرنه ټیټول. (مراق الفلاح)

۲ - دتکبیر تحریمي تر ویلو وړاندې دواړه لاسونه پورته کول ، نارینه به ئې تر غوږو پورته کوي او ښځینه به ئې تر اوږو پورې ؛ خو د عذر په صورت کې نارینه هم د ښځینه په څیر اوږو پورې پورته کولای شي

۳ - دتکبیر تحریمه په وخت کې د پورته سویو لاسونو او رغوي او گوتې قبلې ته سیده کوي. (درمختار وغیره)

۴ - دلاس پورته کیدلو په وخت کې به گوتې نه ډیرې پرانیستې او نه ډیرې جوختې نیسي.

۵ - دتکبیر تحریمه تر ویلو وروسته فورا لاسونه بندول ، نارینه به یې له نامه څخه لاندې او ښځې به یې پر سینه ږدي.

۶ - دنارینه وو لپاره لاسونه داسې بندول سنت دي چه ښی لاس به پر چپ لاس کښېږدي او د ښي لاس بټه او گمچه گوته به د چپ لاس

پر مړوند راتاوکړي. او د ښځو لپاره دا دوه ضروري او مسنون نه ده ، هغوي به صرف ښي لاس پر چپ لاس ایږدي.

٧ - له لاسونو بندولو نه وروسته سمدستي «سبحانک اللهم» تر پایه لوستل.

٨ - امام او منفرد به له «سبحانک اللهم» وروسته «اعوذبالله من الشیطن الرجیم» وایي.

همدارنګه مسبوق به د خپلو هغو رکعتونو چه د امام له سلام ګرځولو وروسته ئې پوره کوي په لمړي کي «أعوذبالله» وایي. په دې شرط که دغه رکعتونه د قرائت وو.

٩ - د هر رکعت په پیل کي تر «الحمدلله» وړاندي «بسم الله» ویل.

١٠ - امام او منفرد ته د «سورة فاتحه» له ختمیدلو سره آمین په کراره ویل. که چیري قرائت په جهر (لوړ اواز) سره و. نو ټول مقتدیان به په کراره «اٰمین» وایي.

١١ - آمین په سوکه اواز سره ویل.

١٢ - د قیام په حالت کي د دواړو پښو ترمنځ د څلورو ګوتو په اندازه فاصله پرېښودل.

١٣ - د سهار او ماپښین فرض لمونځونو کي له «سورة فاتحې» وروسته د طوال مفصل سورتونه ویل ، د مازیګر او ماخستن په وخت کي اوساط مفصل او په ماښام کي قصار مفصل په دې شرط چه د سفر او یا ضرورت حالت نه وي. د سفر او ضرورت په وخت کي چي کوم سورة آسانه وي ویلی سي.



١٤ - د سهار د فرضو په لومړي رکعت کي د دویم په پرتله غټ سورة لوستل پکار دي. (شامي)

١٥ - رکوع ته د تللو پر وخت «الله اکبر» ویل په دي توګه چي تکبیر او رکوع به یو ځای سره پیل کیږي او رکوع ته په رسیدلو سره به تکبیر ختمیږي.

(منیة ،غنیة وغیره)

١٦ - نارینه به د رکوع په حالت کې په دواړو لاسونو د ځنګانه سترګی کلکي نیسي او ښځي به صرف لاس وړاندي ږدي. (غنیة)

١٧ - نارینه به په رکوع کې ګوتي پرانیستي پر ځنګنونو ږدی او ښځی به یې سره نښتی ږدی.

١٨ - د رکوع په حالت کې به پنډۍ سیده ږدي.

١٩ - نارینه به په رکوع کې په ښه ډول تیټیږی چي اوږي او ملایي سره برابر شي او ښځی به صرف دومره تیټیږی چي لاسونه یي تر ځنګنو پوري ورسي . (مراقی)

٢٠ - په رکوع کې لږ تر لږه دري ځله «سبحان ربی العظیم» ویل.

٢١ - په رکوع کې به نارینه دواړه لاسونه له ځنګو څخه بیلوی.

٢٢ - په قومه کې به امام یوازی «سمع الله لمن حمده» ، وایی او مقتدی به صرف ، «ربناولک الحمد» او منفرد به دواړه وایي

٢٣ - سجدې ته د تللو پر وخت الله اکبر ویل.

٢٤ - سجدې ته د تګ په وخت کې لومړی ځنګنونه لګول بیا لاسونه، بیا پوزه او بیا تندی لګول. همدارنګه د بیرته راپورته کیدلو په وخت کې اول پوزه بیا تندی بیا لاسونه او بیا ځنګنونه راپورته کول. (مراقی)

۲۵ - د سجدې په حالت کې د دواړو لاسونو ترمنځ د مخ ایښودل.
(شرح وقایه)

۲۶ - د سجدې په وخت کې به نارینه خپل نس له ورنونو څخه جدا کوي او خپل څنګونه (بازوګان) به له بغلونو څخه لیرې ساتي. همدا راز څنګلې (لیچونه) به له ځمکې پورته کوي، مګر ښځې به د دې بالعکس کار کوي یعنې ګیډه به له ورنو سره، څنګلې به له بغلو سره او لیچونه به له ځمکې سره نښلوي.

۲۷ - د سجدې په حال کې به د دواړو لاسونو ګوتې بندې ساتي.
(شرح وقایه وغیره)

۲۸ - د سجدې په حال کې به د پښو ګوتې د قبلې په لوري ګرځوي
(شرح وقایه).

۲۹ - د سجدې په حال کې به دواړه څنګلونه سره نژدې کوي.

۳۰ - په سجده کې به لږ تر لږه درې ځله «سبحان ربی الاعلی» وایي.

۳۱ - له سجدې نه د راپورته کیدلو سره جوخت به تکبیر هم وایي.

۳۲ - د دواړو سجدو په مینځ کې به په هغه خاص کیفیت سره کښیني چې له دې حالت سره ښائي او بیان به یې مخکې راتلونکی دی.

۳۳ - په اوله او دوهمه دواړه ناستو کې به نارینه داډول کښیني چې ښي پښه د ګوتو پر سرو باندې جګه دروي او د ګوتو سرونه به قبلې ته ګرځوي او کینه پښه به پر ځمکه هواره ږدي او پر کښیني به. دواړه لاسونه به پر څنګنو ږدي داسې چې د ګوتو سرونه به یې د ځنګانه تر سترګیو پورې رسیدلي وي او ښځې به هم د دې برخلاف داسې کښیني، چې پر چپ ورانه به کښیني. ښي ځنګون به پر چپه کښیدي



او چپه پښه به ښي طرف ته وباسي او دواړه لاسونه به پر ځنګنو کښیږدي.

۳۴ - په تشهد (التحیات) کې د «لااله» د ویلو پر وخت به د ښي لاس د بټې او د منځ له ګوتي څخه کړۍ جوړه کړي او نوري ګوتي را بندې کړي یعنی لاس به موټ پر ځنګانه کښیږدي. یوازې د شهادت ګوته (صبابه ګوته) به غوړېدلې پرېږدي او د همدې «لااله» پر الفاظو به ئې پورته کړي او د «الاالله» ویلو پر وخت به یې بیرته راکښته کړي او پاتې نوري ګوتي به همداسې پر خپل حال بندې پرېږدي.

۳۵ - د فرض لمانځه د لومړیو دوو رکعتونو نه وروسته په هر رکعت کې سوره فاتحه ویل. (مراقی)

۳۶ - په اخیره ناسته کې له التحیات نه وروسته درود شریف لوستل.
(مراقی الفلاح)

۳۷ - له درود شریف نه وروسته دوعاکول. داسې دعا چې د قرآن او احادیث څخه ثابته وي که چېرې داسې دعا ولوستله سي چې له قرآن او حدیث څخه ئې ثبوت نه وي راغلی بیا هم جائز دی، په دې شرط چې په دعاء کې د داسې شی طلب وي چې د هغه غوښتل له الله پر ته له بل چا څخه ممکن نه وي. (بحرالرائق)

۳۸ - د السلام علیکم ویلو پر وخت مخ یوې او بلې خواته ګرځول.
(مراقی الفلاح).

۳۹ - امام ته پکار ده چې په لوړ آواز سلام وګرځوي.

۴۰ - اول ښي طرف ته سلام ګرځول بیا چپ طرف ته (مراقی)

۴۱ - دویم سلام به د اول په نسبت په ټیټ آواز ګرځوي (مراقی)

۴۲ - امام ته د سلام گرځولو پروخت د ټولو مقتدیانو نیت کول که هرڅوک ئي په جماعت کي ورسره گډون ولري، حتی د فرښتو (کراماکاتبین) نیت به هم کوي. همدارنگه مقتدی به هم هریو د نورو ټولو مقتدیانو نیت کوی.

(مراقی الفلاح، علم الفقه ص۶۸ تر ۷۱ پوری ۲، کتاب الفقه ۳۷۲ تر ۳۸۵ ج۱ نمازمسنون ص ۳۱۰)

## د لمانځه مستحبات

۱ - د تکبیرتحریمه د ویلو پر وخت به نارینه خپل لاسونه له لستوڼي څخه را وباسي په دې شرط که څه عذر نه و، لکه یخني او یا بل څه، او ښځو ته مستحب دا دی چي پټ ئي کړي لاس را و نه باسي. (مراقی)

۲ - د ولاړي (قیام) په حالت کي د سجدې ځای ته کتل، په رکوع کي پښو ته کتل، په سجده کي پوزې ته کتل، په ناسته کي زنگنو ته کتل، د سلام گرځولو په وخت کي اوږو ته کتل. (درمختار)

۳ - تر خپله وسه پوري، ټوخې او ارمیږي بندول - (درمختار، مراقی الفلاح)

۴ - که چاته ارمیږي ورشي او د قیام په حالت کي وي نو د ښي لاس چپه طرف دي پرخوله ږدي. او که چیري له قیام پرته په نورو ارکانو کي وي بیا به هرځای د چپه لاس چپه طرف او لستوڼي پر خوله ږدي. (درمختار)

۵ - امام به له «قدقامت الصلاة» څخه وروسته سمدستي تکبیرتحریمه وایي

۶ - په اوله او اخیره ناسته کي به هغه خاص تشهد وایي چي بیان یې تیر سو هیڅ کمښت او یا زیاتوالی به نه کوي.



۷ - په قنوت کي هغه خاصه دعا لوستل چي مخکي موذکر کړه یعني: اللهم انا نستعینک» تر پایه پوري... (شامی، علم الفقه ص ۷۴ نماز مسنون ص ۱۱۳)

مسئله: په هر رکعت کي تر الحمد لله وړاندي او د سورة د ویلو په وخت کي «بسم الله الرحمن الرحیم» ویل مستحب دی. «شرح نقایه ص۷۲ ج۱، کبیری ص۲۸»

د احنافو په نزد د مندوب، أدب او مستحب معنی یوه ده، یعنی له دي نه مراد هغه اموردی چي نبی کریم ﷺ کړي، خو همیشه ئي عملي کړي نه دي. (کتاب الفقه ص۴۲۵ ج۱)

## د لمانځه فرائض

لومړی باید په دې وپوهیږو چي فرائض د فریضة جمع ده، او په شرع کي فرض هر هغه فعل ته ویل کیږي چي پرځای کول (آداء کول) ئي په دلیل قطعي سره ثابت او لازم شوي وي. هغه فعل که خپله رکن وي او یا شرط.

کماقال فی البحر الرائق ـ فان الفرض شرعا مالزم فعله بدلیل قطعی اعم من ان یکون شرطا أو رکنا ـ (ص۲۹۰ ج۱)

او دوهمه خبره د ځان پوهوني داده چي د لمانځه د فرائضو شمېر د فقه د کتابونو په عباراتو کي مختلف راغلی، په بحرالرائق او شامي کي ۷ اووه، په عالمگیری او هدایه کي ۲ شپږ او په کبیری کي (۸) اته ذکر شوي دی. ولی په ټولو کي معتمده خبره دا ده چي د لمانځه فرائض (۸) اته دي، چي په هغوی کي شپږ زمونږ د آئمه کرامو ترمنځ متفق علیها دی. او ۲ دوه مختلف فیهما دی.

كمافي الكبيرى اما فرائض الصلوة اى اركانها التى توجد ماهيتها بموجبها فثمان فرائض، ست فرائض على الوفاق بين آئمتنا و منها ثنتان فريضتان على الخلاف بينهم. (ص۲۹۲)

متفق عليها شپږ فرائض دادي: ۱ تكبير تحريمه ۲، قيام ۳ – قرائت ۴ – ركوع ۵ – سجده ۶ – شپږم اخيره ناسته، د تشهد د ويلو په اندازه.

و ايضا في الكبيرى وهي الفرائض الست المتفق عليها تكبيرات الافتتاح (الى ان قال) والفرائض الباقيه من الست القيام والقراءة والركوع والسجو والقعدة الآخيرة مقدار قراءة التشهد (۲۹۲)

يادونه: د تكبير تحريمه په اړه بايد دا خبره په يادولرو چې هغه يو متفق عليها فرض دى. خوله دې سره سره زموږ آئمه كرامو ترمنځ پر دې ټكي اختلاف نظر شته چې وايى تكبير تحريمه شرط الصلوة دى او يا ركن الصلوة. نو په دې كې اصح او معتمد قول دا دى چې تكبير تحريمه ركن صلوة نه، بلكې شرط صلوة دى چې همدا قول د بدائع الصنائع مؤلف محققينو ته او دغاية البيان مؤلف عامه مشائخو ته منسوب كړى دى او همدا اصح قول دى. كمافي بحر الرائق

ـــ ثم اختلفوا اهل هى شرط او ركنه ففى الحاوي هى شرط فى اصح الروايتين وجعله فى البدائع قول المحققين من مشائخنا وفى غاية البيان قول عامة المشائخ وهو الأصح. (ص۲۹۱ج۱)

له همدې وجې ده چې د فرض لمانځه په تحريمه سره نفل كول جائز دى، نه بالعكس (هغه جواز نلري)

كما ايضا فى البحر – و ثمرة الاختلاف تظهر فى بناء النفل على تحريمة الفرض فيجوز عند القائلين بالشرطية ولا يجوز عند القائلين بالركنية (ص۲۹۱ ج۱)



## هغه فرائض چې په هغوى كې اختلاف دى

مختلف فيها فرائض دادى: ۱ – «خروج بصنع المصلى» يعنى له لمانځه څخه د وتلو لپاره به مصلى په قصدي توګه داسى عمل ترسره كوى چې له لمانځه سره منافى وى. چې دا د امام اعظم رحمه الله په نزد فرض دى، بخلاف امام يوسف رحمه الله او امام محمد رحمه الله، چې هغوى ئې بيا فرض نه ګڼي.

۲- تعديل الاركان، يعنى د ركنونو په وخت كې اطمنان حاصلول، په دې توګه چې ټول لمونځ ركنا بعد ركن بى له اضرابه په ښه آرامه توګه اداء كړى سى. چې لږترلږه مقدار ئې د يوې تسبيح په اندازه دى، چې دا د امام ابو يوسف رحمه الله او آئمه ثلاثة (امام مالک رحمه الله، امام شافعى رحمه الله، امام احمد رحمه الله) په نزد فرض دى، مګر د امام اعظم أبو حنيفه رحمه الله، امام محمد رحمه الله او غيرهما په نزد فرض نه دى.

كمافي الكبيرى، اما الخروج من الصلاة لصنعه اى بالفعل الناشى من المصلى ففرض عندابى حنيفة خلافا لهما الخ وتعديل الاركان وهو الطمانينة وزوال الاضطراب من جميع الاعضاء و اقله قدر تسبيحة فرض عندابى يوسف و الآئمة الثلاثة ـ (ص۲۵۶)

مطلب دا چې كه له متفق عليهما فرائضو څخه چيرى يو فرض هم قصدا يا سهوا فوت شى نو د لمانځه فرضيت بيا هم پر ذمه پاتى او اداء شوى نه دى، او كه چيرى له مختلف فيها فرائضو خصوصا تعديل الاركان قصدا پريښودل شى نو لمونځ واجب الاعادة ګرځى، او كه سهواً پاتى شى نو سجده سهو لازميږى. نو له همدې امله په لمانځه

کې ټول ارکان باید په ډیرغوراو اهتمام سره اداء شي ترڅودا ډول نقصان پکښې پیدا نشي چې دا یوه ډیره لویه بدمرغي ده.

(والتفصیل فی کتب الفقه) والله اعلم بالصواب)

## د رکعتونو شمېر او د لمانځه طریقه

سهار وخت دوه رکعته لمونځ فرض دی. ماپښین، مازیګر ماخستن، مهال څلور څلور رکعته. د ماښام وخت ۳ درې رکعته، د جمعې په ورځ د ماپښین ۴ رکعتونو پرځای د جمعې ۲ دوه رکعته فرض لمونځ دی. د اداء کولو طریقه ئې داسې ده چې د لمانځه د ټولو شرائطو په پرځای کولو سره به ولاړشي دواړه لاسونه به له لستوڼي، څادراو یا بل شي کې چې پټ وي د زاوباسي اوپورته به ئې غوږونو ته یوسي په دې شکل چې دواړه بټې ګوتې به د غوږوله نرمیو سره برابرې وي او د لاسونو د ورغوي خوا به قبلې ته وي ګوتې به نه ډیرې پرانیستي اونه ډیرې بندې وي، په داسې حال کې به د هغه لمونځ چې ته ئې اداء کول غواړي نیت وکړي او په ژبه که هم هاغه د زړه اراده څرګنده کړي بهتره ده او داضروري نه ده چې نیت دې په عربي ژبه وي، په هره ژبه چې ته ئې ویلی شی. د نیت له تړلو نه وروسته به الله اکبر» ووایي، او دواړه لاسونه به راکښته کړي ترنامه لاندې به ئې ونیسي په دې ډول چې ښی لاس پرکیڼ برسیره وي، بټه او کمچې ګوته د چپ لاس پرمړوند راچاپیره کړه اودرې نورې ګوتې همداسې پرمړوند خپرې پریږده. او بیا سمدستي دا دوعاء (ثناء) پیل کړه:

«سبحانك اللهم وبحمدك و تبارك اسمك وتعالي جدك ولااله غيرك»



که په امام پسې ولاړوي نو بس صرف همدا دوعاء ووایه، نور څه پاتې شه بل څه مه وایه که امام قرائت شروع کړی وي نو بیا یوازې الله اکبر ووایه، نوردا دعاء لاهم مه وایه، خاموش ودریږه. اوکه چیرې منفرد وي او یخپله چاته امامت ورکوي نو تر «سبحان» وروسته به «اعوذبالله ....» او بسم الله .. ووایي، بیا به سورة فاتحه پیل کړي، کله چې دې فاتحه (الحمدلله) پای ته ورسوله بیا به په ورو آواز سره آمین ووایي. په داسې شکل سره چې د «آمین» الف به نه کش کړي. «آمین» له دې وروسته به د قرآنکریم یو سورة ولولي، د سهار او ماپښین په لمانځه کې به سورة حجرات یا سورة بروج او ددوي په منځ کې سورتونه نه چې کوم یوئې خوښ وي ووایي به ئې، او د سهار د لمانځه په اول رکعت کې د دویم په نسبت لږ غټ سورة ویل ښه دی، په پاتې نورو وختونو کې په دواړو رکعتونو کې تقریبا دواړه سورتونه برابر ویل پکار دي، د یو یا دوه آیتونو د زیاتوالی، کموالي اعتبار نشته خو باید وویل چې دا په داسې حال کې ده چې سړی د سفر یا بل ضرورت په حالت کې نه وي.

که په سفر کې وي او یا په حضر کې وي خو بل ضرورت او عذرورته وي، بیا ئې خپله خوښه او اختیار دی چې د قرآنکریم هر سورة هرڅومره اندازه چې ئی خوښه وي، ووایي. (علم الفقه ص۳۵ج۲)

**مسئله**: له فاتحې وروسته او ترسورة وړاندې بسم الله باید په سوکه آواز وویله شي. (فتاوی رحیمیه ص۱۷۶ج۱)

**مسئله**: تر «سبحانك اللهم» (ثناء) وړاندې بسم الله نه ویله کیږي، بلکې وروسته ویله کیږي. (آپ کی مسائل ص۲۰۹ج۳)

**مسئله** : د مازیگر او ماخستن په لمانځه کې «والسماء و الطارق» او « لم یکن» او یا د هغوی ترمنځ سورتونو نه یو سورة لوستل پکار دی. او د ماښام په لمانځه کې له «اذا زلزلت » څخه نیولي تر آخیره پورې سورتونو نه یو سورة ویل مناسب دی ، (که یاد وی ورته ، که ئې یاد نه وی ، نو هر ځای چې ئې له قرآن کریم څخه زړه غواړی ؛ ودې لولي ــ رفعت قاسمی ).

د سورة له لوستلو نه ورسته به د - الله اکبر- په ویلو سره رکوع ته ولاړشی ، په رکوع کې به دواړه لاسونه پر ځنگنو کښیږدی ، گوتې به ئې غوړیدلی او د ځنگانه سترگی به ئې کلکې نیولی وی ، سر او ملا به ئې سره برابر وی. پښې به ئې سیده وی ، کږې وږې به نه وی ؛ لږ ترلږه درې ځله به «سبحان ربی العظیم» ووایی. بیا به له رکوع راپورته شی ، سیده به ودریږی ، امام به صرف «سمع الله لمن حمده» ووایی او مقتدی به یوازی «ربنالک الحمد» او منفرد به دواړه ووایی . له دی نه ورسته به په داسی حال کې سجدی ته ولاړشی چې د واړه لاسونه به پر زنگنو کښیږدی او تکبیر به ووایی ، سجده او تکبیر به یو ځای سره پیل کړی ، سجدی ته په رسید وسره به سمدستی تکبیر ختم کړی . (علم الفقه ص۳۵ ج۲، کتاب الفقه ص۴۱۳ ج۱، فتاوی رحیمیه ص۲۰۲ ج۴)

**د سجدې کولو طریقه**: په سجده کې به لومړی ځنگنونه پر ځمکه کیږدی ، بیا به لاسونه ، بیا به پوزه او بیا به تندی ، خو د راپورته کیدلو په وخت کې به د دې برعکس عمل وکړی ، او مخ به د دواړو لاسونو په منځ کې کیږدی ، په داسی شکل چې د لاسونو گوتی به ئې بندی قبلې ته سیده وی او د دواړو پښو گوتی به ئې پرشاوو جگی



درولي وی ، او د گوتو مخ به ئې قبلې ته وی ، نس به ئې له ځنگنو څخه جدا وی ، گیډه به ئې له ځمکې دومره اندازه لوړه وی چې ترمنځ ئې د اوزې د ډیر وړوکی بچې د تیریدلو امکان وی ، په سجده کې به لږترلږه ۳ درې ځله «سبحان ربی الاعلی» ووایی بیا به له سجدې راپورته شی په ښه توگه به کښینی ، په دی توگه چې ښی پښه به ئې همداسی درولي وی ، او چپه پښه به پرځمکه پریباسی او پر همغه چپه پښه به کښینی. او دواړه لاسونه به پرځنگنو داسی کیږدی چې د گوتو سرونه ئې د ځنگانه سترگیو ته رسیږی قبلې ته به مخامخ وی ، نه به ډیرې پرانیستی وی او نه به ډیری بندې ، په دی حالت به څه نه وایی ، له سجدی څخه د پورته کیدلو په وخت کې به لومړی تندی ، بیا پوزه ، بیا لاسونه پورته کوی او په اطمنان سره به کښینی ، وروسته به بله سجده په هغه شکل وکړی لکه اوله چې ئې وکړه. له دوهمی سجدی وروسته به د تکبیر په ویلو سره فوراً ولاړشی ، په دغه دوهم رکعت کې به صرف

بسم الله الرحمن الرحیم ووایی ، سورة فاتحه به ووایی او دغه رنگه به یو بل سورت ورسره ضم کړی ، بیا به د اول رکعت په څیر ، رکوع ، قومه ، دواړی سجدی پوره کړی ، له دوهمی سجدی نه وروسته به داسی کښینی لکه د دواړو سجدو ترمنځ چې کښیناستلی وو ، دا دعاء به ولولی : «التحیات لله و الصلوة و الطیبات السلام علیک ایها النبی ورحمة الله وبرکاته السلام علینا و علی عبادالله الصالحین اشهدأن لا اله الا الله وأشهدأن محمدا عبده ورسوله » د «لااله» ویلو پروخت به له صبابی گوتې نه پرته تولې گوتی بندی کړی او د شهادت گوته به پورته کړی

او د «الاالله» د ویلو پروخت به ئې بېرته کښته کړي. بیا چې څومره ناست وي ګوتې به هغسې بندې ساتي ، څوکه دوه رکعته لمونځ وي نو له التحیات وروسته به دا دعاء ووايي ؛

«اللهم صل علی محمد وعلی ال محمد کما صلیت علی ابراهیم وعلی ال ابراهیم انک حمید مجید ، اللهم بارک علی محمد و علی آل محمد کما بارکت علی ابراهیم و علی آل ابراهیم انک حمید مجید »

او له دې درود نه وروسته به دا دعاء ولولي: «اللهم انی ظلمت نفسی ظلما کثیرا وانه لایغفر الذنوب الاأنت فاغفرلی مغفرة من عندک وأرحمنی انک أنت الغفور الرحیم»

له دې وروسته به لمونځ پای ته ورسوي په دې توګه چې لمړی به ښي طرف ته مخ وګرځوي او «السلام علیکم ورحمة الله» به ووايي ، بیا به ئې دغه رنګه چپ طرفته وګرځوي. په دغه حالت کې که دی امام وي نو په سلام کې دې د «کرام الکاتبین» فرښتو او هغو خلکو چې په جماعت کې ورسره شریک وي ؛ نیت وکړي.

(علم الفقه ص۳۶ ج۲، هدایه ص۶۲ج۱، کبیری ص۳۰۰، شرح نقایه ص۷۲، کتاب الفقه ص۲۱۳ج۱)

**مسئله** : که چیرې د یو عذر په وجه څوک په قعده کې په مسنونه طریقه کې نشي کښېنستلای نو بیا څه باک نلري ، چې څنګه کښېني سمه ده ، خو کوشش به کوي چې سنت طریقې ته نژدې وي.

(فتاوی رحیمیه ص۱۸۱ج۱)

## د هغه لمانځه طریقه چې تر دوه رکعته زیات وي

که چیرې لمونځ تر دوه رکعته زیات وي ، درې یا څلور رکعته وي ، نو صرف التحیات به تر آخیره پورې ووايي او دستي به ولاړ شي ، بل



رکعت به همغه د لمړي دوو په څېر ترسره کړي خو دلته به داسې کوي چې تربسم الله وروسته به صرف سورة فاتحة (الحمد لله) ووايي او رکوع به وکړي ، سورة به نه ورسره یوځای کوي ، له رکوع وروسته به سجده وکړي که یو رکعت وي یا دوه رکعته وي همغسې به یې اداء کړي لکه اول دوه سورتونه چې آداء سول ، په جهریه وختونو کې به امام فاتحه ، سورة ، سمع الله لمن حمده ، او تکبیرونه په لوړ آواز سره وایي ، مقتدي به ئې په ټیټ آواز سره وایي ، منفرد ته اختیار دی

**مسئله** : د لمانځه په حالت کې به سړی آخوا دیخوا نه ګوري ، بلکې دولاړي په وخت کې به د سجدې ځای ته ګوري ، د رکوع په حالت کې به پښو ته ، او په سجده کې به پوزې ته ، د ناستې په حالت کې به زنګنو ته ګوري ، سترګې به ئې د لمانځه په وخت کې پرانیستې وي ، مګر که ئې په دې خاطر بندې کړې چې وایي په لمانځه کې توجه ښه برابرېږي ، بیا په سترګو پټولو کې څه حرج نشته. د لمانځه له ختمیدلو ورسته به دواړه لاسونه ترسینې پورته کړي ، او له الله تعالی څخه به ځان او نورو ته دوعاء وغواړي ، که امام وي نو مقتدیانو او نورو ته به دعاء وکړي ، او مقتدیان به ټول آمین وایي.

او که له کوم لمانځه وروسته نور سنت وي لکه ماپښین ، ماښام ، ماخستن نو دی دعا تر ډیرو پوري نه کوي بلکه لنډه دعا دې وکړي او په سنتو دې پیل وکړي ، او له کوم لمونځ وروسته چې سنت نشته لکه مازیګر او سهار نو چې څومره دعا کولای شي و دې کړي ، امام به په محراب کې مخ راوګرځوي. مقتدیانو ته به مخامخ کښېني ، دعاء به وکړي ، خو په دې شرط که په مقتدیانو کې مسبوق نه وو.

یعنې هغه سړی چې یو یا څو رکعتونه څیني تیروی او امام ته مخامخ ولاړوي ، نو تر هغو دی امام مخ نه را اړوي.

د فرض لمانځه وروسته که چیرې ئې سنت نه درلودل ، دا دعاء ویل دري ځله مستحب دي: «استغفر الله الذی لا اله الا هو الحی القیوم» او که ئې سنت درلودل ؛ نو له سنتو بعد دې دغه دعاء ووایي :

۳ - دري ځله ، آیة الکرسی او څلور واړه قل به یو یو ځل ووایي ، بیا به ۳۳ واره ، سبحان الله ، ۳۴ واره الله اکبر ، ۳۳ ځله الحمد لله ولولي.

(مراقی الفلاح ، درمختار ، شامی وغیره ، علم الفقه ص۳۷ ج۲ ، کبیری ص ۳۰۰ ، هدایه ص۶۴ ج۱ ، شرح نقایه ص ۷۴ ج۱ ، ترمذی ص۸ ۴۰ ج ، مستدرک ، حاکم ص ۵۶۰ ، بهشتی زیور ص ۳۳ ج۱۱ ، مراقی الفلاح ص۱۸)

**مسئله** : (د سهار او مازیگر) لمانځه وروسته پر گوتو باندی د شمیرلو په صورت کې تسبیحات ویل نه یوازې دا چې جائز دي ، بلکې په حدیث شریف کې ئې حکم هم همداسې ډول راغلی.

(آپ کی مسائل ص۲۷۸ ج۳)

**مسئله** : د نارینه وو لپاره لاس تر نامه لاندې نیول او لوړ نیول دواړه ثابت دي خو احنافو دغه حدیث چې لاندې به لاس نیسي ؛ معمول گرځولی دی. (فتاوی دار العلوم ص۱۸۳ ج ۲ بحواله غنیه المستملی ص۲۹۲)

## په تشهد (التحیات) کې به د شهادة گوته پر کوم لفظ را پیتوی ؟

په لمانځه کې به صرف د ښی لاس د شهادة گوته پورته کوي ، که چیرې د چا دغه گوته نه وي او یا بل کوم مرض لري ، نو بیا دې د دغه لاس یا چپ لاس بله گوته نه پورته کوي.



په التحیات کې د اشارې طریقه داده چې د شهادة گوته به هغه مهال پورته کړي چې د غیر الله (د الوهیت) د نفي کولو الفاظ: «لا اله» وویل شي. او کله چې «الا الله» وویل شي ، نو گوته به کښته کړي ، نو گویا د گوتې په پورته کولو سره سړی د غیر الله د الوهیت انکار کوي او په بیرته کښته کولو سره د الله پاک د الوهیت د اقرار څرگندونه کوي. (کتاب الفقه ص۲۱۸ ج۱ ، فتاوی دار العلوم ص۱۹۲ ج ۲ بحواله رد المحتار ص۳۷۴ ج۱ ، فتاوی محمودیه ص۶۸ ج۱۳)

## په لمانځه کې د سلام گرځولو مسنونه طریقه

د سلام گرځولو مسنونه طریقه داده چې لومړی ښي اړخ ته او بیا چپ طرف ته مخ وگرځوي. دومره اندازه چې د شاه لوری ئې رخسار ولیدل شي ، که چیرې ئې په هیره چپ طرف ته اول سلام وگرځوی نو ښي طرف ته دې هم سلام وگرځوي ، او دوهم ځل دې چپ طرف ته نه گرځوي ، ځکه چې هاغه اول ځل کافي دی ، او سنت دادی چې «السلام علیکم ورحمة الله» وویل شي او بل دا چې د اول په نسبت دویم سلام په ټیټ آواز ولوستل شي ، که چیرې امام وي ، نو د مخاطب په ضمیر کې چې په علیکم کې ده ؛ د لمونځ کوونکو مسلمانانو ، فرښتو او پیریانانو نیت هم وکړي. او که مقتدي وي ، هغه دې ځیل امام او نورو لمونځ کوونکو اراده وکړي. که منفرد وي نو د محافظینو فرښتو نیت دې وکړي. (کتاب الفقه ص۴۱۹ ج۱)

**مسئله** : د لمانځه په سلام کې تر «ورحمة الله» وروسته «وبرکاته» ټکی متروک العمل دی. (فتاوی رحیمیه ص۲۹۹ ج۴ ، درمختار ص۴۹۸ ج۱)

**مسئله** : که له یو شرعي عذر څخه پرته مقتدي تر امام له مخه سلام وگرځوي ، نو لمونځ که څه هم صحیح دی خو مکروه دی ، هغه ته

یکارده چې له امام سره لمونځ پوره کړی او دوهم ځل له امام سره سلام وګرځوی. (فتاوی رحیمیه ص۲۴۳ ج۴)

**مسئله** : ځینی خلک له لمانځه وروسته په یو خاص کیفیت په لوړ آواز کلمه طیبه (لااله الاالله محمد رسول الله) وایی، نو که څه هم له آنحضرت ﷺ څخه د لوړ آواز ثبوت شته خو هغه خلکو ته د تعلیم لپاره وو، نو ځکه علماء کرام د نورو خلکو لپاره دا منع بولی، ځکه په دې سره نورو لمونځ کوونکو او ذکر کوونکو ته ضرر او اذیت رسیږي. (فتاوی دارالعلوم ص۱۳۷ ج۴ بحواله ردالمحتار ص۶۱۸ ج۱، فتاوی محمودیه ص۱۳۹ ج۷)

**مسئله** : په ټیټ آواز سره له فرض لمانځه وروسته کلمه طیبه ویل جائز دی. (فتاوی دارالعلوم ص۱۶۹ ج۲ بحواله مشکوة شریف ص۸۸ ج۱)

## ښځې به لمونځ څنګه آداء کوی؟

ښځې به هم د نارینه وو په څېر په همدې شکل لمونځ اداء کوی خو صرف په څو ځایونو کې سره فرق لري چې هغه په لاندې توګه دي.

۱- ښځې به خپل لاسونه په پړونی کې پټ او تراوږو پورې پورته کوی د تکبیر تحریمه پرمهال په داسې حال کې چې نارینه به لاسونه له لستوڼي یا کالي څخه راباسي او ترغوږو به ئي رسوی.

۲- له تکبیر تحریمه وروسته نارینه وو ته یکاردی چې ترنامه لاندې لاس ونیسی خو ښځې به ئي پرسینه ږدي.

۳- نارینه به ښی لاس پرچپ لاس ږدي، د ښی لاس کوچنی او بټه ګوته به د چپ لاس پر مړوند راګرځوی، خو ښځینه به صرف ښی لاس پرچپ لاس برسیره ږدي.



۴- نارینه به په رکوع کې ښه طرح کښته کیږي، خو ښځینه به صرف دومره ټیټیږي چې لاسونه ئي ترځنګنو پورې ورسي.

۵- نارینه به په رکوع کې د لاسونو ګوتې پرانیستې پریږدي، خو ښځې به ئي داسې نه کوی، بلکې لاسې به د ځنګانه پرسترګیو دغسې ږدي هغه به ټینګ نه نیسي او ګوتې به ئي بندې وي.

۶- نارینه به په رکوع او سجده کې ګیډه له ورنو او څنګلې له بغل نه لیرې ساتي، خو ښځینه به ئي ورسره نښلوي.

۷- نارینه به په سجده کې خپلې پښې جګې دروي، خو ښځې به ئي پریباسي، ښی طرف ته به دواړې پښې باسي.

۸- ښځینه ته هیڅ وخت د لوړ آواز قرائت کولو اختیار نشته، همیشه به ئي په ټیټ آواز سره وایی. (علم الفقه ص۳۸ ج۲، امداد الاحکام ص۴۶۸ ج۱، هدایه ص۷۰ ج۱، شرح نقایه ص۸۰، کبیری ص۳۳۳، فتاوی رحیمیه ص۲۲۴ ج۷)

۹- آذان او اقامت د ښځو په حق کې سنت نه دی.
(نمازمسنون ص۳۷۱، فتاوی عزیزی ص۴۴۸، آپ کی مسائل ص۲۰۵ ج۳)

**مسئله** : په ځینو عوامو کې دا خبره مشهوره ده چې وایي ترڅو چې د جمعې لمونځ ختم شوی نه وی ښځې په کورونو کې خپل د ماپښین لمونځ نشي آداکولی، دا خبره غلطه ده هیڅ اصل نلري. (حسن العزیز ص۱۲۸ ج۲)

## ښځه به د ولادت (ماشوم ږیږیدنې) پروخت لمونځ څنګه آداکوی؟

**مسئله** : که چیرې یوه ښځه د ردېږه حالت کې وی، خو حواس او هوش ئي برابروی، او د ماشوم د ضایع کیدلو خطره هم نه وی، مکروینه او لندوالی جاري وی، او د ماشوم څه حصه لاهم پوره نه وی وتلی، په داسې حالت کې د لمانځه وخت شو، او سمدستی دا

اندیښنه هم وه چې د لمانځه وخت بالاتیریدونکی دی ، نو دغه ښځه کولای شی اودس دی وکړی ، کنه نو تیمم دی وکړی او لمونځ دی اداء کړی ، د وینی او رطوبت خیال دی نه ساتی ځکه چې هغه د استحاض وینی ، مانع عن الصلوة نه ذی . (فتاوی دارالعلوم ص۲۲۱ ج۲، بحواله غنیة ص۳۶۵)

(مقصد دادی چې د نفاس د وینو د وتلو تروخته پوری پرښځه لمونځ فرض دی ، که ئي ونکړ نو قضاء وربانذی لازمه ده ، د لمانځه اهمیت او ارزښت له دې نه هم ښه څرګندیږی ، چې په داسی یو سخت حالت کې چې مخکې ذکر شو ، هم لمونځ معاف نه دی . (محمدرفعت قاسمی غفره)

## له لوپ سره لمونځ کول څه حکم لری ؟

لوپ هغه وړې پردې ته ویل کیږی چې زنانه ئي د (شرمګاه) د پټولو لپاره جدا استعمالوی . دغه پرده که چیری پاکه وی ، او د علاج لپاره ئي لګولي وی ، نو په داسی حالت کې لمونځ کول ، تلاوت کول ، اوداسی نور..... هیڅ شی منع نه دی ، ټول صحت لری .
(فتاوی محمودیه ص۵۵ ج۱۳)

مسئله : د ناروغی په وخت کې چې زنانه په رحم (شرمګاه) کې کومه دوا اچوی ، له هغې سره به لمونځ اداء کوي ، قضاء کوي به ئي نه (فتاوی محمودیه ص۹۸ ج۷)

## د لیکوریا په ناروغی اخته ښځی لمونځ څه حکم لری ؟

مسئله : په دغه ناروغی کې چې له بدن نه کومي اوبه راوزی ، هغه ناپاکې دي ، پرکومه جامه چې لګیږی هغه هم ناپاکه ده ، لمونځ ورسره صحت نلری ، البته که دا جامه ومینځله شی نو بیا لمونځ ورسره صحیح دی .



نو هغه ښځې چې د ورځو ترتیریدلو وروسته هم د لیکوریا ناروغی په وجه ناپاکې او به د ومره زیاتي وي چې په ټول وخت کې له طهارت (پاکی) سره لمونځ نشی اداء کولای ، نو دا بیا د معذور حکم لری ، یعنی د هرلمانځه په وخت کې یوځل اودس کول ورته کفایت کوي . مګر که دومره شدت نه وی ، نو بیا معذوره نه بلله کیږی ، یعنی که چیری لمانځه ته اودس وکړی ، اوترلمانځه مخکې ئي اودس مات شی او یا د لمانځه په مینځ کې مات شی نو اودس کول وربانذی لازم دی . (آپ کی مسائل ص۲۳۱ ج۳)

مسئله : د نوکانو داسی رنګ چې بدن ته اوبه نه پریږدی یاد هغه په دول پرښنلوانو سرخي ، نو اودس نه کیږی چې اودس ونه شو لمونځ هم صحت نلری . (آپ کی مسائل ص۷۵ ج۳)

## د ښځو د لمانځه په اړه مسائل

مسئله : که چیری د ښځو د بلوغ او ځوانی وخت معلوم وی نو له هغه وخت څخه وربانذی لمونځ فرض دی ، که نه نو د ۹ نهو کالو په پوره کیدو لسم کال په شروع کیدو سره لمونځ وربانذی فرض ګنل کیږی .

مسئله : د ښځی جامه که چیری داسی نرمه او باریکه وی چې ترلاندی ئي بدن او اندامونه ښکاری نو لمونځ ورسره صحت نلری ، د لرپنډي جامی د اغوستلو ترڅنګ به پړونی هم د بل یعنی پنډ پرسر کوی . (آپ کی مسائل ص۲۹۷ ج۳، فتاوی محمودیه ص۱۴۹ ج۲ بحواله شامی ص۲۷۲ ج۱)

مسئله : د لمانځه په دوران کې که د ښځی له سره پړونی ولویږی سمدستی به ئي پرسر کوی ، که دري ځله سبحان الله ویلو په اندازه

Scanned with CamScanner

ئی سر لوڅ پاتی سی، لمونځ ئي باطلیږي، که سمدستي ئي پرسر کړي، نو بیا څه باک نلري. (آپ کی مسائل ص۲۹۸ ج۲)

**مسئله:** د وخت د داخلیدو سره سم زنانه وو ته پکاردی چې په اول وخت کې لمونځ اداء کړي. ښځوته ضروري نه دی چې د آذان انتظار وکړي، البته که د وخت پته ورته نه لګیده، بیا سمه ده. (آپ کی مسائل ص۲۹۹ ج۲)

**مسئله:** ښځه پخپل میړه پسی په اقتداء لمونځ کولای شي، مګر برابره به نه ورسره دریږي، شاته به ځینی دریږي. (آپ کی مسائل ص۲۹۹ ج۲)

**مسئله:** ښځه که چیری په مسجد کې په جماعة سره د جمعې لمونځ کوی، نو ددې لپاره هم دومره رکعتونه دی لکه نارینه وو ته، یعنی لومړی څلور سنت، بیا دوه فرض په جماعة سره بیا څلور مؤکد سنت، او بیا دوه غیرمؤکد سنت، پرښځوباندی جمعه فرض نه ده، که په کور کې لمونځ کوی نو د نوروپه څیربه خپل لمونځ کوی. ځکه چې پرښځوباندی د اخترونو لمونځ او جمعه فرض نه ده. (آپ کی مسائل ص۳۰۱ ج۲)

**مسئله:** ښځوته خاصو ورځو کې (د حیض او نفاس په جریان) کې د لمانځه کولو اجازه نشته، لیکن تسبیحات ویلی شی.
(آپ کی مسائل ص۳۰۲ ج۳)

**مسئله:** ښځې د نارینه وو امامت نشی کولای.

**مسئله:** ښځوته هم له عذر څخه پرته په ناسته لمونځ کول جواز نلری
(فتاوی دارالعلوم ص۱۵۲ ج۱)

**مسئله:** ښځې که پخپله په جماعة لمونځ کوی، نو کومه ښځه چې امام ده؛ مخکې به نه دریږی، بلکې د صف په مینځ کې به دریږی.



**مسئله:** که د فتنې او فساد داندیښنی په وجه، جماعة ته د ښځو حاضریدل مسجد ته مکروه دی.

**مسئله:** پرښځو باندی د ایام التشریق یعنی عیدالاضحی په ورځوکې د فرضو لمونځوروسته تکبیرات تشریق واجب نه دی، البته که چیري یوه ښځه په جماعة کې ګډون ولری، نو د امام دمتابعت په وجه پرهغې هم واجب دی، مګر په لوړ آواز به تکبیر نه وایی (ځکه چې د ښځې آواز هم ستردی، یعنی آواز هم پرده لري.)

**مسئله:** ښځوته د هر وخت لمونځ په اول وخت کې اداء کول مستحب دی، د سهار لمونځ دی په لړتیاره کې اداء کوی.

**مسئله:** ښځوته په زوره قرائت ویل جواز نلری، که جهري لمونځ وی که خفیه، دوی ته په هرحال کې په ټیټ آواز ویل پکاردی.

**مسئله:** ښځه آذان نشی کولای.

**مسئله:** ښځه په مسجد کې اعتکاف نشی کولای، او که په کور کې اعتکاف کوی نو په هغه ځای کې دی کښینی چې د لمانځه لپاره ئي خاص کړی وی، که ئي د لمانځه لپاره کوم ځای خاص کړی نه وی، نو د اعتکاف لپاره به ئی هرومرو مخصوص کوی. (آپ کی مسائل ص۳۰۷ ج۳)

**مسئله:** د ښځو لپاره په سجده او جلسه کې د پښو درول مشروع نه دی. (فتاوی دارالعلوم ص۱۶۴ ج۲، شامی ص۳۷۱ ج۱)

**مسئله:** د ښځینه او نارینه وو لپاره د کومو اندامونو پټول چې ضروري دي، په دی توګه دهغو هراندام څلورمه برخه که په لمانځه کې تردومره وخته پوری لوڅه پاتی شی چې ۳ ځله تسبیح ویل

کیدای شی ، نو لمونځ باطل کیږی ، که دومره برخه لوڅه شی او سمدستی بیرته پټه شی نو څه حرج نشته. (کبیری ص۲۶۷)

**مسئله** : په لمانځه کې که چیری د ښځی د سر څلورمه برخه لوڅه وی ، دا جواز نلری یعنی لمونځ صحت نلری دا راز که ئي د سر د ځړیدلو ویښتانو څلورمه حصه پرانیستی وی بیا هم لمونځ نه کیږی.

(نماز مسنون ص۲۶۷)

**مسئله** : ښځه که په لمانځه کې داسی نرمه جامه او پړونی پرسر کړی چې ویښتان ئی له ورایه تري ښکاره کیږی ، نو لمونځ ئی نه کیږی.

(نماز مسنون ص۲۶۸ بحواله بیهقی ص۲۳۵ ج۲)

**مسئله** : که د ماشوم پریدن یا جامه باندی ناپاکی وی او هغه ماشوم د لمونځ کوونکی په غیږکې ولویږی نو لمونځ فاسدیږی. (فتح الملهم ص۱۴۰)

**مسئله** : یوی ښځی که خپل ماشوم په لمانځه کې ورپورته کې ، او ماشوم ئي په دغه حالت کې تی ورودی او له هغه څخه شیدی راووتلی ؛ نو په داسی صورت کې د دغی ښځی لمونځ فاسد دی.

(کبیری ص۲۳۳ ج۱، فتح الملهم ص۱۴۱)

**مسئله** : د ښځو لپاره لاس ، پښی او دهغوئ ظهر او بطن ، په لمانځه کې پټول ضروری نه دی ، که خلاص پاتی وی ، په لمانځه کې کوم خلل نه راځی. (فتاوی دارالعلوم ص۱۴۳ ج۲)

**مسئله** : د ښځو لپاره ضروری دی چې په سجده او نورو ارکانو کې د بدن اندامونه ښه سره نښتی وساتی د نارینه وو په څیر پرانیستی پریښودل جائز نه دی. (فتاوی دارالعلوم ص۲۰۹ ج۲)



**مسئله** : ځینی ښځی داسی وی چې پرمصلی لمونځ اداء کړی نو وروسته د جای نماز یوه څنډه ضرور راتولوی او وایی چې پردی شیطان لمونځ کوی ، نو دا بی بنیاده خبره ده هیڅ اصل نلری.

(اغلاط العوام ص۵۶)

**مسئله** : په ښځو کې دا مشهوره ده چې وایی ښځینه دې له نارینه ونه وړاندی لمونځ نه کوی ، دا خبره ناسمه ده هیڅ حقیقت نلری ، چې وخت پوره شو هر و مرو دې لمونځ اداء کوی. (اغلاط العوام ص۵۶)

**مسئله** : که ښځه پرلمانځه ولاړه وی ، نارینه ئي ښکل کړی نو د ښځې که شهوت وی ، که نه وی لمونځ ئی فاسدیږی ، او که سړي لمونځ کاوه ښځې هغه ښکل کړ د نارینه لمونځ نه دی فاسد . (او په ښځه کې د شهوت قید نشته د هغې لمونځ فاسدیږی ).

(فتاوی دارالعلوم ص۵۵ ج۴ بحواله درمختار ص۵۸۷ ج۱)

**مسئله** : ځیني ښځي لمونځ په ناسته کوی او یائي په ولاړه شروع کړي خو په دوهم رکعت کې بلا وجه کښیني او لمونځ په ناسته پوره کوی ، نو دا خبره په یاد ساتل پکار ده چې په فرض واجب او مؤکد سنت لمانځه کې قیام فرض ده ، نو له ضرورت پرته که څوک کښیني ، لمونځ ئي نه اداء کیږی. (احسن الفتاوی ص۳۱ ج۳)

## په لمانځه کې که ښځه له نارینه سره برابره ودریږی ؟

هغه ښځه چې نفساني غریزه ورباندی غالبه وی ، په جماعة کې له نارینه سره برابره ودریږی او یا ورځینی مخکی شي (په دې توګه چې پوندي او پوندۍ ئي یا ورسره برابري شي یا ورځینی مخکي شی که

ورځني شانته وي لمونځ صحت لري. ) نو لمونځ ئې باطل دی ، که
چيرې دا شرطونه پيدا شي. (کتاب الفقه ص۶۸۲ج۱)

**مسئله** : له نارينه سره د ښځې برابر دريدل په دې شرطو لمونځ فاسده
وي:

۱ - چې ښځه بالغه وي، که ځوانه وي، که زړه، او يا نابالغه وي خو
قابل جماع وي، که چيرې کم عمره نابالغه انجلۍ ورسره ودريږي
لمونځ نه فاسده وي.

۲ - چې دواړه په لمانځه کې وي، که يو په لمانځه وي او بل نه وي،
نو له دې محاذاة لمونځ نه فاسديږي. او که ترمنځ ئې دومره ځای خالي
وي چې يو سړی دريدای شي، بيا هم لمونځ نه دی فاسد ځکه چې
هغه خالي ځای پرده ګڼله کيږي.

۳ - او چې کومه پرده يا حائل ئې ترمنځ نه وي، که چيرې داسې وو نو
بيا هم لمونځ نه فاسديږي.

۴ - په ښځه کې به دلمانځه د صحت شرطونه وي، که چيرې ښځه
ليونۍ وي يا په حيض او نفاس کې وي نو له دې محاذاة څخه هم
لمونځ نه فاسديږي، ځکه چې په دغو صورتونو کې دا په لمانځه کې
نه ګڼله کيږي.

۵ - د جنازې لمونځ به نه وي، ځکه چې د جنازې په لمانځه کې
محاذاة مفسد نه دی.

۶ - دا محاذاة به د يو رکن په اندازه وي، يعنې که تر دومره وخته
پورې وي چې رکوع او داسې نور... نشي پکې کيدلای، نو په دې لږ
محاذاة سره په لمانځه کې فساد نه راځي.



۷ - او تحريمه د دواړو يوه وي، يعنې دغې ښځې په داسړي پسې
اقتداء کړې وي او يا دوی دواړو په بل چا پسې اقتداء کړې وي.

۸ - اداء د دواړو يو قسم وي، يعنې د اقتداء په حالت کې لمونځ اداء
کوي، که يو د اقتداء په حالت کې وي، او بل د انفراد يا دواړه د
انفراد په حالت کې وي نو محاذاة مفسد نه ګرځي. مثلا: يو مسبوق
وي، بل لاحق يا دواړه مسبوق وي، ځکه چې مسبوق له سلام
وروسته د خپلو تيرو شويو رکعتو په اداء کولو کې دمنفرد حکم لري
، مګر که دواړه لاحق وي نو لمونځ فاسديږي ځکه چې لاحق د مقتدي
حکم لري.

۹ - ځای به د دواړو يو وي، که د يوه مکان جدا وو، د بل جدا،
بيا محاذاة فاسد نه دی مثلا يو په مسجد کې دننه او بل دباندې.

۱۰ - چې د دواړو طرف يو وي. که يو د يوې خواته لمونځ کاوه، بل
بيا بل طرف ته بيا هم محاذاة فاسد نه دی، مثلا: توره تياره وه، قبله
نه معلوميده له هر يوه پخپله تحري (غالب ګمان) عمل کاوه، او رايې
يې يو له بل سره مخالف و، يوه يوې لورې ته او بل بل لورې ته لمونځ
کاوه.

۱۱ - امام د دغې ښځې نيت دلمانځه په شروع کې کړی وو، که ئې
امام نيت نه وي کړی، نو بيا دا محاذاة مفسد نه دی، مګر د ښځې
لمونځ بيا په دغه صورت کې صحت نلري، ځکه چې امام د دې د
امامت نيت نه دی کړی. (علم الفقه ص۱۰۴ج۲)

## د سجدې او رکوع په اړه مسائل

**مسئله** : که په ټوله سجده کې دواړه پښې له ځمکې پورته وي نو سجده نه کیږي چې سجده ونه شوه نو لمونځ نه کیږي.
(فتاوی دارالعلوم ص۴۵ ج۴ بحواله بحرالرائق ص۳۳۶ ج۱)

**مسئله** : د سجدې په وخت کې د دواړو پښو ګوتې قبلې ته مخامخ کول سنت دي ، دواړې پښې له ځمکې سره ښښلول واجب دي ، او بلاعذر د یوې پښې پورته کیدل هم مکروه تحریمي دي ، له دواړو پښو نه یوه حصه پرځمکه لګول فرض دي ، که د یوې ګوتې په اندازه وي هم ، فرض اداء کیږي ، او که د دواړه پښې بې له عذره له ځمکې څخه پورته وي او د ۳ ځله سبحان الله ویلو په اندازه وخت ونیسي نو لمونځ فاسد ګرځي ، له ځمکې سره د ګوتې لګیدل ، داسې نه چې صرف یو نوک ورسره ولګیږي ، بلکې شرط داده چې د ګوتې د سر غوښه به ورسره لګیږي.
(آپ کی مسائل ص۳۱۶ ج۳، فتاوی دارالعلوم ص۱۵۲ ج۲، فتاوی محمودیه ص۱۹۶ ج۲، ص۲۷۰ ج۱۰، جوهر نیره ص۵۲، عالمګیری ص۱۰۱ ج۱، شامی ص۲۳۳ ج۱)

**مسئله** : په سجده کې باید صرف د پښې د بټې ګوتې پر لګولو اکتفاء ونشي ، د اخلاف السنة عمل دی ، بکار داده چې ټولې ګوتې پرځمکه ولګولی شي او مخ ئې د قبلې لورې ته شي.
(فتاوی رحیمیه ص۳۰۴ ج۳، شامی ص۴۱۶ ج۱، فتاوی دارالعلوم ص۵۴ ج۲)

**مسئله** : بهتره داده چې د قیام په وخت کې د پښو ترمنځ د څلورو ګوتو په اندازه فاصله وي ، خو که زیات او کم سي ، هیڅ باک نلري لمونځ صحیح دی. (فتاوی دارالعلوم ص۱۵۳ ج۲، ردالمحتار ص۴۱۴ ج۱)



**مسئله** : له رکوع نه چې راپورته سي باید سیده او برابر ودریږي ، که داسې سیده ونه دریږي نو ترک د واجب ئې وکړ ، چې په دې سره د لمانځه اعاده ضروري ګرځي.

**مسئله** : همدارنګه له لمړۍ سجدې نه چې راپورته سي هم سیده به کښیني ، او بیا به دوهمه سجده کوي ، کنه نو د لمانځه راګرځیدل لازمیږي. (فتاوی دارالعلوم ص۱۵۵ ج۲، درمختار ص۴۲۴ ج۱)

**مسئله** : کوم سړی چې د - سبحان ربی العظیم - الفاظ درست نسي اداء کولای ، یعنی «سبحان ربی العجیم» وایي ،نو هغه دې ترهغه وخته چې د «ظ» تلفظ درست اداء کولای شي ، «سبحان ربی الکریم» وایي صحت لري. (فتاوی دارالعلوم ص۱۷۱ ج۲)

**مسئله** : د امام ابوحنیفه رحمه الله په نزد پرتندي او پوزه دواړه سجده فرض ده ، خو د ضرورت په وخت کې پرپوزه هم اکتفاء کیدای شي.

**مسئله** : له عذره پرته یوازې پرپوزه سجده کولو سره لمونځ نه اداء کیږي او بلاعذر یوازې پرتندي سجده کول مکروه تحریمي دي.

**مسئله** : که د چاتندي او پوزه دواړه زخمي وي ، نو په اشاره سجده کولای شي. (عالمګیری ص۷۲۰ ج۱، کبیری ص۲۸۳، نماز مسنون ص۳۶۷)

**مسئله** : د سجدې په وخت کې به اووه اندامونه پرځمکه ښودل کیږي ، دواړه څنګونه ، دواړه لاسونه دواړې پښې ، تندی سره له پوزې. (هدایه ص۷۰ ج۱، شرح نقایه ص۷۸ ج۱، کبیری ص۳۲۱)

**مسئله** : په سجده کې به تندی او پوزه د دواړو لاسونو ترمنځ ږدي ، (هدایه ص۷۰ ج۱، کبیری ص۳۲۱، نقایه ص۷۸)

**مسئله :** د سجدې په حالت کې به بازوګان او ورنونه پر ځمکه نه لګوي (هدايه ص۷۰ ج۱، نقايه ص۷۸ ج۱)

**مسئله :** که جلسه (يعنى د دوو سجدو ترمنځ ناسته) په ښه توګه ونشي نو دوی سجدې آداء شوې نه دي ، (هدايه ص۷۰ ج۱، کبيرى ص۳۲۲)

**مسئله :** مقتدي ته پکار ده چې د تکبيراتو په وخت کې توقف وکړي ، په دې خاطر چې ترامام ئي تکبيرات او نور ارکان وړاندې نشي.
(فتاوى دارالعلوم ص۳۶۶ ج۳ بحواله مشکوة ص۹۸ ج۱)

**مسئله :** د امام لپاره بهتره دا ده چې په رکوع او سجده کې تسبيحات پنځه ځله ولولي او ياهم درې واره ئي په ښه توګه په ارامه لهجه ووايي ، ترڅو مقتدي ته هم د درې واره تسبيح ويلو فرصت پيدا شي. (فتاوى رحيميه ص۲۷۱ ج۴ بحواله شامى ص۴۶۲ ج۱)

د تنها لمونځ کوونکي لپاره هم پنځه ځله تسبيح ويل افضل دي.
(مسائل سجد سهو ص۸۱)

**مسئله :** مخکې له دې چې مقتدي ۱ ځله تسبيح پوره کړي امام سر را اوچت کړ. نو څرنګه چې پر مقتدي د امام متابعت واجب دی ، نو له امام سره به يو ځای دی هم سر را پورته کړي ، د تسبيحاتو د پوره کولو په غرض به تأخير نه کوي. (مسائل سجده سهو ص۸۰ بحواله شامی)

**مسئله :** بهتره دا ده چې په نوافلو کې د رکوع څخه د پورته کيدلو په وخت کې دا دعاء «ربنالک الحمد حمدا کثيرا طيبا مبارکا فيه» ولولي ، که څه هم دا دعاء په فرض لمانځه کې هم ويل کيدای شي ، مګر په فرائضو کې چونکه تخفيف زيات مناسب کار دي (د امام لپاره) نو ځکه بايد دغه دعاء په نوافلو کې ښه وګڼله شي.



(نماز مسنون ص۳۵۶ بحواله مسلم شريف ص۱۹۱ ج۱)

**مسئله :** په رکوع کې لږ ترلږه ۳ ځله «سبحان ربی العظيم» ويل د کامل سنت ادنى درجه ده. (نماز مسنون ص۳۵۴، هدايه ص۶۸، شرح نقايه ص۷۶ ج۱، کبيرى ص۳۱۶)

**مسئله :** په رکوع کې به سر، اوږې ، ملاا و شا ټول سره برابروي ، کښته پورته به نه وي. (هدايه ص۶۸ ج۱، شرح نقايه ص۷۶ ج۱، کبيرى ص۳۱۶)

**مسئله :** په رکوع کې به سيده دريږي په اطمنان سره چې دې ته قومه وايي او دا واجب ده. (فتح القدير ص۲۱۲ ج۱)

**مسئله :** هغه څوک چې په رکوع کې اشتراک وکړي ، له هغه نه ثناء (سبحانک اللهم....) ساقط شوه يعنى ثناء به نه وايي. (فتاوى دارالعلوم ص۳۷۹ ج۲)

**منسئله :** په جماعة کې که څوک هغه وخت شريک شو چې امام قرائت پيل کړی وی ؛ نو هغه ته ثناء ويل نه ده پکار.
(فتاوى دارالعلوم ص۳۷۹ ج۲، ردالمحتار ص۴۵۶ ج۱)

**مسئله :** که چيرى له اول نه مقتدى په جماعة کې شريک وى ، خو په منځ کې رکوع له يوى وجى څخه ورنه پاتى شى ، او سجده وکړى ، نو دى به داسى کوى چې کله امام فارغ شو دى به سلام نه ګرځوى ، ولاړيږى به رکوع به کوى او بيا به سجده سهو کوى ، په دى صورت کې ئى لمونځ صحيح شو. (فتاوى دارالعلوم ص۶۰ ج۴)

**مسئله:** رکعت هغه مهال د مقتدى لپاره پوره شميرل کيږى چې له امام سره په رکوع کې شامل سى ، که رکوع ځينى فوت شوه بيا چې هرچيرى ورسره شامل شى رکعت نه حسابيږى. (علم الفقه ص۱۰۰ ج۲)

**مسئله :** په درې ځله تسبيح ويلو سره سنت اداء کيږى ، او په فرائضو کې د امام لپاره د تخفيف حکم دى د مقتديانو د رعايت په

وجه به تطویل نه کوی ، ولې د احنافو په نزد تردی ځله زیات ویل مکروه نه گڼی. او له «سمع الله لمن حمده» وروسته «ربنالک الحمد» ویل هم مستحب کاردی ، همدارنګه په جلسه کې «رب اغفرلی ...» تریایه ویل ... هم مستحسن دی ، لکن بهتره داده چې دغه دول دعاء گانی په فرائضو کې نه بلکې په نوافلوکې وویلی شی ، ځکه چې په فرائضو کې تخفیف بنه دی. (فتاوی دارالعلوم ص۱۵۷ ج ۲ بحواله مشکوة ص۱۰۱ ج۱)

مسئله : د احنافو په نزد آمین ویل سنت دی ، که چیری ئي پرځنګ یو یادوه تنه واوری نو هغه هم په سوکه کې داخل دی ، په لوړ آواز نه بلل کیږی . (فتاوی دارالعلوم ص۱۶۲ ج ۲ بحواله ردالمحتار ص۴۹۸ ج۱)

مسئله : که څه عذر نه وی نو د سجدی په وخت کې لمړی ګونډي لګول بیا دواړه لاسونه ایښودل سنت طریقه ده ، له دی پرته عمل د سنت خلاف او مکروه دی ، مګر که عذر ولری لکه بوډاتوب ، یا ئي بدن پړسیدلی وی یابله ناروغی وی ، له دی امله لمړی ګونډی لګول تکلیف وی ، نو بیا هیڅ باک نلری چې لمړی لاس او بیا ګونډی ولګوی . (مراقی الفلاح مع طحطاوی ص۱۵۴)

مسئله : اصل داده چې هرشئ چې ځمکې ته نژدی وی هغه باید لمړی پرځمکه کیښودل شی ، داچې له پښو وروسته ګونډې ځمکې ته نژدی دی ، نو باید چې هغه لومړی کیښودلی شی بیالاسونه او بیا پوزه او تندی. (عمدة الفقه ص۱۱۰ ج ۲ فتاوی رحیمیه ص۲۲۰ ج۷)

مسئله : د نارینه لپاره د سجدې مسنونه طریقه داسی ده چې خپل بازوګان له بغلونو څخه لیری وساتی ، خو په جماعة کې به لاسونه له بغل سره تینګ ساتی ترڅو نورو خلکو ته تکلیف ونه رسیږی ، نس به



له ورنو څخه پورته ساتی ، پرځمکه به کښیښی نه ، او دواړه لاسونه به دغوږو پربرابرږدی ، نه داچې له سینی سره ئي ایښی وی ، یعنی مخ به د دواړو لاسو په منځ کې وی او بتي ګوتي به د غوږو نه نرمیو سره برابري وي ، د لاسو ګوتي به ښه سره بنده وی ، د پښو ګوتي به هم داسی ږدي چې قبلې ته به ئي سرونه مخ وی. (عمدة الفقه ص۱۱۰ ج ۲ ، فتاوی رحیمیه ص۲۲۰ ج۷ ، عالمګیری ص۱۰۲ ج۱ ، محمودیه ص۱۹۸ ج۱)

مسئله : په التحیات کې د شهادة د ګوتي په پورته کولو سره د توحید اشاره کیږی ، لکه چې په ژبه سره «اشهد أن لااله الاالله ...» لوستل کیږی او مطلب ئي د توحید اقراروی دا راز عملاً هم له افعال او جوارحو څخه د هغه ځرګند ونه کیږی. (فتاوی دارالعلوم ص۱۷۱ ج ۲ بحواله مشکوة شریف ص۴۲۴ ج۱)

## د تکبیرونو سنت طریقه

مسئله : له یو رکن څخه بل رکن ته د تللو لپاره د شرعي اذکارو بیځایه استعمال مکروه دی ، سنت دا ده چې کله له یوه رکن څخه وروسته بل رکن پیل کیږی نو په دغه وخت کې دې په شرعي طریقه په ښه توګه د الله تعالی نوم اخلی او چې کله د انتقال وخت وی نو د همدغه انتقال لپاره چې کوم ذکر خاص وی ، هغه دې په همدې وخت کې ختم کړل شی ، مثلاً دا صورت مکروه دی چې یو څوک رکوع ته د تللو په وخت کې تکبیر هغه وخت ووایی چې بیخی رکوع ته ورسیږی ، یا مثلاً «سمع الله لمن حمده» چې ویل ئي د پورته کیدو په وخت کې مناسب دی ، خو سړی ئي هغه وخت ووایی چې بلکل سیده ودریږی په داسی حال کې چې د حکم مقصد دا دی چې تکبیرونه او نور اذکار

، له یو رکن څخه بل رکن ته د انتقال پر مهال چې کومه زمانه ده ؛ باید په دې کې وویل شي. (کتاب الفقه ص۴۳۷ ج۱)

**مسئله** : تکبیرات په معتدل اواز سره امام اداء کوي ، نه ډیر په لوړ آواز او نه ډیر په ټیټ آواز سره ، چې دا دواړه د سنة خلاف دي.

(فتاوی دار العلوم ص۱۴۷ ج۳)

**مسئله** : په تکبیراتو کې کامل سنت هغه وخت آداء کیږي چې له یوه رکن څخه دویم رکن ته د انتقال سره سم پیل سي ، چې څنګه دا بل رکن رسیږي نو سمدستي د تکبیر آواز هم ختم شي. (کبیری ص۲۱۳)

**مسئله** : اصح قول دادی چې په «اکبر» کې د «ب» او «ر» ترمنځ چې الف ممالـه زیات کړل شي یعنی «اکبار» وویل شي نو تکبیر تحریمه صحیح نه دی او په لمانځه کې نه داخلیږي ، او که دا تکبیر سم اداء شي ، ولی نور د انتقالاتو تکبیرونه په همغه پورتني طریقه وویل شي یعنی الف ممالـه کې زیات کړل شي. نو لمونځ فاسد یږي.

(فتاوی رحیمیه ص۲۷۴ ج۴)

**مسئله** : تکبیر تحریمه چې وویل شي ، لاسونه پرته له دې چې د غسی ایله پریښودل شي ؛ ترنامه لاندې به ئې نیسی.

(امداد الاحکام ص۴۲۷ ج۱)

## د قومې او جلسې مسنونه طریقه

پوښتنه : زموږ امام صاحب له رکوع نه وروسته په قومه کې سیده نه دریږي ، چې څنګه راپورته شي سمدستي سجدې ته ځي. همدارنګه له «سمع الله لمن حمده» سره تکبیر هم متصل وایي ، په منځ کې ئې د یوې ذرې برابر هم وقفه نه کوي ، نه ساه اخلي. دا راز له سجدې څخه وروسته د



جلسې په حالت کې او نورو ارکانو کې په همداسې طریقه وي ، هیڅ وقفه او انتظار نه کوي ، چې اوس ده ته په کتلو سره مقتدیان هم همداسې دي ، نو له تاسو څخه په دې اړه د تفصیلي ځواب امید لرو ؟

جواب : دا ډول عادت ډیر غلط دی ، په دې سره لمونځ مکروه کیږي ، او د راګرځیدلو وړ وي. قومه او جلسه (له رکوع څخه وروسته دریدل او د دوو سجدو ترمنځ کښیناستل ) په اطمنان سره آداء کول ضروري دي.

(درمختار او شامی د ۴۶۶ ص اول ټوک تر ۴۷۲ ص لمړی ټوک پوری)

د عباراتو حاصل داسې دی چې له رکوع وروسته دې سیده ودریږي ځکه چې قومه سنت ده ، چې حتی واجب او فرض هم ورته ویل شوی دی ، بیا ځمکې ته د الله اکبر په ویلو سره کښته شه ، او دواړه زنګنونه پر ځمکه ولګوه ، چې په دې عباراتو کې د «ثم» لفظ راغلی دی ، او د هغه مطلب دادی چې په دریدلو یعنی وقفې سره سجدې ته د تلو په وخت کې تکبیر وایه تر هغه پوری چې سجدې ته رسیږي. د تکبیر په ختمیدو سره تندی پر ځمکه کښیږده ، بیا د دوو سجدو په منځ کې په اطمنان سره کښینه یعنی تر دومره وخته پوری کښینه چې سبحان الله وویلای شی ، د آنحضرت ﷺ مبارکه طریقه داده چې کله بې له رکوع څخه سر مبارک راپورته کړ نو په اطمنان سره به سیده ودرید ، بیا به سجدې ته تلی له سجدې وروسته به ئې بیا چې سر مبارک راپورته کړ سیده به کښیناست ، بیا به ئې دویمه سجده کوله.

(مشکوة شریف ص۷۵ ج۱)

دا ضروري ده چې د آنحضرت ﷺ د سنت طریقې مطابق خپل لمونځونه آداء کړو ، ځکه چې نبی کریم ﷺ فرمایي :(تاسو دا ډول

لمونځ اداء کوئ لکه څنګه چې موږ مالمونځ ليدلی ) يعني د لمانځه په حال کې چې مو زه ليدلی يم په همغه شکل به تاسو هم خپل لمونځونه کوئ ، نو که فرضا موږ داکوشش ونکړو چې لمونځ مو د آنحضرت ﷺ د سنت طريقې سره سم نه دی ، نو زموږ لمونځ به هم مقبول نه وی ، آنحضرت ﷺ فرمايلي ترټولو بد ترغل هغه څوک دی چې په لمانځه کې غلا کوی ، صحابه کرامو رضی الله تعالی عنهم پوښتنه وکړه ، په لمانځه کې څنګه غلا کيدای شی؟ يارسول الله ! آنحضرت ﷺ وفرمايل: چې په لمانځه کې غلا دا ده چې رکوع او سجده په ښه توګه نه اداء کوی ، بيايي وفرمايل: د آنحضرت ﷺ يو بل ارشاد دی: په تاسو کې د هيچا لمونځ پوره کيږی نه ، ترڅو چې له رکوع وروسته قومه په صحيح توګه آداء نکړی ، (يعنی سيده ونه دريږی) په دې توګه چې هر هراندام ئي پرخپل ځای قرار ولری. همدارازکوم سړی چې د دواړو سجدو ترمنځ د کښيناستلو په وخت کې خپل ځان درست نکړی و دهغه لمونځ نه پوره کيږی. (مشکوة شريف ص۸۱ ج۱)

ويل کيږی چې مؤمن بنده خپل لمونځ په ښه توګه اداء کوی ، رکوع او سجده سمه وکړی ، نو لمونځ ئی ښکلی اونورانی کيږی ، فرښتی هغه لمونځ آسمان ته پورته کوی ، او هغه لمونځ خپل لمونځ کوونکي ته دعاء کوی اووايي چې الله تعالی دې ستاحفاظت وکړی ، چې څرنګه دې زماحفاظت وکړ او چې څوک لمونځ په ښه توګه نه کوی ، نو هغه لمونځ توريږی ، فرشتی کرکه څينی کوی ، آسمان ته ئي نه پورته کوی ، اولمونځ وايي چې الله تعالی دی تادغه ئی ضائع او تباه



کړی لکه څنګه چې دی زه ضائع کړم. (خلاصه فتاوی، رحيميه ص۲۵ ج۳ بحواله مکتوب نمبر ۶۹، امام ربانی ص۱۳۸ ج۲)

**مسئله:** کوم لمونځونه چې له تعديل الارکان پرته آداء شوی وی ، که څه هم صحت لری ، خو راګرځول ئي بهتراو ښه کار دی ، فرض او وتر دی هرومرو راګرځوی ، ولی سنت که راونګرځی څه باک نلری.

(فتاوی دار العلوم ص ۱۵۶ ج ۲ بحواله ردالمحتار ص ۴۲۴ ج ۱ او اغلاط العوام ص ۵۹)

## په قومه او جلسه کې د دعاء حکم

پوښتنه: په قومه او جلسه کې امام او مقتدی دعاء ويلی شی کنه ؟

جواب: کله چې مقتدی له رکوع سر راپورته کړی ، سيده به ودريږی له «ربنالک الحمد» ويلو څخه وروسته به «حمداً کثيراً طيباً مبارکاً فيه» ويلای شی ، همدارنګه په جلسه کې يعنی د دوو سجدو ترمنځ «اللهم اغفرلی ورحمنی واهدنی وعافنی وارزقنی» ويلای شی خو دا په دی شرط چې وخت وی ، هسی نه چې د دی دعاوو په ويلو سره له امام څخه ورسته پاتی شی ، البته د امام لپاره پکار نه ده چې وئي لولی ، ځکه چې د آنحضرت ﷺ هدايت او لارښونه داده چې امام دی په لمانځه کې تخفيف کوی ترڅو د معذور ، مريض او نورضرورتمند کسانو لپاره د تکليف او مشقت باعث ونه ګرځي.

(فتاوی رحيميه ص ۱۰۳ ج ۴ بحواله شامی ص ۴۷۲ ج ۱)

## له لمانځه وروسته دعاء

**مسئله:** له فرض لمانځه وروسته د امام او مقتديانو په ګډه د
غوښتل په اړه ډير فضيلتونه ذکرشوي دي. او مسنونه طريق
چې امام او مقتدئ دی دواړه په ټيټ آواز سره دعاء کو

سو که دعاء کول قبولیت ته نژدی، اخلاص پکښې ډیر، خشوع او خضوع پکښې وی، او دا پرزړه باندی اغیزهم لری، او له ریاکارۍ څخه لیرې وی. په دعاء کې اصل اخفاء (په پټه خوله) کول دي.
قرآنکریم فرمایي چې دعاء په عاجزی او په ژړا سره کول ښه دی، د حضرت زکریا علیه السلام هم همدا طریقه وه: «نداءً خفیاً» همدا رنګه په حدیث شریف کې راځي: «خیرالدعاء الخفی» ښه دعاء داده چې آهسته وغوښتله شی. «ادعواربکم تضرعاوخفیة» د فتح الباری ۲ هم ټوک ۲۲۹ صفحه کې راغلی: چې غوره طریقه داده چې مقتدی او امام به په ټیټ آواز سره دوعاء کوي، مګرکه د دوعاء د ورزده کولو اړتیاوه، یاکه به زوره راوستله شی، څه حرج نشته. خلاصه اچې محدثین، مفسرین او فقهاؤ له له اقوالو څخه په څرګنده معلومیږی چې په ورو آواز دعاء غوښتل، د امام، مقتدی او منفرد هریوه لپاره أفضل او مسنونه طریقه ده، داخلاف اولی او مکروه ده. چې امام په زوره دعاء کوی، نو پکار ده چې د سنت عظمت او اهمیت په پام کې ولرو، او پر هغه باندی د عمل کوښښ وکړو.

د مفتی محمد شفیع رحمه الله فتوا داده، چې ترټولو مکروه او مفسده داده چې ځینی مسبوقین (هغه چې څورکعتونه ځیني تیرشوی وی) په لمانځه ولاړوی او امام په لوړآواز سره دعاء کوی. داځکه چې دلمونځ کوونکو په لمانځه کې خلل راځی، همدا وجه ده چې له رسول الله ﷺ، صحابه کرامو رضی الله عنهم، او آئمه وو څخه دا صورت نه دی منقول شوی چې له لمانځه وروسته دی امام دعاء وکړی او مقتدي دې آمین وایی، لنډه دا چې په عامه حالاتو کې دی



امام او مقتدی له دې څخه ځان وساتی او په ټیټ آواز دې دعاء کوی، لیکن که د دغه مذکوره مفاسد نه وی که په زوره دعاء وکړی څه باک نلری، مقتدیانو ته هم پکارنه دی چې امام په جهري دعاء ویلو مجبور کاندی، خدای تعالی دهرچا دعاء اوری که په عربي ژبه دعاء ورته یاده نه وی، نو په خپله ژبه او بله هره ژبه دې دعاء لوستلای شی، خو په ورو آواز. (خلاصة الفتاوی، رحیمیه ص۲۶۲ ج۴، ص۱۰۵ ج۱)

**مسئله:** په هغو لمونځونو کې چې ترفرضو وروسته سنت وی، نو په دغه وخت کې ترسنتو مخکې لنډه دعاء ویل پکار ده. (بهشتی زیور ص۳۲ ج۱۱)

**مسئله:** په ټیټ آواز سره دعاء کول افضل دی، که لمونځ کوونکو ته کوم تکلیف نه رسیږی بیا کې په لوړآواز سره کله ناکله ووایی، هم څه باک نلری، مګر همیشه په جهر سره دعاء کول مکروه دی. په آحادیثو کې چې د دعاء په اړه کوم روایات شته، چې نبی کریم ﷺ کومه دعاء او څنګه ویله، په هغه کې دا هم دي چې آنحضرت ﷺ په رکوع کې سبحان ربی العظیم او په سجده کې سبحان ربی الاعلی ویله، خو دلته دا ثابته ده چې دا تسبیحات په جهر سره نه دی، نو همدا رنګه دا هم ثابته شوه چې دعاء ئې هم په جهرسره نه کړله. (فتاوی رحیمیه ص۱۸۲ ج۱)

(البته امام به اوږدې اوږدې دعاء ګانې هم دځان عادت نه ګرځوی، ځکه چې په دی سره یود سنت تأخیر راځی او بل نورو لمونځ کوونکو ته ګران تماميږی.)

مسئله : د دعاء په اول او اخیر کې درود شریف لوستل د دعاء د قبولیت لپاره ښه امید بخښونکی دی. (آپ کی مسائل ص۲۸۳ ج۲)

مسئله : له آنحضرت ﷺ څخه وپوښتل شول چې کومه دعاء ښه قبلیږي؟ آنحضرت ﷺ وفرمایل: د شپې د وروستی برخې او فرض لمونځونو وروسته دعاء ښه قبلیږي. (فتاوی رحیمیه ص۲۰۲ ج۱ فتاوی محمودیه ص۲۰۰ ج۱۲)

مسئله : کله چې امام له لمانځه فارغ شي، نو امام او مقتدیان دې یو ځای په شریکه دعاء وکړي، بیا دې نو نفلونه او سنتونه وکړي او پخپلو کارونو پسې دې ځي، دوهم ځل دریم ځل نوافلو یا سنتو وروسته دعاء او یا خلک دې ته اړ ایستل چې تر دعاء پورې انتظار وکړي، دا جواز او هیڅ ثبوت نلري. (فتاوی دارالعلوم ص۱۲۰ ج۴ فتاوی رحیمیه ص۱۸۳ ج۱)

مسئله : حضرت سائب رضی الله تعالی عنه له خپل پلار څخه نقل کوي، چې رسول الله ﷺ چې به کله دعاء کوله، نو خپل دواړه مبارک لاسونه به ئې پورته نیولي وو، او چې دعاء به ختمه شوه نو دواړه لاسونه به ئې پر مخ مبارک را تیر کړل. (مشکوة شریف ص۱۹۶ ج اسباب للدعاء)

مسئله : په دعاء کې به لاس دونه پورته نیسي چې د غوږونو پر محاذاة وي، او د څنګلو له پورته کولو سره بغلونه را ښکاره نه شي. (احکام دعاء مفتی محمد شفیع رح ص۱۱)

مسئله : له فرائضو وروسته دعاء کولای شي، دا ضروري نه ده چې د امام پر دعاء به مقتدي صرف آمین وایي، یعنی پخپله هم دعاء غوښتلای شي. (فتاوی دارالعلوم ص۲۰۱ ج۲ بحواله درالمحتار ص۴۸۹ ج۱)

مسئله : که چیري مقتدي ته کوم ضرورت وي او د هغه ضرورت په وجه له سلام ګرځولو وروسته سمد ستي ولاړ شي، له امام سره



شریکه دعاء پریږدي، په دې کې هیڅ حرج او ګناه شته او نه په دې کار ملامت ګڼل کیدای شي، مګر که ضرورت ونلري، او پاتې شي له امام سره په شریکه دعاء وکړي نو دا ښه کار دی او ثواب ډیر لري. (فتاوی دارالعلوم ص۱۰۳ ج۴ بحواله درمختار ص۴۹۵ ج۱)

مسئله : له فرض لمانځه وروسته پر سر باندي لاس ایښودلای او دا دعاء لوستلای شي. «بسم الله الذی لااله هوالرحمن الرحیم اللهم اذهب عنی الهم والحزن» (امداد الاحکام ص۴۸۷ ج۱)

مسئله : له فرض لمانځه وروسته: «اللهم انت السلام ومنک السلام تبارکت یاذالجلال والاکرام» ویل مسنون او افضل کار دی، نو ځکه دا دعاء ډیره لوستله کیږي، مګر په بله دعاء سره هم سنت اداء کیدای شي، نو بلې دعاء ته خلاف سنت ویل صحت نلري. (فتاوی رحیمیه ص۲۵ ج۳)

مسئله : له لمانځه وروسته لاس پورته کول او دعاء غوښتل شرعا ثابت او مستحب عمل دی. ځکه اتفاقا کله پریښودل شي لچا څخه، نو څه اعتراض نشته وربانډي. (فتاوی محمودیه ص۲۴۱ ج۱)

مسئله : د دعاء له آدابو څخه دادي چې دواړه لاسونه تر سینې پورې پورته ونیسي او د دواړو لاسو په منځ کې یو څه اندازه فاصله وي، دواړه سره بندول خلاف اولی دي. (فتاوی رحیمیه ص۲۰۲ ج۲ بحواله شامی ص۴۷۴ ج۱)

مسئله: د دعاء په وخت کې د دواړو لاسونو به منځ کې یو څه فاصله پریښودل افضل کار دی. (فتاوی محمودیه ص۲۶۸ ج۱)

مسئله : له لمانځه وروسته دعاء په لومړي سر او اخیر کې څوتکې په جهر سره ویل جائز دي، مګر اهتمام ئې ضروري نه دی. (فتاوی محمودیه ص۲۲۸ ج۱)

(ترڅو ئې خلک جزء نه بولي ـ محمد رفعت قاسمی نځوله)

مسئله: مقتدي خپله دعاء هم کولای شي او د امام پر دعاء هم آمین ویلی شي، دواړه صحت لري خو ولې اخفاء بهتره ده. (فتوی محمودیه ص۲۶۱ ج۱۰)

مسئله: له لمانځه وروسته بالالتزام مصافحه یا معانقه (په غیږ او په لاس پوښتنه (روغبړ) کول درست کار نه دی، له دې نه ځان ساتل پکار دي، مګر که چیرې له چا سره لومړني ملاقات وي، هغه که څه هم د لمانځه وروسته برابر شي، په دې صورت کې جواز لري مصافحه او یا معانقه کیدلای شي. (نظام الفتاوی ص۱۵۰ ج۱)

## د امام له دوهم سلام څخه وړاندې د مقتدي راګرځیدل

سوال: زموږ د مسجد امام صاحب تر ډیره پورې سلام اوږدوي، نو یو مقتدي مخکې له دې چې امام دویم سلام پوره کړي، مخ راګرځوي او ځان وزګاروي، په داسې حال کې چې مقتدي ته خو د امام متابعت ضروري دی، نو آیا د نوموړي دا عمل چې تر امام مخکې ځان فارغ کوي، درست دی کنه؟

جواب: امام ته هم پکار نه ده چې سلام اوږدوي (یعني سلام په قرائت وایي) تر دومره پورې چې د مقتدي سلام په منځ کې ختم شي، او دغه مقتدي ته هم پکار نه ده چې تر امام وړاندې د فارغ کیدلو هڅه کوي، که څه هم لمونځ ئې صحت لري، خو دا دواړه عمل مکروه دي. په ټول لمانځه کې ئې چې دومره انتظار کاوه، نو د سلام په وخت کې دې هم لږ نور صبر وکړي. (آپ کی مسائل ص۲۶۲ ج۳، فتاوی دارالعلوم ص۱۹۳ ج۲)

مسئله: که چیرې په السلام علیکم کې د «علیکم» پر ځای «علیتم» له خولې راووزي، لمونځ کیدلای شي. (فتاوی دارالعلوم ص۴۵ ج۴، درمختار ص۴۱۸ ج۱)



مسئله: د سلام ګرځولو په وخت کې صرف د قبلې څخه مخ ګرځول کافي دي. د سینې ګرځولو ته څه اړتیا نشته. (فتاوی دارالعلوم ص۲۷ ج۲)

مسئله: که چیرې یو سړی دغه وخت په امام پسې اقتداء وکړي چې امام «السلام علیکم» کې د «السلام» تکی پوره اداء کړي، نو د دغه سړي جماعة او اقتداء صحت نلري، خپل لمونځ به جدا کوي دی مقتدي او امام ئي امام نه ګڼل کیږي جماعة ځیني فوت دي. دا ځکه چې د السلام پر «م» باندې لمونځ پای ته ورسید. (فتاوی دارالعلوم ص۲۸۲ ج۲، بحواله ردالمحتار ص۴۳۶ ج۱، فتاوی محمودیه ص۱۲۲ ج۲، اغلاط العوام ص۶۸)

مسئله: که چیرې ئي تکبیر تحریمه پوره ادا. کړ مخکې تر دې چې امام سلام ګرځوي؛ نو دی په جماعة کې شریک دی، لمونځ ئې صحت لري، دوهم ځل تکبیر تحریمه ویلو او لمونځ جدا کولو ته اړتیا نشته. (فتاوی دارالعلوم ص۶۵ ج۴، شامی ص۴۳۶ ج۱)

مسئله: که مقتدي له امام سره شریک او امام سمدستي دغه مهال سلام وګرځاوه، نو مقتدي ته پکار ده چې تشهد پسې پوره کړي او بیا ولاړ شي. (شامی ص۴۶۳ ج۱، فتاوی دارالعلوم ص۳۸۰ ج۳)

او دا هم جائزه ده چې تشهد پوره نکړي، ولاړ شي. (فتاوی دارالعلوم ص۱۶۵ ج۲)

مسئله: د «السلام علیکم» ویلو هروخت که تر امام وړاندې د مقتدي سا ودریږي نو د مقتدي په لمانځه کې څه خلل نه راځي (یعني مطلب ئي دا نه شو چې تر امام وړاندې ئي ځان فارغ کړ). (فتاوی دارالعلوم ص۱۲۳ ج۲، ردالمحتار ص۴۹۰ ج۱ باب صفة الصلوة)

مسئله : د لمانځه د اختتام لپاره صرف د «السلام علیکم ورحمة الله وبرکاته» ټکي کفایت کوي، ضروري نه ده چې «وبرکاته» لفظ هم ورسره اضافه شي. (فتاوی دارالعلوم ص۱۹۶ج۲)

مسئله : په کومو لمونځونو کې چې ترفرضو وروسته سنت نه وي، لکه د سهار، مازیګر لمونځ، په دې وختو کې امام اختیار لري چې له سلام ګرځولو وروسته امام ښي طرف ته یا چپ طرف ته مخ اړوي، په حدیث شریف کې د دواړو ثبوت راغلی او فقهاؤو هم دواړو اړخونو ته د ګرځیدلو اجازه کړې.

(فتاوی دارالعلوم ص۱۳۹ج۴، ردالمحتار ص۴۹۶ج۱، بخاری ص۱۱۸ج۱ فتاوی محمودیه ص۱۲۶ج۲، آپ کی مسائل ص۲۵۲ج۲)

مسئله : جهت که بدلیږي را بدلیږي دا ښه کار دی څکه چې عوام بیا یو طرف ضروري ګڼي. (فتاوی رحیمیه ص۳۵ج۳)

د امام په دې را ګرځیدلو کې مقصد دا وي چې امام د تسبیح فاطمي ترختمیک چې له کومو خلګو څخه لچې رکعتونه تیر شوي؛ هغوی څرنګه لمونځ کوي، درست دی کنه؟ همدا رنګه دا به هم ګوري چې څوک مسجد جماعة ته نه دی حاضر شوي او سبب ئې څه دی، او بیا به دا شیان اصلاح کوي څکه چې امام د خلکو مسئول او دیني مشر دی. (محمد رفعت قاسمي غفرله)

## لمونځ ولې په سلام و یاو ختمیږي؟

څرنګه چې رسول کریم ﷺ خپل امت ته د لمانځه د پیل او آغاز لپاره ترټولو ستره او سپیځلې کلمه «الله اکبر» ښودلي ده؛ همدا رنګه ئې د اختتام او پای ته رسیدلو لپاره هم په زړه پوري کلمات ښودلي دي: «السلام علیکم ورحمة الله» په دې کې فلسفه او حکمت دا دی چې



سلام هغه وخت ویل کیږي چې څوک له چاسره په لومړي ځل مخ کیږي، نو دا چې یو بنده لمونځ په تکبیر سره پیل کړي او له الله تعالی سره ئې ملاقات وشي، نو ګویا دغه بنده په کامله توګه له عالم شهود څخه غائب شو، او په دغه وخت کې هیڅ څوک ئې د زړه د سترګو په وړاندې موجود نه وي، بیا چې کله په اخیره ناسته کې له تشهد، درود او وروستي دعاء څخه فارغ شي، نو ګویا دغه بنده اوس یو یې بلې د نیا (عالم شهود) ته سترګې راغړوي او له نویو خلکو سره مخ کیږي، نو په السلام علیکم ورحمة الله» ویلو سره د هغوی ملاقات ته راځي، زما په نزد د دې حکم راز او فلسفه همدا ده. (معارف الحدیث ص۳۰۸ج۳)

## لمونځ چې په کومو شیانو فاسدیږي

۱- د لمانځه له معلومو شرطونو څخه دیوه شرط نه پوره کیدل مثلا طهارت نه وي. (باید وویل شي چې د طهارت د نه موجودیت ځینې صورتونه داسې دي چې لمونځ نه فاسدوي چې موږ به ئې د مکروهاتو د بیانولو څخه وروسته په یو ځانګړي عنوان کې بیان کړو.)

۲- بې هوښي، لیونتوب او د حواسو بې ځایه کیدل.

۳- په قصدي توګه بې له عذره له قبلې څخه مخ اړول، که بې له قصده په غیر اختیاري توګه سینه له قبلې څخه وګرځي، نو اوس که د یوه رکن د اداء کولو هومره وخت همداسې پاتې شي نو لمونځ فاسدیږي، کنه نو صحیح دی، او یا د څه عذر په وجه سینه وګرځوله شي، مثلا د لمانځه په حالت کې چاته دا شبه شوه چې اودس ئې مات شو په دې خاطر ئې له قبلې څخه سینه را وګرځوله، او وروسته ورته

یاده شوه چې اودس ئې نه دی مات شوی نو اوس که دغه له مسجد څخه تروتلو مخکې ورته یاده شوه نو لمونځ ئې نه دی فاسد او که له مسجد څخه تروتلو وروسته ورته یادشوه ، نو لمونځ ئې فاسد شو.

مسئله: د لمانځه د کوم فرض پریښودل ، مثلا قرائت بالکل نه کوی ، قیام ، رکوع ، سجده اوداسی نور نه کول ، که په قصد سره وی او که په هیره سره

۴– په قصدي توګه د لمانځه واجبات پرېښودل.

۵– واجبات په هیره پاتیدل او بیا د هغه په وجه سجده سهو نه کول.

۲– د لمانځه په حالت کې خبری کول ، په دې شرط چې لږترلږه ۲ دوه حرفه یو اویاداسی یو حرف وی چې معنی ئی ښه فهمیدلای شی.

(درمختار ، علم الفقه ص ۱۰۰ ج ۲)

د خبرو پنځه قسمه دی: اول داچې څوک چاته خطاب کوی داکلام په هرحال کې مفسد دی ، قصدا وی ، که سهوا ، په عربی ژبه وی یابله ، د قرآنکریم په لفظ وی یابل لفظ. مثلا :

۱– یو سړی دافکروکړی چې زه په لمانځه کې نه یم او یاپه بل شکل غلط سی ، له چاسره خبری پیل کړی.

۲– د لمانځه په حالت کې چاته ووایی: «أقتل الحية» ( مار ووژنه ! ).

۳– په لمانځه کې چاته ووایی چې : وایه ! )

۴– کوم یحی نامی سړي ته ووایی : «یایحی خذالکتاب» (ای ، یحی داکتاب ، اخله ) یا دموسی په نوم سړي ته ووایی ، «یاموسی» (ای ، موسی ) یا چاته ووایی «اقرأ»( وایه ) دا ټول الفاظ د قرآن مجید دي ، همدا حکم د سلام او د سلام د ځوابولو ده. او همدا حکم د یو پرچ



کوونکي د ځواب « یرحمک الله » دی ، او همدارازد ښه خبر په اوریدو سره چې سړی ووایی: «الحمدلله» یا بل لفظ ووایی. لکه د الله تعالی د نوم په اوریدلو سره «ﷻ» او د رسول کریم ﷺ د نوم په اوریدوسره درودشریف ووایی داټول لمانځه ته مفسد ګرځی ، په دې شرط چې غرض ئې دهغه سړی ځواب وی. (درمختاروغیره)

خلاصه داچې که چیری له سړیو سره په مخاطبه کې خبری وشی ، که هرډول وی او په هرحالت کې وی ، لمونځ فاسدیږی.

(علم الفقه ص ۱۰۱ ج ۲، نمازمسنون ص ۴۲۸ شرح نقایه ص ۹۱ ج ۱، هدایه ص ۶۱ ج ۱، کبیری ص ۴۳۴، درمختار ص ۴۵۵ ج ۱)

دویم قسم خبري دا دي چې له ځان سره کلام وشی ، داهم په هرصورت مفسد دی. دریم قسم خبري دادي چې پخپله له ځان سره څوک خبري وکړی ، دا کلام هم مفسد صلوة دی خو په دې شرط چې عربی الفاظ نه وی ، او په قرآنکریم کې نه وی ، اوکه عربی لفظ وی او هم په قرآن کې وی مثلا د خپل پرچې په ځواب کې ووایی: «الحمدلله» او یا داډول نور الفاظ ، نو دا لمونځ نه فاسده وی. اوکه چیری د چا یو لفظ تکیه کلام وی ، مثلا د یو سړی « نعم» لفظ عادت وی هره شیبه ئې وایی نو په دی سره هم لمونځ فاسدیږی که څه هم عربی او د قرآنکریم لفظ وی.

څلورم قسم ، ذکر اودعاء ده ، چې داهم لمونځ فاسدوی ، په دې شرط که له عربی پرته په بله ژبه وی اویا په عربی وی ، خو په قرآنکریم او حدیث کې نه وی وارده. اونه داچې دهغه شی غوښتنه له الله تعالی پرته له بل چا څخه حرامه وی ، یعنی له بل چا هم غوښتل کیدای شی ، مثلا په لمانځه کې ووایی: «اللهم اعطنی الملح » ای الله !

ماته مالګه راکړه . اویاداچې ووایی : « اللهم زوجنی فلانة » (ای الله ! ماته فلانۍ ښځه راپه نکاح کړه ) دا ډول دعاګانی ، نه په قرآن کې شته اونه په احادیثو کې ، نه د هغوی طلب له الله پرته له بل چاڅخه منع ده ، نو د داسې دوعاګانو په وجه لمونځ فاسدیږی ، که دا شرطونه نه وی په دعاء سره لمونځ نه فاسدیږی. (دادوعاګانی چې په لمانځه کې بیځایه وویلی شی مثلا په رکوع ، سجده اوداسې یوبل ځای کې )

پنځم قسم ، د لمانځه په حال کې بل چاته فتح ورکول : چې څوک په لمانځه کې قرآن غلط ووایی او یا بله غلطی ورځنی صادره شی ، نو بل فتح ورکې یعنی په هغه غلطی ئې پوه کړی ، خوداپه دی شرط چې فتح ورکوونکی مقتدی نه وی او فتح اخیستونکی دده امام نه وی . (علم الفقه ص۱۰۱ج۲)

مسئله : څرنګه چې د فتح ورکولو مسئله د فقهاؤو ترمنځ اختلافی ده ، څینو علماؤ خو په دی اړه مستقلې رسالې لیکلې ، نو موږهم دلته څو جزئي تکې ذکر کوو ، صحیح خبره داده چې که مقتدی خپل امام ته فتح ورکړي ، لمونځ ئې نه فاسدیږی، که امام د ضرورت سره سم قرائت کړی وی کنه ، (یعنی هغه مسنون قرائت ئې پوره کړی وئی ، کنه ؟ ) (نورالفائق ، شامی وغیره)

مسئله : که امام مسنون قرائت پوره کړی وی ، نو پکار ده چې رکوع ته ولاړشی ، او مقتدیان دې ته اړنه باسې چې فتح ورکړي ، اومقتدیان هم باید ترهغه پوري چې اشد ضرورت نه وي ، فتح ورنکړي ، مطلب داچې که امام په لمانځه کې غلط شی نو سکوت



وکړی ، رکوع ته ولاړنشی ، نو که دلته مقتدی فتح ورکړی څه باک نلری ، که چیری یو سړی بل ته فتح ورکړی ، دوی سره مقتدی او امام نه وی ، نو د دغه فتح اخیستونکې لمونځ فاسدیږی که د هغه په فتح عمل وکړی ، او که چیری ده ته پخپله یادشی ، که څه هم د فتح سره یو ځای اویا لږشاته وروسته او د فتح ورکوونکې څه دخل پکښې نه وی ، بیانه فاسدیږی. (شامی ، علم الفقه ص۱۰۲ج۲)

او د دغه سړی چې فتح ئې علی غیرالامام ورکړی وي ، یعنی هغه چاته ئې فتح ورکړی وی چې هغه ئې امام نه دی په هرصورت د ده لمونځ فاسد دی ، (بحرالرائق وغیره)

که چیری یو سړی د بل چاڅخه واوری اویا په قرآن مجید کې وګوری د هغه لمخې خپل امام فتح ته ورکړی ، نو د ده خپله لمونځ هم فاسد دی او امام که د هغه فتح واخلی نو د هغه هم لمونځ فاسد دی.

(علم الفقه ص۱۰۲ج۲، هدایه ص۸۷ج۱، کبیری ص۳۴۰، شرح نقایه ص۹۱ج۱)

همداراز که څوک په قرآنکریم کې ګوری او قرائت وایی ، لمونځ ئی فاسد دی. (درمختار)

مقتدی ته پکار ده چې دفتح په وخت کې د قرائت قرآن نیت ونکړی ، صرف فتح ورکړی ، ځکه چې د احنافو په نزد مقتدی ته قرائت کول نشته ، (فتح القدیروغیره)

په لمانځه کې غاړی تازه کول پرته له څه عذراو یاصحیح غرض ، مثلا څوک د ټوخی مرض لري. یاغیراختیاری ټوخی ورشي او یائې غرض صحیح پکښې وی ، نو بیالمونځ نه فاسدیږی د صحیح غرض مثال:

۱-د آواز د تصفيې لپاره توخى كول ، ۲-د مقتدي توخى غاړي تازه كول په دى خاطر چې امام پر خپله غلطى پوه كړى ، ۳-يو سړى چې په دې خاطر غاړى تازه كوى چې نور پوه كړى چې گويا هغه پر لمانځه ولاړ دى. (علم الفقه ص۱۰۲ج، فتاوى رحيميه ص۲۴۱ج۱)

**مسئله:** ژړا يا آه يا اُف كول ، په دې شرط چې د څه مصيبت او يا درد په وجه وى ، كه چيرى غير اختياري له چا څخه دا خبرې صادرې شى ، او يا د خداي تعالى څخه د ويرې او خوف په وجه د جنت او دوزخ په يادونه سره وژاړى نو بيا لمونځ نه فاسدوي ، كه د غم او درد په وجه وى ، نو بيا فاسديږى. (درمختاروغيره)

**مسئله:** خوراك او څښاك كول ، كه څه هم ډير لږ وى ، مگر كه چيرى د غاښونو په منځ كې كوم شى د نخود د دانى څخه كم وى او هغه د سړي تيرشي نو لمونځ نه فاسدوي ، مطلب دا چې په كوم اندازه خوراك چې روژه فاسد وى ، همدارنگه لمونځ هم فاسدوى. (درمختاروغيره)

**مسئله:** عمل كثير لمونځ فاسدوي ، په دې شرط چې د لمانځه د افعالو د جنس څخه نه وي او يا هم د لمانځه د اصلاح په غرض نه وي ، كه چيري دا عمل كثير د لمانځه د افعالو له جنس څخه وي مثلا يو سړى په يوه ركعت كې دوې ركوع وكړي ، يا درې سجدې وكړي ، نو په دې سره لمونځ نه فاسديږى. څكه چې دا عمل د لمانځه له جنس څخه دى ، دا راز كه د لمانځه دا راز كه د لمانځه د اصلاح په غرض وي ، بيا هم لمونځ نه فاسدوى ، مثلا د يو سړى اودس مات شى د لمانځه په حال كې ، نو دى دا اودا سه لپاره ولاړ شى اودس تازه كړي راشي پر لمانځه ودريږي ، د دې سړى لمونځ فاسد نشو ، كه څه هم



گرځيدل ، راگرځيدل ، اودس كول عمل كثير دى ، مگر چونكه د لمانځه د اصلاح لپاره ترسره كيږى نو په همدى وجه دا مفسد نه بلكې معاف دى.

**مسئله:** په لمانځه كې كه د كومې ښځي تى ورودل شى او له هغه نه شيدې راووزى نو د دى ښځي لمونځ فاسد دى څكه چې شيدې وركول عمل كثير دى. (درمختار وغيره)

**مسئله:** په لمانځه كې كه كوم څوك يو ضررى حيوان (ژوى) د له مينځه وړلو په غرض ډبره وغورځوى ، نو لمونځ نه فاسديږى او كه پر كوم انسان وروغورځوله شى نو عمل كثير گڼل كيږى ، او لمونځ فاسدوى. (علم الفقه ص۱۰۳ج۲)

**مسئله:** امام كه داسې يو سړى د جماعة لپاره خليفه كړي چې صلاحيت او وړتيا ونلرى. مثلا مجنون يا نابالغ هلك يا كومه ښځه مخته كړى ، دا هم لمونځ فاسدوى. (درمختار)

**مسئله:** د قرآنكريم په قرائت كې غلطي كول ، دا غلطي كه په اعراب كې وى يا مشدد صرف ، مخفف وويل شى ، يا بالعكس ، او يا كوم حرف يا كلمه بدله كړلى شى يا كم او زيات كړلى شى ، لنډه دا چې په قرآن كريم كې غلطى كول په دې لاندى صورتونو كې مفسد صلوة گرځى:

۱-په دې غلطى سره معنى بدله شى ، داسى چې د چا اعتقاد د كفر دى ، په قرآن مجيد كې كه وى كه نه وى.

۲-معنى ئې بدله شوه ، كه څه هم اعتقاد ئې د كفر نه وى مگر د قرآن په عبارت كې نه وى.

۳ – په معنی کې تغیر راشي او هغه معنی ذالته مناسب نه وي که څه هم په قرآن مجید کې وي.

۴ – په معنی کې ئې تغیر راغلی وي د لفظ په اوښتلو سره، مثلا د «سرائر» پر ځای سرائل ولوستل شي، او که داسې غلطي وي چې لامله ئې په معنی کې ډېر تغیر نه وي راغلی او مثل ئې په قرآن مجید کې موجود وي، نو لمونځ نه فاسدیږي.

که چیری پر کوم لیکل شوي کاغذ باندې د چا نظر ولګیږي او د هغه معنی ئې هم په ذهن کې راشي، نو لمونځ نه فاسدیږي، او که د چاسترګی د چا پر عورت (فرضو) ولګیدې بیا هم لمونځ نه فاسدوي.
(بحرالرائق)

که چیری یو څوک د لمانځه په مخکې تیرشي، لمونځ یې نه فاسدیږي، که څه هم د لمانځه په مخکې تیریدل ستره ګناه ده. که څوک د لمانځه په حالت کې وغواړي د لمونځ کوونکی تر مخ تیر شي او هغه ئې مزاحمت وکړي، دا عمل جائز دی، څه باک نلري. (درمختار)

دلته چې مونږ کوم صورتونه بیان کړل، دا د متقدمینو د قواعدو سره سم دي، او د هغوی په مذهب کې احتیاط زیات وي. مثلا متأخرین د اعراب په غلطی سره لمونځ فاسد نه ګڼي، نو همدا وجه ده چې مونږ د متقدمینو مذهب غوره کړی دی. (قاضي خان، شامي وغيره....)

د لمانځه د غه ټول مفسدات چې لږ مخکې بیان شول، که چیری تر اخیره ناسته مخکې وي یا په اخیره ناسته کې تر تشهد وړاندې رامنځ ته شي؛ نو لمونځ فاسدوي، کنه نو مفسد نه دي. بلکې متمم



دي، یعنی د دې مفسداتو په راپیداکیدلو سره لمونځ متمم کیدای شي، مګر په دې څولاندې صورتونو کې:

۱ – هغه څوک تیمم وهونکی چې په اخیره ناسته کې د التحیات تر لوستلو وروسته پر اودس کولو قدرت پیدا کړي.

۲ – هغه څوک چې پر موزوئي مسح کړې وي؛ مده ئې پوره شي او یا چې پر پټی یې مسح کړې وي او هغه زخم په دغه وخت کې جوړ سي.

۳ – یا د یوه چا موزه له پښې وخیژي.

۴ – یا ئې خپله وکاږي، خو چې په عمل کثیر سره نه وي.

۵ – یا کوم امی (نالوستی سړی) ته په دغه وخت کې یو سورة یاد شي.

۶ – یا هغه څوک چې لوڅ بدن لمونځ اداء کوي، دغه مهال جامه پیدا کړي.

۷ – یا هغه څوک چې په اشاره لمونځ کوي، خو اوس دومره جوړ سي چې رکوع او سجده کولای شي.

۸ – یا امام د بې اودسی په وجه بل څوک د جماعة لپاره خلیفه کړي، خو په هغه کې د دې صلاحیت نه وي.

۹ – یا د سهار په لمانځه کې لمر وروباندې راوخیژي.

۱۰ – یا د جمعې په لمانځه کې د مازیګر وخت داخل شي.

۱۱ – یا یو سړی داسې معذور دی چې اودس نشي کولای، خو په دغه وخت کې ئې عذر له مینځه ولاړ شي.

۱۲ – یاکوم د ترتیب خاوند ته قضائي لمونځ وریاد شي، خو وخت دومره هم وي چې هغه قضائي اداء کړای شي. نو په دې ټولو

صورتونو کې لمونځ فاسدیږي، که څه هم دغه امور هغه وخت رامنځ ته شوي وي چې د لمانځه ټول ارکان پوره شوي وي. (علم الفقه ص۱۰۶ ج۲)

دا (۱۲) صورتونه دي چې په دې ټولو کې د امام صاحب په نزد لمونځ فاسدیږي، او د صاحبینو په نزد نه فاسدیږي. بلکې پوره کیږي ځکه چې په دې صورتونو کې مفسد صلٰوة د التحیات تر ویلو وروسته په اخیره ناسته کې راپیدا شوي دي. په داسې حال کې چې د لمانځه هیڅ، رکن پاتې نه دی، نو په همدې وجه لمونځ فاسد نه بلکې پوره شو. مګر دا چې د امام صاحب په مذهب کې احتیاط ډېر زیات دی، له همدې امله هغه وايي چې څومره ممکن وي په عباراتو کې باید هغومره احتیاط وشي. دا ښه او افضل کار دی، همدا وجه ده چې د فقهې په ټولو متونو کې همدا مذهب غوره کړل شوی دی چې موږ هم همدا اختیار کړ. (والله اعلم، شامی)

## د لمانځه د فساد په اړه مسائل

هغه امور چې د لمانځه په جریان کې د راپیدا کېدلو له امله لمونځ فاسدوي؛ هغه په لاندې توګه دي:

مسئله: پرچ کوونکي ته په ځواب کې «یرحمک الله» ویل لمونځ فاسدوي، دا راز که څوک د غم خبر واوري، او «اناالله و انا الیه راجعون» الفاظ ووايي، یا څوک ښه خبر واوري او «الحمدلله» ووايي یا د ډېره دلچسپه او عجیبه خبره واوري، نو «سبحان الله» یا «لااله الاالله» ووايي. یا د چا د پوښتنې په ځواب کې د قرآنکریم یو آیة ووايي. او د هغه لپاره جواب شي. دا ټول شیان لمونځ فاسدوي.



او صاحب ترتیب سړي ته د لمانځه په جریان کې قضائي لمونځ وریاد شي، په داسې حال کې چې وخت هم وي. (تفصیل د قضاء په بیان کې دی)

په لمانځه کې مخکې تردې چې د تشهد په اندازه کښیني؛ تیمم وهونکي ته اوبه پیدا شي او د استعمال وس ئې هم ولري، نو لمونځ ئې باطل شو. دا راز که مقتدي اودس کړی وي او امام متیمم وي؛ امام ته اوبه پیدا شي، نو د مقتدي لمونځ باطلیږي، فرض لمونځ، او هغه لمونځ نفل ګرځي.

او مخکې له دینه چې د تشهد د لوستلو په اندازه کښیني؛ پر موزو یا پټۍ د مسح موده پوره شي، دا راز د موزو ختل، که څه هم په ډېر معمولي حرکت سره وخیژي. (د تفصیل لپاره، مسائل خفین وګورئ) هغه څوک چې بالکل امي، نالوستی وي، د لمانځه په وخت کې ئې یو آیة نالوستی وي، د لمانځه په وخت کې ئې یو آیة ناڅاپي زده کړ لمونځ ئې باطلیږي. په دې شرط چې د داسې سړي مقتدي نه وي، چې د هغه قرآن زده وي.

نو د غه سړي یا له چا څخه په اورېدلو د قرآن آیة زده کړي، یا ئې هیر شوی وي، خو اوس ورته یاد شي، نو لمونځ ئې باطل دی، په دې شرط چې د تشهد په مقدار تر کښیناستلو وړاندې داسې وشي چې هغه ئې چا څخه په اورېدلو سره زده کړي.

کوم سړي چې په اشاره لمونځ کوي؛ د لمانځه په دوران کې په دې وتوانیږي چې رکوع او سجده وکړي، نو لمونځ ئې باطلیږي، کوم سړي چې د لمانځه د رکوع صلاحیت نه، نه ئې نالوستي معذور.

هغه امام خلیفه وګرځوی ، نو لمونځ باطلیږی. د سهار لمونځ کوي لمر راوخیژي یا داختر انو په لمونځو کي لمر ترسر واوړي

څوک د جمعې لمونځ اداء کوی چې د مازیګر وخت ورباندی داخل سی نو لمونځ باطل شو. که یو چا پر زخم باندی پټی لګولی وی او د لمانځه په دوران کې ئې زخم جوړشی ، پټی ځینی جدا شی ، نو لمونځ باطل شو. او دا راز د یو معذور عذر چې د لمانځه په حالت کې رفع شی ، لمونځ ئې باطلیږی ، همدارنګه د اودس د ماتیدلو په صورت کې بې له څه عذره د یوه رکعت د آداء کولو په اندازه انتظار وکړی ، لمونځ فاسد یږی.

یعنی دوهم ځل به ئې آداء کوی ، لمونځ کوونکی که له خپل ځای نه لیری شی بل ځای ته لمونځ ئې باطلیږی ، که څه هم له مسجد څخه دباندی ونه وزی ، مقتدی که له خپل امام نه پرته بل چا ته فتح ورکړی . لمونځ بې فاسدیږی یوازی خپل امام ته فتح ورکولای شی ، لمونځ کوونکی که د بل سړی ورکړې فتح باندی عمل وکړی ، لمونځ یې باطل شو. څوک چې یو لمونځ یې شروع کړی وی ، د هغه لمانځه په جریان کې بل لمانځه ته انتقال شی ، یعنی د بل لمانځه لپاره تکبیر ووایی نو لمونځ ئې فاسد شو ، همدا راز په تکبیر (الله اکبر) کې لومړی الف کشول لکه (آلله اکبر) او همدارنګه د (اکبر) «باء» کشول لکه: (اکبار) دارنګه ویل دواړه لمونځ فاسدوی ، که په لمانځه کې د بدن هغه برخه چې پټول ئې فرض دی ، که یوه حصه ئې لڅه شی ، لمونځ باطل شو ، یا ئې پر بدن ناپاکی ولګیږی تر درمه وخته پورې پاتې شی چې په د غو مره وخت کې یو رکن اداء کیدای شی. لمونځ فاسد دی.



که یو مقتدی تر خپل امام وړاندی رکن اداء کړی ، په دې صورت کې هم لمونځ باطل ، دارنګه که مقتدی په جماعة کې تر خپل امام وړاندی ودریږی ، لمونځ یې باطل دی. په څلور رکعتي لمانځه کې په دې ګمان چې دوه رکعتیز دی ؛ سلام ګرځول ، لمونځ باطلوی ، مثلا د ماپښین لمونځ دی څلور رکعته د ده ګمان شی چې د جمعې لمونځ دی پر دوه رکعته سلام وګرځوي. (کتاب الفقه علی المذاهب الاربعه ص۲۶۹ تر ص۲۷۲ ج۱)

څوک چې پر لمانځه ولاړ وی او یو بل ړوند سړی د هلاکت په ځای کې لویږی نو دی په لمانځه کې ږغ ورباندی وکړی تر څو هغه له هلاکته وژغوری ، نو د ده لمونځ فاسد شو. (کتاب الفقه ص۲۷۷ ج۱)

**مسئله** : که ماشوم راشی د لمانځه په حالت کې د مورتی وروی او شیدی ور ځینی راووزی د دی لمونځ باطل شو. البته که شیدې راونه وزی بیا لمونځ نه فاسدیږی. (بحرالرائق ص۱۲ ج۱، بهشتی زیور ص۲۲ ج۲)

**مسئله** : په لمانځه کې که د چا په ستوني کې کوم خوږ شی وی ، یعنی صرف ذائقه ئې وی نو لمونځ ورسره صحت لری ، خو که د غه شی په خوله کې وزبیښل شی او تر ستونی تیر شی نو لمونځ فاسدیږی.

**مسئله** : په لمانځه کې د نخود داني په اندازه زیات وکم د خوراک شی په خوله کې راشی نو په لاس او یا بله جامه دی هغه له خولې نه وغورځوی ، له دی امله په لمانځه کې هیڅ ډول نقصان نه راځی.
(فتاوی دار العلوم ص۱۲۱ ج۴، در المختار ص۵۸۸ ج۱)

**مسئله** : په لمانځه کې که چاته په خوله کې ناړې یا بل داسې شئ د تو کلو ډیر شی او تیرولای یې نشی نو په یوه کالي یا دستمال کې دی راچوی. (فتاوی دار العلوم ص۱۱۲ ج۴، مشکوة ص۷۱ ج۱ باب المساجد)

**مسئله** : په لمانځه کې چې د پرچې او تیغ کوم آواز جوړیږي په هغه سره لمونځ نه خرابیږي ځکه چې له هغه نه ځان ساتل ګران کار دی.

(کتاب الفقه ص۲۸۶ ج۱، شرح نقایه ص۹۲ ج۱)

**مسئله** : خو که په پرچې او تیغ کې داسې کوم الفاظ ورزیات کړل شي چې قدرتي نه وي، نو په هغه صورت کې لمونځ فاسدیږي.

(کتاب الفقه ص۲۸۶ ج۱)

**مسئله** : که بل څوک دعاء کوي او دی د لمانځه په حالت کې پر هغه باندې آمین ووایي، لمونځ ئې باطل دی. (کبیری ص۴۳۹)

**مسئله** : په لمانځه کې آذان ته ځواب ویل هم لمونځ فاسدوي.

(کبیری ص۴۴۲، نماز مسنون ص۴۸۳)

**مسئله** : د کوم شي په لاندې غورځیدلو سره «بسم الله» ویل هم لمونځ فاسدوي داراز که کومه ناخوښه خبر واوري او «لاحول لاقوة الابالله» ووايي هم بې لمونځ باطل وي.

**مسئله** : د درد او غم په وجه «آه» او «أف» ویل هم مفسد دی. مګر که د څه مرض په وجه ئې څوقابو کولای نشي، نو لمونځ نه باطلیږي.

(هدایه ص۸۶ ج۱، شرح نقایه ص۹۲ ج۱، کبیری ص۴۳۷)

**مسئله** : د کوم دنیوي مصیبت یا بدني تکلیف لامله په لوړ آواز سره ژړل هم مفسد صلوة دی. (کتاب الفقه ص۲۷۸ ج۱)

**مسئله** : که په لمانځه کې د الله تعالی له ویرې د آخرت او دوزخ د یادولو په سبب سړي ته ژړا ورسي نو دا غیر اختیاري ژړا ده، لمونځ نه فاسدیږي. (هدایه ص۸۶ ج۱، شرح)



**مسئله** : په لمانځه کې که چاته پرچې ورشي نو پکار نه ده چې «الحمدلله» ووايي، خو که وویل شي لمونځ نه فاسدیږي. (آپ کی مسائل ص۳۲ ج۲)

**مسئله** : که د مجبورۍ په وجه چاته ارمیږه راشي، نو کوشش دې وکړي او له خولې نه آواز پورته نکړي، په دې صورت کې بیا أرمیږه کولې لمونځ نه فاسدیږي. خو که احتیاط ونشي او ور سره آواز هم جوړ شي او حروف پکې پیدا کړي نو بیا لمونځ فاسدیږي. (عمدة الفقه ص۲۵۲)

**مسئله** : په لمانځه کې مصافحه کول، سلام اچول یا د سلام ځواب ورکول لمونځ فاسدوي. (کبیری ص۴۴۱ شرح نقایه ص۹۲ ج۱، نماز مسنون ص۴۸۱)

**مسئله** : په لمانځه کې صرف غاړه ګرځول مکروه دي، البته د سترګو ترڅنګونو یوه وبل اړخ ته کتلای شي. لیکن دا هم مناسب نه دی، او که له قبلې څخه سینه یوه اړخ ته وګرځوي ترد ومره پورې چې یو رکن اداء کیدای شي نو په دې صورت کې لمونځ فاسدیږي.

(کتاب الفقه ص۲۴۳ ج۱، هدایه ص۹۰ ج۱ کبیری ص۳۵۱، شرح نقایه ص۹۲ ج۱)

**مسئله** : پر ناپاک ځای سجده لګول لمونځ فاسدوي.

(درمختار ص۹۰ ج۱، شرح نقایه ص۹۲ ج۱)

**مسئله** : په قرائت کې که فاش غلطي وشي چې له امله ئې معنی رد و بدل شي، نو لمونځ فاسدیږي، همداراز قرآنکریم که د موسیقی په طرز لوستل کیږي نو په دې سره هم لمونځ فاسدیږي. (درمختار ص۹۰ ج اول)

**مسئله** : د لمانځه په دوران کې له دباندې نه د یو شي خوړل یا څښل چې هغه ترستوني تیرشي، که څه هم ډیر وړوکی او لږ شي وي؛ لمونځ فاسدوي. (نماز مسنون ص۴۸۹ شرح نقایه ص۹۲ ج۱)

## په کومو شیانو لمونځ مکروه کیږی ؟

**مسئله** : د لمانځه په حالت کې جامه داسی اغوستل چې د دستور او عادت خلاف وی ، نو دا مکروه تحریمي دی ، مثلا یو سړی کمیس واغوندی خولۍ په لستوني کې وانه چوی یا څادر پراوږه وانه ړوی.

**مسئله** : رکوع او سجدې ته د تلو پرمهال خپلې جامې له خاورو څخه د ژغورلو او یا بل غرض په وجه پورته کول مکروه تحریمي دی. (ردالمختار وغیره...)

**مسئله** : په لمانځه کې داسی یو عبث فعل کول چې د عمل کثیر حد ته ونه رسیږی ، مکروه تحریمي دی. مثلا: کوم سړی د خپلې ږیرې وینښتان په لاس کې نیسی. (۲) بې ضرورته خپلې جامې پیچی او یا په بدن لوبې کوی.

**مسئله** : په لمانځه کې هغه جامې اغوستل مکروه دی ، چې څوک په عامو مجالسو کې وربأندی شرمیږی مګر که بله جامه ئې نه وه بیا څه باک نلری.

**مسئله** : که څوک د لمانځه پرمهال د سرو یا سپینو ، ږبرې یا بل کوم شی توته په خوله کې ونیسی نو دا مکروه تنزیهي ده ، په دې شرط که قرائت ته مخل نه و. که چیری قرائت ته مخل وی ، نو بیا لمونځ فاسد وی. (درمختار، شامی)

**مسئله** : په لغ سر لمونځ کول مکروه دی. مګر که ذ عاجزۍ ، خشوع او خضوع د څرګندولو په وجه وی بیا څه حرج نشته. که په لمانځه کې د چا له سره خولۍ یا لنګوټه وغورځی ، نو بهتره دا ده چې په همدغه



حالت کې یې پر سر کړی خو که په آسانۍ سره نه بلکې عمل کثیر ته اړتیا وه ، نو بیا دی نه پرسر کوی. (ردالمحتار، علم الفقه ص۱۰۶ ج۲)

**مسئله** : په داسی حال کې چې سړي ته د پیشاب ا یا هوا وتلو ضرورت وی ، په دغه حالت کې لمونځ مکروه تحریمي دی. مخکې له لمانځه به ضرورت رفع کوی او بیا به لمونځ کوی. — (درمختار وغیره)

خو که چا لمونځ شروع کړ او وروسته له شروع د لمانځه په جریان کې دغه ډول ضرورت ورته پیدا شو نو پکار ده چې هغه لمونځ پریږدی ، له ضرورت نه تر فارغ کیدلو وروسته اودس تازه کړی او بیا خپل لمونځ په اطمنان سره ادا کړی ، که فرض لمونځ وی ، که نفل ، که منفرد لمونځ کوی او که په جماعة سره. او دا ویره هم وی چې د جماعة دویم رکعت نشی موندلای. نو همدا پورتنی حکم دی. خو که چیری دا ویره وه چې د لمانځه وخت تیریږی او یا هم د جنازې لمونځ وی چې هغه تیریږی. نو بیا پروا نلری ، په همدې حالت کې دې خپل لمونځ پوره کړی. — (شامی)

**مسئله** : د نارینه وو لپاره دا مکروه تنزیهي ده چې د خپلو ویښتانو څخه کوڅۍ جوړې کړی او بیا لمونځ ورسره کوی او که عینا د لمانځه په حالت کې دا کوڅۍ وتړی ، نو لمونځ یې فاسد شو. ځکه چې دا عمل کثیر دی. (درمختار، شامی)

**مسئله** : د سجدې له ځایه څخه د خس وخاشاک او یا بل داسی مضر شی لیری کول مکروه تحریمي دی. خو که بالکل سجده نه ورسره کیږی نو بیا دی لیری کړې څه باک نلری. د امکان په صورت کې یې نه لیری کول بهتر دی.

**مسئله** : د لمانځه په حال کې په ګوتو ټکان کول او یا یو په بل کې کښې ایستل مکروه تحریه دي. -- (بحر، شامي...)

**مسئله** : په لمانځه کې له ة ې څخه مخ ګرځول مکروه تحریمي دي. که پوره مخ واړول شي، ؟ نیم مخ. (شامي)

**مسئله** : د سترګو ترکونجانو اخوا دیخوا کتل مکروه تنزیهي دي. (درمختار وغیره)

**مسئله** : مخامخ بل سړي ته لمونځ کول مکروه تحریمي دي. (شامي وغیره)

**مسئله** : د سر. او یا لاس په اشاره د سلام ځواب ورکول مکروه تحریمي دي.

**مسئله** : سجده یوازې پر پوزه او یا پر تندي لګول مکروه تحریمي دي. (درمختار، علم الفقه ص١٠٧ ج٢)

**مسئله** : د لنګوټې پر ولونو باندې سجده کول مکروه تحریمي دي. (درمختار وغیره)

**مسئله** : په لمانځه کې بې له عذره چارزانو کښیناستل مکروه تحریمي دي (درمختار وغیره)

**مسئله** : په لمانځه کې ارمیږي ایستل مکروه تنزیهي دي. (شامي)

**مسئله** : په لمانځه کې سترګې پټول مکروه تنزیهي دي، مګر که د سترګو په بندولو کې خشوع غرض وي، او په دې سره زیاتیږي نو بیا مکروه نه بلکې افضل کار دی. (درمختار)

**مسئله** : امام ته مکروه ده چې په محراب کې په پوره ډول دننه ودریږي، لیکن که سجده په محراب کې لګوي او پخپله د باندې ودریږي نو مکروه نه دي. (درمختار وغیره)



**مسئله** : یوازې چې امام پر دومره لوړ ځای ودریږي چې لوړوالی ئې د یوه ګز یا زیاته اندازه وي، او مقتدي لاندې وي، نو مکروه تنزیهي دي، خو که مقتدي هم ورسره پورته ودریږي، بیا څه باک نلري. (درمختار وغیره)

**مسئله** : مقتدیانو ته دا مکروه تنزیهي ده چې پر لوړ ځای ودریږي، مګر که ضرورت وي، مثلا جماعة کې خلک زیات شي، ځای نه وي، نو څوک لوړ پر بامونو او یا یو بل لوړ ځای ودریږي نو څه خبره نه ده. (درمختار وغیره...)

**مسئله** : په داسې ځای یا داسې جامه کې لمونځ کول چې د ژویو تصویر وي پکښې؛ نو لمونځ پکې مکروه ده، د ذیروح تصویر که په خونه کې وي مخ ته، یو یا بل څنګ ته، نو لمونځ نه ده صحیح، او که لاندې یا شاته وي ؛ پروا نلري. (درمختار وغیره...)

**مسئله** : په لمانځه کې سورتونه، آیاتونه او یا تسبیح پر ګوتو شمیرل مکروه تنزیهي دي، مګر که پر ګوتو حساب نه، بلکې د ګوتو په ټینګولو سره حساب کړل شي، مکروه نه دي. لکه صلوة التسبیح په بیان کې چې راغلي. (شامي، علم الفقه ص١٠٨ ج٢)

**مسئله** : په لمانځه کې پوزه پاکول یا دا ډول بل کوم وړوکی عمل بې ضرورته مکروه تحریمي دي.

**مسئله** : خوله یا پوزه چې په کوم کالي وتړله شي، د لمانځه په حالت کې، دا عمل مکروه تحریمي دي.

**مسئله** : د قرائت ترختمیدلو وړاندې رکوع ته تلل او بیا په رکوع کې قرائت پوره کول مکروه تحریمي دي. (شامي)

**مسئله** : مخکې له دې چې په رکوع او سجده کې ۳ ځله تسبیح وویل شي، سر راپورته کول مکروه تنزیهي دی.

**مسئله** : په داسې یوه جامه کې لمونځ کول مکروه دي چې قابل معافي نجاست پرې لګېدلی وي. (رسائل ارکان)

**مسئله** : په فرض لمونځونو کې په قصدي توګه د قرآني ترتیب خلاف قرائت کول مکروه تحریمي دی. یعنې کوم سورة چې مخکې وي، هغه وروسته کول او وروسته چې وي هغه مخته کول، مثلاً: «قل یاأیها الکافرون» په لومړي رکعت کې او «ألم ترکیف» په دویم رکعت کې وویل شي.

که سهواً وي، بیا مکروه نه دی، همدارنګه په نوافلو کې که قصداً بې ترتیبه وویل شي هم څه کراهت نلري. (شامي) علم الفقه ص۱۰۹ ج۲)

**مسئله** : له یوه سورة نه څو آیتونه په یوه رکعت کې او د همدې سورة له بل ځای نه څو آیتونه په بل رکعت کې ویل مکروه تنزیهي دی. په دې شرط چې ترمنځ ئې له دوو آیتونو څخه کم پرېښودل شي. که مسلسل وویل شي، په منځ کې ئې څو آیتونه پرېښودل شي، نو بیا کراهت نلري. داراز که دوه سورتونه په دوو رکعتونو کې وویل شي او د دې دواړو سورتونو ترمنځ یو وړوکی سورة چې نږدې درې آیتونه ولري؛ پرېښودل شي. دا کراهت هم ترفرائضو پورې تخصیص لري، په نفلو کې که د دې رعایت ونشي؛ څه حرج نشته. (شامي)

**مسئله** : په یوه رکعت کې دوه سورتونه داسې لوستل چې ترمنځ ئې بل سورة پرېښودل شي. که غټ سورة وي، که وړوکی؛ یو وي که

14



تریوه زیات، دا مکروه تنزیهي ده، چې کراهت د دې هم ترفرضو پورې خاص دی. (شامي)

**مسئله** : کله چې امام قرائت وایي، نو مقتدي ته قرائت ویل، دعا کول، او یا داسې بل ذکر کول که څه هم د قرآن سورة فاتحه وي، مکروه تحریمي دی. (علم الفقه ص۱۲۰ ج۲)

**مسئله** : پرسر باندې د ستمال داسې تړل چې ککرۍ تري لڅه وي؛ مکروه دی.

**مسئله** : سجدې ته د تللو په وخت کې د شا او مخ جامې سره راټولول مکروه دي.

**مسئله** : څادر او یا جامې داسې پرځان اچول چې لاسونه پکښې بندېږي، مکروه دي.

**مسئله** : په لمانځه کې بالاراده خوشبوئي لګول مکروه دي.

**مسئله** : سترګې د آسمان په لوري په قصدي توګه مکروه دي.

**مسئله** : بې ضرورة ځینې وړې خزندې د لمانځه په حال کې وژل مکروه دي، مګر که ئې له چیچلو او یا خوړلو څخه ویره وه بیا څه باک نلري. لکن له وینې څخه ئې ځان ساتل پکار دي.

**مسئله** : یو چاکه په مسجد کې بې له عذره یو ځای ځان ته مخصوص کړی وي او یائې د لمانځه لپاره یو سورة ځانګړی کړی وي، په داسې حال کې چې بل سورة هم ورته یاد وي؛ دا مکروه دي.

## د قضائي لمونځونو بيان

بې له څه عذره لمونځ قضاء کول ګناه کبيره ده، چې له رښتينی توبې پرته معاف کيدلای نشی، د حج کولو په وسيله هم کبيره ګناه بخښل کيدای شی

همدا رنګه أرحم الراحمين ذات چې کله پرېنده مهربان شی نو پرته له کومې وسيلې څخه معاف کولای شی.

**مسئله** : که پر يوه ځای له څوتنو نه د کوم وخت لمونځ قضاء شی. نو هغوی ته پکار ده چې همغه لمونځ په جماعة سره بيا را وګرځوی. که جهری لمونځ وی، په جهر سره به ئي وايي. که خفيه لمونځ قضاء شوی وی، خفيه به ئي راګرځوی. (علم الفقه ۱۲۰ ج، امداد الاحکام ص۶۶۸ ج۱)

**مسئله** : قضاء لمونځ بالاعلان اداء کول ګناه ده، ځکه چې د لمانځه قضاء پټپله ګناه ده، او د ګناه اظهار (ښرګندتيا) ګناه ده، د قضائي لمانځه طريقه همغه د آداء د لمانځه د طريقه، په قضائي لمانځه کې به دا نيت هم کوی چې زه د فلانی وخت قضائي لمونځ کوم، او که چير ئي نيت ونکړی، بيا هم صحت لري، ځکه چې قضاء په نيت د اداء او ادا په نيت د قضاء صحيح کيدلای شی. (علم الفقه ص۱۲۱ ج۲، فتاوی دارالعلوم ص۳۳۹ ج۴)

**مسئله** : د فرض لمانځه قضاء فرض او د واجب لمانځه قضاء واجب ده، د وترو قضاء هم واجب ده، دا راز د نذر لمانځه قضاء واجب ده، او هغه نفل چې له شروع وروسته فاسد کړل شی، ځکه چې له شروع وروسته نفل واجب ګرځی، د مؤکد سنتو او يا نورو نوافلو قضاء نشی اداء کيدی، که په دې غرض کوم لمونځ وشی، نو هغه ئې قضاء نه بلکې جدا لمونځ حسابيږی، مګر د سهار د سنتو په اړه حکم دا دی



چې له فرضو سره ئی قضاء وشی او بياد دې فرض قضاء تر زوال وړاندی راګرځوله کيږی نو همدا د سهار سنت به هم ورسره راګرځوی، خو که له زوال وروسته وی، نو بيا ئي قضا نشته، او د ماپښين د سنتو په اړه حکم دا سی ده چې که مخکښې څلور رکعتونه سنت تير شی، نو بيا ئي د همدغه ماپښين په وخت کې تر ۲ سنتونو وړاندی راګرځول کيدای شی، که له فرض سره يو ځای تيرشوی وی، که جدا.

**مسئله** : د وختی او قضائي لمونځونو او همدا راز پخپله د قضائي لمونځونو ترمنځ ترتيب ضروری دی. په دې شرط چې هغه قضاء لمونځ فرض يا وتر واجب وی، مثلاله چا څخه د ماپښين لمونځ قضاء شو نو د دغه قضائي او د مازيګر وختی لمانځه د ترتيب خيال به ساتی، يعنی تر څه وخته چې د ماپښين لمونځ يې نه وي راګرځولی مازيګر نشي کولای ګرځی او که چا د ماخستن وتر نه وی کړی، د سهار لمونځ نشی کولای تر څو ئې هغه راګرځولی نه وی، همدا راز د کوم چا پرذمه چې د سهار او ماپښين دواړو قضاء پاتی وی، نو د هغوی ترمنځ هم ترتيب ضروری دی، يعنی تر څوئي د سهار قضائي نه وی راګرځولی؛ د ماپښين قضاء نشی راګرځولی، که ئي راوګرځوی هغه هم نفل ګرځي، مګر که چيری پنځه لمونځونه همدا سی مسلسل له دې قضائی لمانځه وروسته اداء کړل شی، هغه ټول صحيح دی، په دې کې ترتيب ساقطيږی، چې لږ مخکی به ئې بيان راشی په کومو صورتونو کې چې ترتيب ساقطيږی.

۱-لومړی صورت نسيان: يعنی دا چې قضائي لمونځ يې هير شی، په ياد ورنشی په دې صورت کې ترتيب ساقط دی، مطلب دا چې د

وقتي لمانځه اداء کیدل ئي درست دی. او بل دا چې له یو څانه په مختلفو ورځو کې څه لمونځونه قضاء شوي وي، مثلاً ماپښین د یوې ورځې، مازیګرد بلې ورځې او ماښام بیاد بلې ورځې، او ده ته دا یاده نه وي چې کوم یو مخ ته دی نه په دې صورت کې د دوی ترمنځ هم ترتیب ساقطیږي، کوم یو چې ئي خوښ وي، هغه دی اول اداء کړي.

(شامی)

**مسئله**: که چاته د ترتیب د وجوب علم نه وي یعنې په دې نه پوهیږي چې ترتیب واجب دی. نو په دې صورت کې هم دا جهالت یا ناخبرتیا د نسیان(هیری) په حکم کې راځي او ترتیب ورځنی ساقطیږي.

(ردالمحتار)

**مسئله**: که د لمانځه د شروع کیدلو په وخت کې سړي ته قضائي لمونځ یاد نه وي خو په وروسته کې ورته یاد شي، یعنې په اخیره ناسته کې له التحیات وروسته یا شاته، خو ترسلام ګرځولو مخکې وي، نو دغه لمونځ یې نفل شو، بیرته به نیت تړي، قضائي به ئي راوړي او وروسته به خپل فرض لمونځ کوي.

۲-دویم صورت د وخت لږوالی، که چیرې د چا پر ذمه قضائي لمونځ وي او د وخت لمونځ په داسې تنګ وخت کې اداء کړي چې یوازې همدا لمونځ ځائیدلای شي، نو دلته هم ترتیب ساقط دی هر یو چې مخ ته اداء کوي، درست دی د مازیګر په لمانځه کې هغه مستحب وخت د اعتبار وړ ده، یعنې په مستحب وخت کې که صرف دومره ګنجایش وو چې صرف د مازیګر فرض وکولای شي، نو ترتیب



ساقط دی، که څه هم په اصل کې ګنجایش وي، ځکه چې د لمرتر ژړیدو وروسته لمونځ مکروه دی.

(علم الفقه ص۱۲۲ج۲، فتاوی دارالعلوم ص۳۵۳هدایه ص۱۲۸ج۱)

**مسئله**: که پر چا باندې د ډیرو لمونځونو قضاء وه، او په وخت کې د تېرولو ادا ینه مشکله وه، نو په دې صورت کې هم صحیح دا ده چې ترتیب ساقط وي.

۳-صورت: د قضائي لمونځونو له پنځو څخه زیاتیدل «وتر» په دې پنځو کې نه شمیرل کیږي که هغه هم حساب کړی شي نو ګویا داسې ده چې تر شپږو زیات شي، دغه قضائي لمونځونه که حقیقتا قضاء وي، که حکما؛ حقیقتا داسې چې لمونځ پر وخت اداء شوي نه وي، حکما داسې چې قضائي لمونځ ئي پر ذمه پاتې وي، او ترتیب هم ورباندې واجب وي، خو د ده د دې قضائي د نه راګرځیدلو باوجود د وخت لمونځ کړی وي، نو دغه د وخت لمونځ ئي نفل وګرځیدی آدا نشو ګویا دغه لمونځ حکما قضاء شو، نو چې دغه قضائي لمونځونه تر پنځو زیات شي، له ده څخه ترتیب ساقط دی، د وخت لمونځ صحیح دی، مثلاً له چا څخه د سهار لمونځ قضاء شو، تر بله سهاره پورې ئي را ونه ګرځاوه او دا نور لمونځونه ئي وکړل، نو د دې بل سهار لمونځ ئي صحت لري ځکه چې قضائي تر پنځو زیات شو، خو یو حقیقتا دی او څلور حکما چې د هغوی ادا نه ده صحیح شوې، د هغه یوه قضائي د نه راګرځیدو لامله.

(علم الفقه ص۱۲۲ج۲، فتاوی دارالعلوم ص۳۵۲ج۴، هدایه ص۱۳۷ج۱، درمختار ص۶۶۶ج۱)

## ترتیب تر کومه وخته پورې وي ؟

ترپنځو لمونځونو پورې ترتیب باقي وي، که څه هم هغه په بیلابیلو وختونو کې قضاء شوي وي، او وخت هم ډیر تیرشوی وي، مثلا له چا څخه یو لمونځ قضاء شو، خو د ده هیرشو، څوورځې تیرې شوې، بل لمونځ ځنې قضاء شو، دا ئي هم هیرشو، بیا څوورځې تیرې شوې، بیا دوه درې ځله داسې نور وشول چې دا پنځه لمونځونه شول، اوس په دې کې ترتیب واجب دی، یعنې د وریادیدلو په صورت کې که وی تر قضائي لمځه د وخت لمونځ وکړی، هغه صحت نلری، نفل ګرځي. (درمختار، ردالمختار)

## د ترتیب له ختمیدلو وروسته حکم څه دی ؟

د ترتیب له ساقطیدلو وروسته بیا راګرځیدی نشي، مثلا د چا قضائي لمونځونه ترپنځو زیات شول، او ترتیب ورځنې ساقط شو، نو دی را ولاړشي، د قضائي لمونځونو په ادا ینه پیل وکړی ترهغو چې پنځه پاتې شي، نو داسې نه ده چې په دغو پنځو کې ترتیب شته، د دې له اداء کولو پرته هم د وخت لمونځ ئي صحت لری. (علم الفقه ص۱۲۳ ج۲)

**مسئله** : که له چا څخه په سفر کې لمونځ قضاء شوي وي، نو د اقامت په حالت کې به هغه دوه رکعته سفریانه لمونځ راګرځوی، او که د اقامت لمونځ قضاء شوي وي، او بیا مسافر شي، نو هغه د اقامت څلور رکعته لمونځ به راګرځوي. (درمختار وغیره)

**مسئله** : نفل لمونځونه له شروع کیدلو نه وروسته واجب ګرځي، که څه هم په یو مکروه وخت کې پیل شوي وي، یعنې پوره کول ئې لازمي دي، او که کوم فساد یا تحریمي کراهت پکې راشي نو قضاء ئي راوړل لازمي ګرځي، دا په دې شرط چې په قصدي توګه نفل شروع شوي وي داسې نه چې په تصادفي توګه سړی فکر کوی چې فرض ئي پاتې دی نو د فرضو په نیت لمونځ پیل کړی او وروسته ورته یاده شي چې فرض لمونځ ئي کړی دی؛ نو د ده دا لمونځ نفل ګرځي، پوره کول ئي وربانډی لازمي نه دی، او که څه فساد یا کراهت پکښې راشي راګرځول ئي هم ضروري نه دی دا راز که سړی په اخیره ناسته کې سهوا ولاړ شي او دوه رکعته پسې وکړی نو دا دوه رکعته ئي نفل ګرځي، دا ځکه چې ده دا لمونځ قصدا شروع کړی نه وو. همدارنګه که د لمانځه شروع قصدا وی خو په فاسده طریقه سره، بیا هم په دې پورتنیو صورتونو کې وربانډی قضاء راګرځول نشته. مثلا یو سړی په ښځه پسې د نفل لمانځه اقتداء وکړی؛ نو دا شروع ئي اصلا صحت نلری، لهذا پوره کول ئي ورته ضروری نه دی او نه ئي د فساد په صورت کې راګرځیدل شته. (علم الفقه ص۱۲۴ ج۲)

**مسئله** : که نفل لمونځ له شروع کیدلو وروسته فاسد کړل شي نو صرف د دوو رکعتونو قضاء راوړل وربانډی لازم دی، که څه هم نیت ئې د څلورو رکعتونو کړی وي، دا ځکه چې د نفلو هره شفعه یعنې هر دوه رکعته د جدا لمانځه حکم لری.

**مسئله** : که چیرې یو څوک د څلور رکعتونو نفلو نیت وکړي او په دواړو شفعو کې قرائت ونکړي، یا په اوله شفع کې قرائت ونه وایې، یا بې په دوهمه کې ونکړی، یایې په اوله کې صرف په یوه رکعت کې ونه وایې، یا صرف د دوهمې شفع په یوه رکعت کې ئي ونکړی او

د اولي په دوارو رکعتونو او د دوهمې شفع صرف په یوه رکعت کې ئي ونکړي ، نو په دې ټولو شپږو صورتونو کې پر ده باندې صرف د دوو رکعتونو قضاء لازمه ده ، په لومړي دویم صورت کې صرف د لمړی شفع ، ځکه چې د لومړی شفع په دوارو رکعتونو کې د قرائت نه کولو په سبب د هغه تحریمه فاسده شوه چې د دویمې شفع بناء بیا ورباندې صحت نلري ، ګویا دویمه شفع شروع شوې نه ده ، پس نو قضائي هم نشته ، په دریم صورت کې صرف د دویمې شفع ، له دې سببه چې په اوله شفع کې څه فساد نه دی راغلی ، فساد صرف په دویمه شفع کې راغلی دی ، په څلورم صورت کې صرف په اوله شفع کې ، ځکه چې فساد یوازې په همدې کې راغلی دویمه شفع بلکل صحیح ده ، په پنځم صورت کې صرف په دویمه شفع کې ځکه چې فساد صرف په همدې کې راغلی دی ، لومړی شفع بالکل صحیح ده په شپږم صورت کې صرف لومړي دوه رکعتونه ځکه چې په اولو دوارو رکعتونو کې د قرائت نه کولو په سبب د هغه تحریمه فاسده شوی او دویمې بناء ورباندې صحیح نه ده. نو له همدې امله ئې قضاء هم ورباندې لازمه نه ګرځي.

**مسئله** : که چیري یو سړی څلور رکعته نفل نیت وکړي او د هرې شفع په یو یو رکعت کې قرائت وکړي او په یوه یوه رکعت کې ئې پریږدي ، اویا د لمړی شفع په یوه او د دویمې په دوارو رکعتونو کې ئې ونکړي نو په دې دوارو صورتونو کې د څلورو رکعتونو قضاء لازمه ګرځي ځکه چې په دې دوارو صورتونو کې په لمړی شفع کې تحریمه فاسده شوې نه ده ، له همدې امله د دویمې شفع بناء پر همغه باندې



صحیح ده ، او فساد په دوارو شفعو کې راغلی دی. (علم الفقه ص۱۲۵ ج۲، کتاب الفقه ص۲۹۴ ج۱)

**مسئله** : د حیض او نفاس په حالت کې چې کوم لمونځونه اداء شوي نه وي ، هغوی معاف دي قضاء یې نشته ورباندې مګر که حیض او نفاس په داسې وخت کې ختم شي چې په هغه کې یوازې تکبیر تحریمه ځائیدلای شي نو د دغه وخت لمونځ اداء کول ضروري دي ، که څه هم لږ مخکې ئې اداء کړی وي ، ځکه چې تر دې د مخه ورباندې فرض نه وو ، لمونځ اوس فرض شوی د مخکنی اعتبار نشته ، همدارازکه کوم نابالغ په داسې وخت کې بالغ شي نو پر ده هم د همدې وخت د لمانځه قضاء شته. د دې مسئلې تفصیل د حیض په بیان کې دی.

همدارازکه چیرې یو هلک د ماخستن لمونځ وکړي ، بیا ویده شي ، سهارچې راپاځیږي نو پر خپله جامه د منی آثر ووینی چې د احتلام نښه وي ، نو هغه ته پکار ده چې د ماخستن لمونځ راوګرځوي. (فتاوی قاضی خان)

**مسئله** : که چیرې یوې ښځې لمونځ کړې نه وي او په اخیر وخت کې حیض ورپیښ شي ، نو د دغه وخت لمونځ ور څخه معاف دی ، قضاء یې ورباندې نشته (شرح وقایه وغیره ، علم الفقه ص۱۲۵ ج۲، کتاب الفقه ص۲۸۹ ج۱)

**مسئله** : که یو سړی لیونی او یا بې هوښه شي او د غه ناروغی ئې تر شپږو لمونځونو پورې ورسیږي نو د دغو لمونځونو قضاء ورباندې نشته ، دا لمونځونه ورځنې معاف دي ، مګر که تر پنځو لمونځونو

بوري بې هوښه وي ، ولې پرشپږم لمانځه باندې جوړشي ، دغه لمونځ ورباندې شته قضائي هم ورباندې شته .

(علم الفقه ص۱۲۵ ج۲، هدایه ص۱۱۰ ج۱، شرح نقایه ص۱۱۸ ج۱، کبیري ص۲۶۲ ج۱، فتاوی دارالعلوم ص۳۳۹ ج۴، کتاب الفقه ص۷۸۸ ج۱)

**مسئله** : کوم کافرچې په دارالحرب کې اسلام راوړي او په لمانځه باندې دنه پوهیدلو له امله لمونځ ونکړي ، نو څومره وخت چې هلته وي ، لمونځونه ئې نه قضاء کیږي ، د دې لمونځونو قضاء باندې شته .(درمختار وغیره)

**مسئله** : که له چاڅخه ډیر لمونځونه قضاء شوي وي ؛ او اداء کول ئې وغواړي نو د راګرځولو پروخت د هغه تعین ورته ضروري دی ،په دې توګه چې ووایي زه دا د هغه سهار لمونځ کوم چې ترټولو وروسته اڅخه قضاء شوی دی . له هغه وروسته بیا د هغه لمانځه وکړي چې تراخیري قضائي له مخه ورڅخه قضاء شوی وي. دارنګه د ماپښین ، مازیګر ، ماښام او ماخستن... د دې ټولو په راګرځولو کې به په دې ډول تعین کوي. (علم الفقه ص۱۲۶ ج۲)

## له لمانځه وروسته دوهم ځل د هغه لمانځه اداینه

**مسئله** : که چیرې یو سړی د خپل وخت لمونځ چې نفل ، قضاء اونذر لمونځ هم نه وي ، یوازې آداء کړي ؛ بیا جماعت ودریږي ؛ نو مستحب داده چې دغه لمونځ دیو د سلام په ګرځولو سره پریږدي او په جماعة کې شامل شي ، او دا حکم په هغه صورت کې ده چې تراوسه په دغه لمانځه کې سجده لانه وي شوي.

**مسئله** : که چاد ماپښین ، مازیګر ، ماښام یا ماخستن لمونځ تنها یا په جماعة سره اداء کړی وي او بیا د همدې لمانځه لپاره جماعة



ودریدی ،نو دغه سړي ته چې دا ترمخ ئې لمونځ تنها یا په جماعة سره اداء کړیدی ؛ دا جائزه ده چې دوهم ځل په دغه جماعة کې شامل شی او لمونځ ورسره اداء کړي ، البته دغه لمونځ ئې نفل ګرځي ، خو دا په هغه صورت کې ورسره شاملیدی شي چې امام فرض لمونځ کوي که امام نفل کوي نو بیا نشي ورسره شاملیدای ، ځکه چې په مفترض پسې متنفل لمونځ کولای شي ولې په متنفل پسې جماعة مکروه دی ، په دې شرط چې دغه جماعة تردرو سړیو زیات وي. (لکه چې د نوافلو د جماعة په بیان کې داخبره تیره شوه ، (مسائل تراویح)

نو همدا وجه ده چې که چیرې خلکو په جماعة سره لمونځ اداء کړ ، بیا هغوی همدغه لمونځ په جماعة سره وکړ او جماعة هم تر ۳ دریوتنو زیات وو ؛ نو دا کار مکروه دی. او که تردریو کم خلک وو بیا کراهت نلري ، دا هم په دې شرط چې د آذان له کولو پرته اداشي ، ولې که آذان ورته وشي ، دا په هرصورت مکروه دی ، اوکله چې دا معلومه شي چې دا دویم لمونځ نفل دی نو په دې کې د لمانځه حیثیت په مکروه وختونو کې د نفل لمانځه غوندې دی. نو ځکه د سهار او مازیګر لمونځونو راګرځول جائزنه دي ځکه چې د مازیګر له لمانځه وروسته نفل منع دی. (کتاب الفقه ص۶۹۷ ج۱)

**مسئله** : قضائي لمونځ په جماعة سره آداء کول سنت دی.

(فتاوی دارالعلوم ص۳۴۶ ج۴، بحواله مشکوة ص۶۲ ج۱)

**مسئله** : کوم قضایي لمونځ چې په جومات کې تنها اداء کیږي ، د هغه لپاره د آذان او اقامت مشروع نه دی اونه د وترلمانځه لپاره.

(فتاوی دارالعلوم ص۳۴۴ ج۴، ردالمحتار ص۵۶۲ ج۱ باب الأذان)

**مسئله** که قضایي لمونځونه په جماعة سره کیږي نو د لمړي لمانځه لپاره چې آذان وشی ، هغه نوروته هم کفایت کوي ، ولی اقامت به ټولو ته جدا جدا کیږي. (د جماعة په صورت کی) (فتاوی دارالعلوم ص۳۶۰ ج۲)

**مسئله** : د قضاء ذ آداء کولو آسانه طریقه داده ، چې له هریوه لمانځه سره د هغه وخت لمونځ راوګرځوی ، څومره عمرچې فوت شوی دی ، ترهغو مره کلونو پوری دي له هرلمانځه سره د هغه وخت لمونځ کوی .(فتاوی دارالعلوم ص۳۲۵ ج۴)

## د قضائي لمونځو په آداینه کې څنډ

**مسئله** : د چاڅخه چې ډیرلمونځونه قضاءشوی وی ، نو د هغه لپاره واجب داوی چې ډیر ژر ئي په آداینه پیل وکړي. خو که د څه عذر په وجه ئي پروخت نشی آداء کولای ، نو په دی کې څنډ ورته جائز دی ؛ څه وخت چې څومره فرصت په لاس ورځي ترڅو لمونځ دی اداء کوی. البته پریږدي به ئي نه. (درمختار ص۶۷۵ ج۱)

## د قضائي لمانځه نیت

**مسئله** : د چاپرذمه ډیرقضائي لمونځونه شته ، نو د آداء کولو پروخت به نیت داسی کوی ؛ چې لمړی د ماپښین کوم چې ترټولو وروسته راڅخه قضاء شوی دی او بیا به دهغه ورمخته لمانځه نیت کوی. (درمختار ص۲۷۶ ج۱)

## که ترمړینی له مخه قضائي لمونځ رانه ګرځول شی

پوښتنه : که څوک د خپلو قضایي لمونځونو ترآداینی وړاندی په حق ورسیږي او د فدیې ورکولو توان هم ونلری نو له مؤاخذې څخه د برائت صورت به یې څه وی؟



جواب : د قضائی لمونځونو آداء کول او یاهم د هغوی فدیه (ترمړینی وروسته) د عذاب د سقوط موجب کیدای شی ، نورنو د الله تعالی په مشیت پوری اړه لری ، لکه چې فرمایي: (و یغفر مادون ذلک لمن یشاء) (فتاوی دارالعلوم ص۳۶۲ ج۴)

**مسئله** : که پرچاباندی قضائي لمونځونه ډیروی چې شمیرل ئي ستونزمن وی ، نو پکارداده چې له ښه فکرکولو څخه داسی تخمین اواټکل ولګوی چې مثلاً په ۱۴ /یا/ ۱۵ کاله کې بالغ شوی او له دې ورسته یې ۴ /یا/ ۵ کاله لمونځ نه دی آداء کړی، یائي کله کړی او کله ئي پری ایښی ، نو دی دې د خپل اټکل سره سم پرځان یوه اندازه لمونځونه تثبیت کړی او بیا دی د هغه په آداینه پیل وکړي ، همداراز د هغه چالپاره هم چې ډیر قرضونه ورباندي وي ؛ همدا صورت دی ، خومناسب داده چې ترخپل تخمین زیات لمونځونه وکړي ، ځکه چې نفع ئي زیاته اونقصان هیڅ نلری . غاړی به ئي په ښه توګه خلاصی شی. (فتاوی دارالعلوم ص۳۵۳ ج۴، هدایه ص۱۳۸ باب قضاء)

## د قضائي لمونځونو فدیه به کله اداء کیږی؟

په ژوند کې خو د لمانځه فدیه اداء کیدای نشی ، بلکې پخپله د لمانځه اداء کول حتمی دی ، البته که ترآدینه وړاندی په حق ورسیږی ، نو د هرلمانځه فدیه د (صدقة الفطر) سرسایه غوندی ، یاوکم دوه سیره غله ده ، چې د ورځي ترقیمت پوری اعتبار لری ، د آداء کولو په ورځ چې د غلې کوم قیمت وی ، له همغه حساب به ئي قیمت ورکوی ، اوداچې وتریو مستقل لمونځ دی نو له همدې امله د شپې

او ورځي لمونځونه شپږ کېدل کیږي ، او له همدې سببه د يوې ورځې د لمونځونو فديه د شپږو لمونځونو آدء کول پکارده.

او س که چیری میت (مړی) د دې وصیت کړی وی نو دمال د د ریمې برخی څخه دافديه ورکول واجب دی . او که وصیت ئي نه وي کړی ، نو پر وارثينو ئي نشته ، البته که ټول وارثين ئي عاقل او بالغ وی او هريو د خپلی خوښی څخه فديه ورکړی ،امید دی چې د مړی د غاړی په خلاصولو کې مؤثر وی. (آپ کی مسائل ص۳۵۹ج۳)

## قضائي لمونځ په څه وخت کې آداء کول جائز نه دی ؟

(د قضائي لمانځه آداینه څه مهال صحت نلری ؟ )

**مسئله** : درې وختونه داسی دی چې هيڅ لمونځ ورکې صحت نلری، نه نفل ، نه نذر او نه قضائي:

۱–دلمرد راختلو څخه ، بياترڅو لمرښه راپورته شی او ژړوالی ئي له مینځه ځي.

۲–مازيګر د لمر له ژړيدلو څخه بیا د لمرترلويدلو پوری ، البته د هغه مازيګر لمونځ که ئي کړی نه وی ؛ په دغه وخت کې ئي کولای شی ، قضاء کوی به ئي نه.

۳–نصف النهار (د ورځي نيمائي) يعين د زوال وخت ، تردی پوری چې لمر له خپله ځايه وخوځيږی يعنی د استواء له ځايه د غروب پرلوری حرکت وکړی. په دغودريو وختونو کښې يو لمونځ نشی کيدلای له دې پرته نور دری وختونه دی چې نفل لمونځ پکښې جوازنلری ، بلکې قضائي لمونځ او سجده تلاوت پکښی کيدای شی:



۱–له صبح صادق (ربنتيني سهار) وروسته ، ترفجر وړاندی صرف سنت اداء کيدای شی ، بل هيڅ نفل په دغه وخت کې صحت نلری.

۲–د سهارترلمانځه وروسته بياترلمرراختلو پوری ، هيڅ نوافل نشی کيدای.

۳–د مازيګر له لمانځه وروسته ترلمرلويدو پوری.

په دغو دريو وختونو کې هيڅ نفل لمونځ جائز نه دی نه تحية المسجد ، نه تحية الوضوء ، نه دوګانه طواف ، البته قضائي لمونځ راګرځول په دغه وختونو کې جواز لری ، مګر داضروری ده ، چې د خلکو په وړاندی به په دغه وخت کې قضائي لمونځ نه راګرځوی ، بلکې تنهابه ئي کوی. (آپ کی مسائل ص۳۵۲ج۲)

**مسئله** : د کوم چاپرذمه چي قضائي لمونځونه وی ،د هغه لپاره بهتره داده چې د نوافلو پرځای قضائي لمونځونه راوګرځوی ، که څه هم د بيداريو په شپو کې ئي آداء کوي. (لکه د شب قدر ، برات يانوری شپی ) «آپ کی مسائل ص۳۵۶ج۳»

## د مړی له طرفه لمونځ ،روژه آداء کول

**مسئله** : که چيری وارثين د مړی له طرفه د هغه د حکم له مخې د هغه قضائي لمونځونه اداء کوی دا صحت نلری ، ځکه چې لمونځ يوبدني عبادت دی ، چې هر مکلف ته دا حکم دی چې پخپله به ئې اداء کوی ، د بل لپاره آداينه ئي د هغه نشی کيدای ، مګر داخصوصيت يوازی د حج دی .هغه که څه هم بدنی عبادت دی ، که وارث د خپل ميت پرځای حج وکړی دانيابت صحيح دی د مينت له ذمی څخه فرض ساقطيږی ، که څه هم ميت ئې وصينت نه وی ورته کړی. (درمختار ص۶۷۲ج۱، امداد الاحکام ص۶۶۸ج۱)

## د مرض الموت په حالت کې پخپله فدیه ورکول

مسئله : که چیری میت د مرض الموت په حالت کې پخپله د خپل لمانځه فدیه ورکړی ، دا صحت نلری. نو پرده باندی واجب دا ده چې وصیت ئي وکړی ، البته د مرض الموت په حالت کې د خپلی قضائي روژی فدیه ورکولای شی ، خو د دی صحت هم د هغه ترمړینې وروسته ثابتیږی.

مسئله : د لمانځه ، روژې په کفاره کې د ټولې فدیې پیسې یو فقیر (حاجتمند) ته چې د نصاب څښتن نه وی ورکول درست دی ، او داسی هرچاته ئي ورکولای شی. (درمختار ص۶۷۴ ج۱)

## که یو مرتد دویم ځل اسلام قبول کړي؛ څنګه لمونځ به کوی ؟

مسئله : څوک چې یو ځل مرتد شی (له اسلام څخه ووزی) او بیا بیرته اسلام راوړی ، نو د ردت په زمانه کې ئي چې څومره لمونځونه قضاء کړی وی ، او هم هغه لمونځونه چې ترمرتد والی وړاندی ئي قضاء کړی وی راګرځوی به ئي نه ، ځکه چې هغه د مرتد کیدلو په وجه د اصلی کافرغوندی شوی دی ، نو څرنګه چې پر اصلی کافر باندی د کفر د مهال د لمونځونو قضائي راګرځول نشته دا راز پرمرتد چې اسلام ئي اوس منلی وی ؛ هم نشته ، البته د حج قضاء به راوړی، هغه ورباندی ضروری دی. (درمختار ص۶۷۵ ج۱)

مسئله : که چیری یو مریض لمونځ په تیمم سره کوی او د سختي ناروغی په حالت کې په اشارې سره هغه لمونځ راګرځوی چې د جوړتیا په وخت کې ورڅخه فوت شوی و. نو دا صحت لری ، لمونځ ئې درست دی ، د بیا راګرځولو ضرورت ئي نشته. (درمختار ص۶۷۶ ج۱)



## آیا قضائی لمونځونه په پټه باید اداء کړل شي ؟

15 مسئله : مناسب دا ده چې له چا څخه لمونځونه قضاء شوي وی ؛ هغه دې بیا د راګرځولو پرمهال نورڅوک نه خبروی ، یعنی په داسی ځای او وخت کې دی نه کوی چې نورخلک پوه شی چې دا قضائي لمونځ راګرځوی ، په پټه دې اداء کړی، دا ځکه چې لمونځ پرخپل وخت نه کول اوله وخت نه وروسته کول یومعصیت اوګناه ده نو د ګناه څرګندول ښه کار نه دی ،بده خبره ده،لکه چې په شامی کې راځی قضائي لمونځ علی الاعلان راګرځول مکروه تحریمی دی.

(درمختار ص۶۷۷ ج۱)

مسئله : د لمانځه قضاء د لمانځه له اداء سره مشابهت لری ، یعنی څرنګه چې لمونځ واجب شوی وی ، له وخته وروسته به همغسی اداء کیږی ، په سفر کې هم په اقامت کې هم ، دا ځکه چې له قضاء وروسته هغه تغیر نه خوری ،یعنی که په سفر کې قضاء شوی وو ، دووه رکعته او د اقامت په حالت کې به همغه دوه رکعته راګرځوي ، او که د اقامت پرمهال قضاء او په سفرکې ئی راګرځوی نو همغه څلور رکعته به راګرځوی ، البته د نیت په بدلیدلو سره لمونځ بدلیږی ، مثلاً مسافروی ، او د ننه په وخت کې د اقامت نیت وکړی ، نو اوس به ټول لمونځ اداء کوی دا راز که مقیم وی او په وخت کې د ننه د سفر نیت وکړی او له خپلی سیمی څخه دباندی ووزی نو قصربه کوی. او یا مسافروی ، په کوم مقیم امام پسی لمونځ کوی نو پوره لمونځ به کوی. (درمختار ص۷۴۸ ج۱)

مسئله : که چیری یو سړی پخپل ګمان قصر کوی ، چې وایی مسافر دی ، او وروسته معلومه شی چې مسافر نه دی ، نو د دی لمونځونو راګرځول ضروری دی مثلا څومره ورځي چې ئي لمونځونه په همدی شکل اداء کړی ؛ هغومره لمونځونه به په شمیر سره دوهم ځل راګرځوی ، سره له وترو ، خو د سنتو قضاء نشته وربانـدی. (فتاوی دارالعلوم ص۳۲۳ج۴) د تفصیل لپاره دمؤلف بله رساله «مسائل سفر» وګورئ۔ محمد رفعت قاسمی غفرله )

## د سنتو او نوافلو بیان .

په شپه او ورځ کې خو پنځه لمونځونه فرض کړل شوي دي او هغه ګویا د اسلام رکن او اهم رکن. او د ایمان له لوازمو څخه دی پردې برسیره له هغوی وړاندی او وروسته په نورو وختونو کې د څه رکعتونو د اداینې لاربنودنه آنحضرت ﷺ فرمایلی ده ، بیا په هغوی کې چې رسول کریم ﷺ پرکومو باندی تاکید کړی دی او پخپله ئي عملا اهتمام کړی ، هغوی ته په عرف عام کې «سنت» ویل کیږی ، له هغه نه پرته نورو ته نوافل ویل کیږ ي. نوا فل اصلا زائد ته ویل کیږی او په احادیثو کې له فرض لمونځونو نه پرته نورو ټولو ته نوافل ویل شوي دی.

نو داچې د څینو سنتو یا نوافلو هدایت داسی شوی چې ترفرائضو وړاندی باید وشی ، په هغوی کښې کیدای شی حکمت دا وی چې فرض لمونځ چونکه یو عظیم عبادت دی او د عظیم الشان خدای په دربار کې د دریدلو موقع ده ، نو په دې خاطر چې د دې عظیم مقام سره د مانوس کیدلو پخاطر د مقدمې په شکل مخکې یو څو رکعته عبادة وشی او بیا وروسته د فرض عظیم مقام ته انسان داخل شی ،



او له ملاء اعلی سره یو قرب او مناسبت پیدا کړی. همدارنګه د هغه سنتونو او نوافلو په باره کې باید وویل شی ، چې له فرائضو څخه وروسته ئي د آداینې تعلیم د شارع علیه السلام له لوری ورکول شوی دی. چې فرض لمونځ اداء کول چونکه یو ستر عبادة دی ،نو په دې کښې که څه ناڅه قصور او نقصان رامنځ ته شوی وی ، نو د هغه تدارک به په دی وروستیو نوافلو او سنتو سره وشی. د فرضو څخه د وړاندی او وروسته زوائدو څخه علاوه چې کوم نوافل دی په نورو وختونو کې مثلا د ځاښت او د شپې د تهجد لمونځ ، دا په اصل کې د تقرب الی الله په منظور د طالبینو لپاره د ترقی یو ځانګړی نصاب دی. (معارف الحدیث ص۳۲۰ج۳، مظاهر حق ۱۱۲ج۲، علم الفقه ص: ۲ج۲)

## د نوافلو یوه خاصه ګټه

آنحضرت ﷺ فرمایی: د قیامت په ورځ به د بنده په ټولو اعمالو کې لمړی حساب د لمانځه وی او همغه به کتل کیږی، که درست و ، نو هغه بنده د ده په وجه فلاح او کامیابي مومی ، او که خراب ناسم وی ، نو هغه بنده به نامراد او ناکام وی ، بیاکه د هغه په فرائضو کې کمی او نقص وی نو الله پاک به وفرمایی: چې وګورئ د دغه بنده د اعمالو په ذخیره کې له فرض نه پرته بل څه نیکي شته (سنت یا نوافل ؟) ترڅو د هغه د فرائضو کمی وربانـدی پوره شی ، بیا به نو د لمانځه په څیر د نورو اعمالو حساب کتاب هم همداسی کیږی. (معارف الحدیث ص۳۷۴ج۲)

## د سنتو شمیر او د آداء کولو طریقه ئي .

د نفلی لمونځونو هم همغه طریقه ده لکه د فرضو ، خو فرق ئي یوازی دومره ده چې د فرائضو په لمړیو دوو رکعتونو کې د فاتحې

وروسته د دوېم سورة د لوستلو حکم دی، ولې د سنت او نوافلو په ټولو رکعتونو کې د بل سورة لوستلو حکم شته، حتی چې که سره برابرهم نه وي نو د اخلاف سنت دی، نوافل په ورځ کې ۲دوه ۲ دوه رکعته او په شپه کې څلور څلور رکعته په یوه سلام آداء کېدلای شي مګر له هرو دوو رکعتونو وروسته التحيات ويل پکار دي.

د سهار په وخت کې له فرضونه وړاندې دوه رکعته مؤکد سنت دي، د هغوی تاکید تر نورو ټولو سنتو زيات دی، تردې چې په بعضې روايتونو کې له امام صاحب څخه ئي وجوب رامنقول شوی،

نبي کريم ﷺ فرمايي: د سهار سنتونه هيڅکله مه پرېږدئ، که څه هم آسانونو تر پښو لاندې کوی (يعنی که څه هم د مرګ له خطری سره مخ ياست)

نو په دې کې خبره د ترغيب او تشويق ده، کنه نو د ځان د هلاکت د وېرې له امله خو فرائض پرېښودل هم جواز لري، په يو حديث شريف کې راغلي چې: د سهار سنت زما په نزد تر ټولې دنيا او مافيها بهتر دی

(علم الفقه ص۲۲ ج۲، مسلم شريف ص۲۵۱ ج۱، درمختار ص۹۷ ج۱)

د ماپښين د فرضو نه وړاندې څلور رکعته په يوه سلام او له فرضو وروسته ۲ رکعته سنت مؤکد دي.

(مراقي الفلاح، درمختار، علم الفقه ص۴۲ ج۲، هدايه ص۹۵ ج۱، شرح نقايه ص۱۰۰ ج۱، کبيری ص۳۸۳)

د جمعې د ۲ رکعته فرضو څخه وړاندې څلور سنت په يوه سلام سنت مؤکد دي او تر فرضو وروسته هم څلور رکعته په يوه سلام.

(مراقي الفلاح)



د ماز يګر مهال هيڅ مؤکد سنت نشته، مګر تر فرضو وړاندې څلور رکعته په يوه سلام سره مستحب دي. (علم الفقه ص۴۲ ج۲، هدايه ص۹۵ ج۱، شرح نقايه ص۱۰ ج۱، کبيری ص۳۸۴، ابوداؤد ص۱۸۵ فتاوی رحيميه ص۴۸ ج۳، محموديه ۲۰۳ ج۲)

د ماښام د فرضو وروسته ۲ رکعته مؤکد سنت دي. (علم الفقه ۴۲ مسلم ص۲۵۲ ج۱)

د ماخستن وخت له فرض لمانځه وروسته دوه رکعته مؤکد سنت دي، او له فرضو مخکې ۴ رکعته په يوه سلام سره مستحب دي.

(علم الفقه ۴۲ ج۲، بخاری ص۱۵۵ ج۱، ابن ماجة ص۸۳)

نبي کريم ﷺ فرمايي: کوم مسلمان چې په فرائضو بر سيره ۱۲ رکعته لمونځ کوی الله تعالی د هغه لپاره په جنت کې کور جوړوی. (صحيح مسلم شريف)

په احاديثو کې د دغو ۱۲ رکعتونو تفصيل داسې راغلی دی: ۴ رکعته د ماپښين څخه مخکې او ۲ وروسته، ۲ رکعته له ماښام څخه وروسته. ۲ رکعته له ماخستن څخه وروسته او ۲ رکعته د سهار له فرضو څخه وړاندې. (علم الفقه ص۴۲ ج۲، کتاب الفقه ص۵۱۹ تر ۵۲۱ ج۱، فتاوی دار العلوم ص۲۳۵ ج۴)

په احاديثو کې چې د دې پنځه وخته لمونځونو څخه وړاندې يا وروسته د سنتو او يا نوافلو ذکر راغلی دا ډېر اهميت لري او ددې اهميت اندازه ئي په قيامت کې څرګندېږي چې الله تعالی د فرائضو کمی په همدی زوائدو باندې پوره کوی بنده ته، نو ځکه ئي اهتمام ډېر ضروری دی ـ محمد رفعت قاسمی غفرله)

مسئله: که چيرې د سهار جماعة شروع وی يعنی جمع ولاړه وی او يو سړی راشي مسجد ته، سنت ئي نه وی کړی، نو اوس که دی پوهېږي چې په يو رکعت، کې شرکت کولاي شم نو دی لږ په جداء ځای کې ۲ رکعته سنت اداء کړی او بيا دی په جماعة کې شرکت وکړي.

(هدايه ص۱۰۱ ج۱، شرح نقايه ص۱۰۸ ج۱، فتاوی رحيميه ص۴۲ ج۲، کتاب الفقه ص۲۰ ج۱، علم الفقه ص۹۹ ج۲)

**مسئله** : د سهار سنت سیده په امام پسې له شاکول مکروه دی.
(نماز مسنون ص۳۵۲جامع ۱۲، هدایه ص۱۰۱ج۱، شرح نقایه ص۱۰۸ج۱)

**مسئله** : د سهار له فرضو مخکې ۲ رکعته دی، دا تر ټولو ضروري سنت دی، دا بې له عذره په ناسته کول او یا بې له عذره پر سورلۍ باندې پر سیره آداء کول جائز نه دی. وخت ئې همغه د سهار د فرضو وخت دی، بیا که د دواړو وخت تیرشي نو د فرضو ترڅنګ به د سنتو قضاء هم راوړي، او د قضاء وخت تر زوال وړاندې مهال دی، او که چیرې یوازې فرض اداء شي او سنت قضاء شي نو بیا د سنتو قضاء نشته.
(کتاب الفقه ص۵۲۰ج۱، فتاوی محمودیه ص۵۴ج۱۳، فتاوی محمودیه ص۱۹۰ج۲)

**مسئله** : د سهار د سنتو مستقله قضاء نشته، البته که فرض او سنت دواړه سره قضاء شي نو بیا ئې تر زوال مخکې راګرځوی، دلته به دواړه یعنې سنت او فرض راګرځوي، او که تر زوال ځیني وځنډیږي، بیا د سنتو راګرځول نشته، یوازې فرض به راګرځوي. (فتاوی دارالعلوم ص۲۱۵ج۴)

**مسئله** : له صبح صادق نه وروسته تر فرضو وړاندې پرته له دوو سنتو یا کوم قضائي لمانځه، نور نوافل کول درست نه دي، او له فرضو وروسته هم د سهار سنت اداء کول، صحت نلري، او نه کوم نوافل صحت لري. او د مازیګر له فرضو وروسته هم کوم لمونځ جواز نلري.
(فتاوی دارالعلوم ص۷۱ج۲ بحواله ردالمحتار ص۳۴۷ج۱، غنیة المستملی ص۲۳۷)

**مسئله** : که چیرې دا ویره وه چې د سهار په سنتو کې ټول سنن او مستحبات په پوره توګه اداء کول سره جمع تیریږي، نو دې په دغه صورت کې یوازې پر فرائضو او واجباتو اختصار وکړي، مستحبات او سنن دې پریږدي. (علم الفقه ص۹۹ج۲)



## د سهار او ماپښین د سنتو په قضاء کې تو پیر ولې شته ؟

پوښتنه : د سهار دوه رکعته سنت او د ماپښین تر فرضو وړاندې څلور رکعته سنت ټول مؤکد سنت دي، نو بیا څه وجه ده چې د سهار سنت که قضاء شي، له لمر راختلو وروسته که ئې اداء کړي ښه ده، کنه نو څه خبره نه ده، او د ماپښین سنت که قضاء شي نو له فرضو وروسته به ئې هرومرو راګرځوي، د دې وجه څه ده ؟

جواب: د دې وجه داده چې د ماپښین وخت خو بیا هم پاتې ده، اما د سهار وخت خو له لمر راختلو څخه وروسته ختمیږي.
(فتاوی دارالعلوم ص۷۲ج۲، بحواله ردالمحتار ص۳۳۱ج۱)

## په جماعة کې د ګډون لپاره سنت کوونکي ته انتظار

پوښتنه : مثلاً د ماپښین لمونځ ۲بجې ده، خو دغه وخت ته ۳ دقیقې پاتې دي، چې یو سړی راشي ځ ماپښین د سنت نیت وکړي پر دریم رکعت وخت پوره شي یعنې ۲بجې شوي، اوس به جماعة دریږي، نو آیا امام ته دومره اجازه شته چې دغه سړي ته انتظار وکړي ؟

جواب: بلې ! دومره اجازه سته. (فتاوی دارالعلوم ص۴۷ج۳ بحواله عالمګیری ص۵۳ج۱)

## د سهار سنت د جمع په وخت کې ولې نه پرېښودل کیږي ؟

سوال: ځیني خلک داسې اتهام او طعن کوي چې أحناف خلک له دې سره سره چې جمع ولاړه وي، سنت کوي، په داسې حال کې چې جماعة ته سنت پرېښودل بهتر دي ؟

جواب : دا خبره ناسمه ده، یوازې د امام صاحب مذهب دی چې دلته په قرآن او حدیث دواړو عمل شوی دی، داچې په ځینو احادیثو کې د سهار د سنتو زیات تاکید راغلی دی، او صحابه کرامو هم !

همدا عمل جاري ساتلی چې سنت به ئې اداء کړل بیا به ئې په جماعة کې ګډون وکړ، سره له دې چې جماعة به شروع وو، چې همدا آثار په کتابو کې منقول دي، نو امام صاحب پردې باندې د عمل پخاطر دا حکم کړی دی، نو دا اعتراض او طعن بې ځایه ده. (فتاوی دارالعلوم ص۳۲۲ج۴)

مسئله: د صحابه کرامو رضی الله تعالی عنهم څخه آثار داسې ثابت دي چې د سهار د فرضو قرائت به ئې اوریده او دوی به یوه طرف ته شول سنت به ئې کول، نو له همدا امله امام صاحب رحمه الله داسې حکم فرمایلی چې یوه اړخ ته جدا سنت وکړي او بیا په جماعة کې اشتراک وکړي تر څو دواړه فضیلتونه حاصل کړي.

(فتاوی دارالعلوم ص۲۰۱ج۴، بحواله ردالمحتار ص۳۷۹ج۱)

## د ګومې قاعدې له مخې سنت دومره فضیلت لري؟

پوښتنه: که څوک د ماښام یا د سهار فرض جدا کوي، نو د دویم رکعت له سجدې نه وړاندې د ده بل طرف ته جماعة ودریږي، نو دی به خپل فرض پریږدي او په جماعة کې به ګډون کوي، نو اوس پوښتنه دا ده چې جماعة خو سنت دی او د اعمالو باطلول خو په قرآن کې منع دی. او د سهار د سنتو په اړه داسې دي چې که چیرې ئې د اخیرې ناستې د نیولو امید وي، نو خپل سنت به نه ورته پریږدي، همدارنګه د څلور رکعته سنتو په باره کې دي چې که پردریم رکعت جماعة ودریږي نو څلور رکعته دې پوره کړي، بیا دې په جماعة کې شرکت وکړي، نو دلته بیا پوښتنه دا شوه، چې پر فرضو باندې سنتو



ته دومره فضیلت د ګومې قاعدې پر بناء دی چې فرض لمونځ سنت ته باطلیږي او سنت نه ورته باطلیږي؟

جواب: دا ابطال عمل چونکه د اکمال په خاطر دي، نو ځکه جائز بلکه بهتر دي او د سنت په پریښودلو کې خو داسې نه ده چې اکمال کې راشي، نو ځکه ئې پریښودل پکار نه دي مطلب دا چې پورتني مسائل پوره صحت لري (فتاوی دارالعلوم ص۳۱۶ج۴، شرح وقایه ص۲۰۹ج۱)

مسئله: که چا د ماپښین سنت پیل کړي او یو رکعت یې کړی وي، په دغه حالت کې جمع ودریږي، نو دی به دوهم رکعت هم پوره کړي، سلام به وګرځوي او په جماعة کې به شرکت وکړي.

(فتاوی دارالعلوم ص۳۱۹ج۴، ردالمحتار ص۶۶۸ج۱)

مسئله: او چا چې دغه پورتني عمل وکړ، یعنی پردوه رکعته ئې سلام وګرځاوه، په جماعة کې شریک شو نو له فرضو وروسته به پوره څلور رکعته راګرځوي، هغه مخکنی دوه ئې نفل شو.

(مسائل سجده سهو ص۵۹ بحواله شامی ص۶۴۰ج۱، فتاوی رحیمیه ص۳۱۴ج۳)

مسئله: که چا د ماپښین څلورو سنتو له کولو پرته په جماعة کې ګډون وکړ، نو وروسته به تردوو وروستیو سنتو له مخه څلور سنت راګرځوي، مګر فتح القدیر بیا دوه مخته وایي او ورسته څلور، لهذا لمونځ کوونکي ته اختیار ده چې کوم یو مخکې راګرځوي درست ده. (فتاوی دارالعلوم ص۳۲۲ج۴ ردالمحتار ص۶۷۳ج۱، غنیة ص۳۷۹ج۱)

ښه داده چې لمړی دوه سنت اداء کړي او بیا وروسته مخکني پاتې څلور راوګرځوي، تر څو بل شوک په دې خطا نشي چې دی له فرضو

وروسته بیا فرض راګرځوي ، په هغوی کې لکه چې کراهت یا فساد واقع شوی دی ، (محمد رفعت قاسمی غفرله)

مسئله : کله چې جماعة ولاړ وي نو سنت دې سړی په داسې ځای کې کوي چې له صف سره بلکل سیده نه وي ، کوښش دې وکړي څومره چې کوښه ځای وي هلته دې سنت وکړي ، ځکه چې په حدیث کې د دې ممانعت راغلی او حنفي فقهاء هم دا په صراحت سره وایلي چې سنت به له دروازې سره ، یا یوې ستنې اویا یوه کونج ته اویا که حجره وي په هغه کې دې سنت کوي ، له جماعة نه دې لیرې دریږي ، که څه هم قرائت ئي اوریدل کیږي ، قرائت مانع نه دی. د سهار د سنتو لپاره که داسې غلې او جدا ځای نه وي هم پرېښودل ئي منع دي ، پکار ده چې آداء ئي کړي ، او په جماعة کې شریک شي. (فتاوی دارالعلوم ص٣٢٥ ج٢، درمختار ص٦١٧ ج١)

مسئله : که چیرې څوک د سهار سنت کولو نه پرته جماعة وکړي نو له فرضو وروسته ئي راګرځول نشته ، بلکې مکروه دي ؛ او له لمر راختلو او بیا نېـه راپورته کیدلو وروسته یې خوښه ده که ئي راګرځوي ، کنه ، خو راګرځول ئي وربانديٰ لازم نه دي.

(فتاوی دارالعلوم ص٣٢٣ ج٢ ، ردالمحتار ص٦٧٢ ج١)

مسئله : که چیرې چا د ماخستن تول کړی وي ، وروسته ئي ولیدل چې جمع کیږي ، بیا ورسره شامل شو نو وروسته دې وتر او سنت نه کوي. (که ئي مخ ته کړي وو) ځکه چې ده خو کړیدي او دا دویم ځل په جماعة سره لمونځ کول ئي نفل شول. (فتاوی دارالعلوم ص٣٢٠ ج٢)



مسئله : امام که سنت مؤکده کړی نه وي نو هم جماعة تور کولای شي ، امام صاحب ته پکار دي چې لومړی له سنتو نه ځان فارغ کاندي ، او که کله امام صاحب له سنتو نه ژر فارغ نشي او مقتدیان مخکې فارغ شي نو مقتدیان به تر هغو پورې انتظار کوي څو امام صاحب فارغ شي ، او که چیرې وخت لږ او تنګ وي نو پکار ده چې امام صاحب لمړی جماعة ورکړي او بیا وروسته خپل سنت وکړي.

(فتاوی رحیمیه ص١٧٠ ج١، ترمذی ص٥٧ ج١، آپ کی مسائل ص٢٢٨ ج٣، فتاوی محمودیه ص٢٠٢ ج٢)

مسئله : سنت دا ده چیرته چې فرض کیږي ، نفل یا مستحبات دې له هغه ځای څخه وروسته وړاندې یا یو او یا بل څنګ ته په بل ځای کې وکړي او تردې لا بهتره دا ده چې په کورکې ئي وکړي. (فتاوی دارالعلوم ص٢٢٠ ج٢)

مسئله : افضل دا دی چې سنن او نوافل په کورکې وشي . دا حکم د دواړو سننو لپاره ده که تر فرضو وړاندې وي ، که وروسته مګر د وروسته سننو لپاره کورته په تللو کې که دا احتمال وي چې په لاره کې له یو څنډ سره مخ کیږي او یا په کوم دنیوي کار اخته کیږي نو بیا دې په مسجد کې سنت وکړي ، ځکه چې دا هم ثابته ده چې تر څه وخته پورې د دغه لمانځه وخت وي ، د سنتو او نوافلو لپاره هم هغه وخت وي .

(مګر متصلا یعني سمد ستي ورسره کول اولی دي. محمد رفعت قاسمي غفرله) . فتاوی دارالعلوم ص٢٠٧ ج٢، فتاوی رحیمیه ج٣، ص٢٩ مشکوة ص٢٨٦ ج١

مسئله : که چیرې څوک د سهار فرض شروع کې او په منځ کې ورپه یادشي چې سنت ئي نه دي کړي ، نو دغه مهال به فرض ورته باطلوي نه ؛ بلکه پوره کوي به ئي (فتاوی رحیمیه ص٨١ ج٢، بحرالرائق ص٦٨ ج٢)

مسئله : د مؤکد سنتو تراداء کولو وروسته که جماعة ودریږي نو نور نوافل کیدلای شي، څه حرج نشته ، پرته د سهار له سنتو نه ځکه چې له صبح صادق نه وروسته ترلمر راختلو پوري له دوو سنتو څخه علاوه نور نوافل او سنت نشته. (فتاوی دارالعلوم ص۲۲۸ج۴، ردالمحتار ص۲۴۹ج۱)

مسئله : د ورځي په نوافلو او سنتو کې به قرائت ورو وايي ، ولی د شپي په نوافلو کې اختیار لري ، په جهر ئي وایی که خفیه.
(فتاوی دارالعلوم ص۲۳۰ج۴، ردالمحتار ص۴۹۸ج۱)

مسئله : نفل لمونځ په شروع سره واجب ګرځي ، پس که څوک نفل شروع کړي او بیا په څه وجه ورڅخه باطل شي ، نو راګرځول ئی وربانددي لازم دي. (فتاوی دارالعلوم ص۲۳۵ج۴)

مسئله : د سنتو او فرائضو ترمنځ دنیاوي خبری کول د ثواب او اجر د کمیدلو سبب کیږي ، مګر د سنتو راګرځول نه لازموي.

مسئله : د جمعې د سنتو حکم هم د ماپښین دمؤکده سنتو غوندي دی ، يعني که سنت شروع شي او هلته د فرض جماعة ودریږي ، نو پردوه رکعته به سلام ګرځوي ، فرض به په جماعة سره کوي او له هغه وروسته به خپل سنت راګرځوي. (علم الفقه ص۹۹ج۲)

مسئله : د سنتو لپاره د آذان انتظار کول ضروري نه دی ، د جمعې ، ماپښین ، ماخستن او سهار سنتو ته له آذان څخه مخکی هم کولای شي. (کفایت المفتی ص۲۶۷ج۳) په دی شرط د لمانځه وخت داخل وی... رفعت ـ غفرله)

مسئله : پر کوم ځای چې سنت ادا شي ، د فرضو لپاره له هغه ځایه لیری کیدل لازمی نه دی. (کفایت المفتی ص۲۷۴ج۳)



مسئله : تحية الوضوء او تحية المسجد ، له صبح صادق او غروب شمس ، (لمر لویدلو) وروسته تر فرضو وړاندی د احنافو په نزد مکروه دي. (کفایت المفتی ص۲۷۴ج۳)

مسئله : ځینی خلک داسی فکر کوی چې پر مسافر باندی سنت نشته ، نو ځکه مسافر یوازی فرض لمونځ کوی ، او نور بې له کومه عذره او بې له مجبوري سنت پریږدي ، دا خبره ناسمه او غلطه ده ، صحي دا ده چې په شرعي سفر کې که چیري مشغولتیا زیاته وي ، يعنی په موټر یا د شپي تیرولو او یا بل حالت کې د خلکو ګڼه ګوڼه ډیره زیاته وي. نو د سهار له سنتو پرته د نورو سنتو د پریښودلو ګنجائش شته. ولی د اطمنان او وداړ په حالت کې ئي هیڅکله پریښودل پکار نه دي. (اغلاط العوام ص۴۶ د تفصیل لپاره : مسائل سفر ، مکمل و مدلل)

## آیا له سنتو وروسته نوري دعاګانی کیدلای شي؟

پوښتنه : د دعاء غوښتلو دوې طریقې وګورئ یوه طریقه دا چې امام او مقتدیان په شریکه دعاء غواړي (ډیره ئي اوږدوی نه) او بیا وروسته په نوافلو مشغول کیږي.

دویمه طریقه دا ده : چې له فرائضو وروسته فقط «اللهم انت السلام ...» تر پایه ، دا دعاء ولولی ، بیا چې سنن او نوافل اداء کړی نو امام او مقتدي الفاتحه وایی په شریکه دعاء وکړی ، معنی تر سنتو وروسته دعاء ضروری ګڼی او د هر زیات اهتمام وربانددی کوی. بر امام باندی دا لکه یو فرض شرط داسی ګڼی نو مسنونه طریقه دلته څه ده؟

جواب : سنت دا ده چې څرنګه ئي فرض لمونځ په جماعة سره اداء کړ ، همداسی به دعاء هم پر یوه ځای په جماعة یعنی ټول امام او مقتدي

په ګډه دعاء وکړي ، او سنت او نوافل چونکه هر یو ئي جدا جدا کوي. نو دعاء ده ، اما دو همه طریقه خلاف سنت ، بی اصل او بلا دلیله خبره ده. دا جدا جدا سنت کولو څخه سره را یو ځای کیدل او بیا په ګډه دعاء کول ، نه له آنحضرت ﷺ څخه ثابته ده ، نه له صحابه کرامو ، نه له تابعینو او نه له تبع تابعینو څخه ، د آنحضرت ﷺ ، صحابه کرامو رضی الله تعالی عنهم او سلف صالحینو طریقه همدا وه چې کله به ئې د جماعة لمونځ وکړ نو چونکه ټول سره یو ځای وو ، په اجتماعي توګه به ئې دعاء کوله ، او کله چې به ئي سنت او یا نوافل کول ، نو طبعا جلا جلا به ئي اداء کول ، بیا به ئې دعاګانې هم جدا جدا کول. بهر حال دا خبره ثابته ده چې آنحضرت ﷺ او صحابه کرامو رضی الله عنهم به اکثرا سنت په کورکې کول بیا به جماعة ته راتلل او چې جماعة به ئي اداء کړ ، د پاتې سنتو لپاره به بیا کورته تلل ، نو دا هم ثابته شوه چې له فرضو وروسته به ئي اجتماعي دوعاء کوله خو له سنتو وروسته سنت و کړل ؛ نو هغه مهال هم له صحابه کرامو سره ئي په ګډه دعاء نه ده کړی ، آنحضرت ﷺ پخپلو سنتو مشغول وو چې خلک له لمانځه څخه فارغیدل او یو یو وتل ، بې له دې چې انتظار ورتــــه وکـــــړي. (فتاوی رحیمیه ص۲۱۶ ج۱ بحواله ابوداؤد ص۱۹۱ فتاوی دار العلوم ص۲۱۲ ج۴، تسیر کبیر ص۲۴۳ ج۱ بحر الرائق ص۱۵۱ ج۲)

مسئله : له امام سره د یو ځایی دعاء په انتظار کښیناستل او په ګډه دعاء کول ته هیڅ ضرورت نشته چې کله له خپله لمانځه فارغ شوی که بیړه یا تلوار دی وی نو خپله دعاء وکړه او ولاړ شه. (آپ کی مسائل ص۲۷۳ ج۳)



مسئله : د دعاء په وخت کې د استسقاء له لمانځه پرته لاسونه تر اوږو پورته کول ښه نه دی ، او په دعاء کې د عاجزۍ او مسکنت کیفیت څرګندول مناسب دی. (آپ کی مسائل ص۲۷۵ ج۳)

مسئله : ځینی خلک له لمانځه وروسته سمدستی یو له بل سره معانقه او مصافحه کوی یو له بل سره روغبړ (پوښتنه ، ستړی مشی) کوی ، چې دا هیڅ اصل نلری ، نه سنت ده نه واجب ، بلکې بدعت دی ، مګر که چیری یو سړی میلمه له ډیره لیری راغلی وی ، ستړی مشی ئی ضروري وی ، د هغه لا اجازه شته. (آپ کی مسائل ص۲۸۷ ج۳)

مسئله : کله چې د دعاء په وخت کې لاسونه پورته کړی ، نو داسی به ئي نیسی چې د لاسونو دننه خوا به ئي مخ ته سیده وی ، لکه چې د دعاء په وخت کې عام معمول دی. (مظاهر حق ص۹۱ ج۳)

مسئله : له احادیثو نه دا څرګنده شوه چې د دعاء په وخت کې دواړه لاسونه پورته کول او بیا له دعاء وروسته پر مخ راتیرول سنت دی. (مظاهر حق ص۹۱ ج۳)

مسئله : کله چې لمونځ پای ته ورسید ، نو دواړه لاسونه دې غوړیدلي ترسینې پوری را پورته کړی او له الله تعالی څخه دې د ځان او نورو لپاره دعاء وغواړی ، که چیری امام وی نو د ټولو مقتدیانو لپاره هم همدغه عمل دی ، او له دعاء وروسته دی دواړه لاسونه پر مخ راتیر کړی ، مقتدی که خپله له ځان سره دوعاء کوی او که د امام د دعاء په اوریدلو سره ټول آمین آمین وایی. (بهشتی زیور ص۳۲ ج۱۱ بحواله طحطاوی ص۱۸۴ ج۱، کفایت المفتی ص۳۰۷ ج۳)

## که فرض څو هم ځل اداء کیږي نو د وروستیو سنتو حکم ؟

سوال : که چیری له امام څخه د جماعة په جریان کې غلطي وشی او بیا د اغلطي هغه وخت محسوسه کړي چې له فرضو وروسته ئي سنت او نفل هم کړي وی ؛ نو د فرضوله دوهم ځل له اداء کیدلو وروسته به هغه وروستي سنت او نوافل بیاکوی که څنګه ؟

جواب : دغه وروستي سنت د فرضو تابع وی ، نو که د سنت له کولو وروسته د فرضو غلطي معلومه شی او دوهم ځل اداء شی ، نو سنت به هم ورسره دوهم ځل راګرځوی. البته د وتر د بیلواګرځولو ضرورت نشته. (آپ کی مسائل ص۳۵۲ج۳)

څکه چې وتر یو مستقل واجب دی ، د فرضو تابع نه دی. دا د احنافو په نزد. ولی صاحبین بیا وتر هم سنت ګنی نو څکه ئي راګرځول ضروري بولی ، څکه که سنت شی نو-بیا د فرض تابع ګرځی د نورو عامو سنتو په څیر. (ژباړن)

د وترلمانځه طریقه: وترلمونځ واجب دی ، نبی کریم ﷺ فرمایی څوک چې وتر نه کوی هغه زماله ډلې (اُمت) څخه نه دی.(ابوداؤد ، مستدرک)

د وترلمونځ هم دماښام غوندی دري رکعته دی . د آداء کولو طریقه ئې هم هغه د فرضو طریقه ده ، خو فرق ئي صرف دومره دی چې د فرضو یوازی په دوو لمړیو رکعتوکې ترفاتحې وروسته دویم سورة ورسره ضم کیږی. ولی د وترو په دریو وارو رکعتونو کې له الحمد لله سره بل سورة ضم کیږی . اوبل داچې د وترو په دریم رکعت کې به سړی غوږونو ته د لاسوپه پورته کولو سره تکبیر وایی او د تکبیر تحریمه غوندی به بیرته لاسونه راکښته کړی ، دغه دعاء به ورو ورو



وایی: «اللهم انانستعینک و نستغفرک و نؤمن بک ...» - ترپایه پوری - . (علم الفقه ص۳۸ج۲)

**مسئله** : که چاته دعاء قنوت یاد نه وی نو د هغه پرځای دی دغه دعاء وایی: «ربنا آتنا فی الدنیا حسنة و فی الآخرة حسنة وقنا عذاب النار» او که دا هم ورته یاد نه وی (نو یا دول ئې ضروري دی ) ترهغو پوری به دغه دعاء وایی: (اللهم اغفرلی) درې ځله ، او یا دې دا وایی: (یارب) درې ځله.

(علم الفقه ص۴۰ج۳، کتاب الفقه ص۵۳۴ج۱ فتاوی دارالعلوم ص۱۶۲ج۴، ردالمحتار ص۶۲۲ج۱)

**مسئله** : د وترلمانځه ، سنتو ، او نوافلو په ټولو رکعتونو کې د سورة فاتحې تر څنګ بل سورة ورسره ضم کول ضروری دی. (نماز مسنون ص۲۹۲ کبیری ۳۳۲)

**مسئله** : په هر رکعت کې ترفاتحې او سورة مخکې بسم الله الرحمن الرحیم ویل جائز دی ، مګر په ټیټ آواز سره ، په لوړ آواز به ئې نه وایی . (کفایت المفتی ص۲۱۱ج۳)

## د وترو مسائل

**مسئله** : د وترو وخت د شفق له غائب کیدلو (پټیدلو ) څخه بیاتر سپیدو پوری دی ، که چیری په هیره او یا په قصدي توګه پریښو ول شی نو قضاء راوړل ئي واجب دی. که څه هم وخت تیر وي.

**مسئله** : وتر د ماخستن ترلمانځه وروسته کول واجب دی ، څکه چې په دې کې ترتیب لازم دی. خو که په هیره د ماخستن ترفرضو وړاندی آداء شی ، صحت لری. دا راز که دواړه علی الترتیب فرض او وترلمونځ اداء شی ؛ خو وروسته معلومه شی چې د ماخستن لمونځ د

څه وجې څخه فاسد شوی ، وتر صحیح اداء شویدی. نو دلته وتر صحي ګڼل کیږی. راګرځول ئي نشته. صرف فرض به راګرځوی ، ځکه چي په داسی معاذیروکې ترتیب ساقطیږی

**مسئله** : په وتروکې دعاء قنوت ویل واجب دی. او سنت دا ده چې آهسته به ئی وایی که امام وی، که مقتدی ، او که منفرد وی. (په روژه کې به د وترو په جماعة کې امام او مقتدی دواړه قنوت په ټیټ آواز سره وایی.(محمد رفعت قاسمی غفرله)

**مسئله** : که چیری له چا څخه دعاء قنوت هیرشو، رکوع ته ولاړی، وریه یادشوه نو د رکوع په حالت کې به ئي نه وایی او نه به دوهم ځل د قنوت لپاره راپورته کیږی ، بلکه له سلام ګرځولو وروسته به سجده سهو وکړی ، او که چیری له رکوع څخه بیرته راپورته شو دعاء قنوت ئي ووایه او رکوع ئي بیا ونکړه نو لمونځ ئي نه فاسدیږی.

**مسئله** : که له چا څخه سورة او قنوت هیرشی او په غلطی سره ترد مخکې رکوع ته ولاړشی و نو ده ته ضروری ده چې بیرته له رکوع څخه راپورته شی ، سورة او قنوت دواړه ووایی او بیا رکوع وکړی په اخیرکې سجده سهو وکړی ، ګاراز که دري واړه (فاتحه ، سورة اودعاء قنوت ) ورځنی پاتی شی ،هم همداسی به وکړی راپورته به شی ،دوی به دري واړه ووایی ، بیا به رکوع وکړی او په اخیره کې به سجده سهو وکړی. او که رکوع دوباره ونکړی څه باک نلری ، لمونځ صحیح دی ، لیکن سجده په هرصورت لازمه ده.

**مسئله** : وتر په جماعة سره کول له روژې پرته نامشروع او مکروه دی.

(کتاب الفقه ص۵۳۴ج۱)



**مسئله** : هغه څوک چې د تهجد لمونځ کوی ، د هغه لپاره هم افضل او بهتره داده چې په روژه کې وتر په جماعة سره وکړی.

(فتاوی رحیمیه ص۲۹ج۳، مراقی الفلاح ص۲۳،نور الایضاح ص۱۰۰)

**مسئله** : د وترو په نیت کې دی صرف دومره وایی چې زه د وترلمانځه نیت ترم او که واجب اللیل ورسره زیات کړی هم څه حرج نشته.

(فتاوی دارالعلوم ص۱۶۰ج۴، ردالمحتار ص۳۸۹ج۱)

**مسئله** : په نیت کې ئی واجب ورسره ویل ښه دی ، ځکه چې د امام اعظم رحمه الله په نزد. وتر واجب دي ، او که چیری ورسره ونه ویل شی هم څه حرج نشته. (فتاوی دارالعلوم ص۱۶۳ج۴، ردالمحتار ص۳۸۸ج۱ بحث نیت)

**مسئله** : که څوک په روژه کې د ماخستن فرض لمونځ په جماعة سره ونکړی ، هغه د وترو په جماعة کې شرکت کولای شی. (فتاوی دارالعلوم ص۱۵۲ج۲)

**مسئله** : که چیری امام قنوت پوره کړ او رکوع ته ولاړی ، ولی مقتدی لا نه وی پوره کړی ، نو که د داپاتی قنوت په پوره کیدلو سره رکوع نه ځنی تیریږی ؛ نو پوره دی کړی ، کنه بیادی پریږدی او رکوع کې دی له امام سره شریک شی. (فتاوی دارالعلوم ص۱۵۴ج۴، عالمګیری ص۱۰۲ج۱)

**مسئله** : که چا د وترو په دریم رکعت کې له امام سره پوره شرکت وکړ ، یائی له امام سره قنوت او رکوع دواړه وکړل او یا یی صرف رکوع ورسره ونیوله ، نو په دې صورت کې بیاد دوهم ځل قنوت ویلو اړتیا نشته ، هغه صحت لری چې له امام سره ئي د اشتراک په وجه پیدا کړه ، پښپله کی ویا ی وی ، که نه وی. (مسائل سجده سهو ص۹۶ بحواله مراقی الفلاح ص۲۲۵ج۱، فتاوی رحیمیه ص۱۵۷ج۱ عالمګیری ص۱۷۸ج۱)

**مسئله :** له وترو وروسته څخه دوه رکعته نفل کول ، که په ناسته وی ، که په ولاړه صحت لری ، مگر په ولاړه ئي ثواب تر ناسته دوه چنده زیات وی ، او آنحضرت ﷺ هغه په ناسته اداء کړیدی. او دا یوازی د هغه ﷺ خصوصیت دی چې په ناسته هم پوره ثواب ورته رسیده ، ولی نورو خلکو ته نیم اجر رسیږی ، دا له نورو احادیثو څخه هم ثابته ده. (فتاوی دارالعلوم ص۲۳۱ج۴، درمختار ص۶۵۳ج۱).

**مسئله :** دا څکه چې په هغه کې هم امت ته دا تعلیم وو چې گویا نفل په ولاړه کول فرض نه دی ، او امت ته تعلیم ورکول د نبوت له واجباتو څخه دی . نو په دی توگه هغه ﷺ د یو واجب ادا ینه ترسره کړه ، چې په ناستو ئی نفل وکړل او امت ته ئي د تعلیم وجیبه له غاړې واړوله ، چې ثواب ئی ترنفلو زیات شو. (فتاوی رحیمیه ص۲۴ج۳)

## د ناروغ د لمانځه احکام

ځینی ناروغان لمانځه پوره اهتمام نه کوی ، په داسی حال کې چې کیدای شی ، همدا مرض ئي د ژوند وروستی لحظې وی ، څکه چې هر ناروغي د مرگ یادونه سرې ته کوی ، نو چې څوک دا فکر له ځان سره نه کوی ؛ دا ډېره د افسوس او خطرې خبره ده.

**مسئله :** ځینی خلک بیا داسی وی چې د روغتیا په حالت کې د لمانځه ډېر اهتمام کوی ، ولی د ناروغتیا په وخت کې بیاد دې وسوسې له امله چې بدن یا جامې ئي خرابی نه وی ؛ لمونځ په اهتمام سره نه کوی ، حتی قضاء کول ئي هم ، له همدی وجی ، چې دا یوه ډېر ستر جهالت دی. په داسی حالت کې پکار دا ده چې له عالم څخه



پوښتنې وکړی او له هغې سره سم عمل وکړی. او د شریعت له ورکړل شویو آسانتیاوو څخه برخمن و اوسی ، د داسی وجوهاتو په اساس لمونځ قضاء کول جواز نلری.

**مسئله :** ځینی مریضان د ډاکټر او حکیم په حکم لمونځ پریږدی ، په داسی حال کې چې شرعی مسئله داسی ده چې ترڅو پوری انسان په اشارې سره د لمانځه قدرت لری ، پر ده لازمه ده چې لمونځ پرینږدی ، مگر که ئي دا د اشارې توان هم له لاسه ورکړ نو بیا بیشکه لمونځ وروسته کول او په وروسته کې ئي قضاء راوړل درست دی. ناروغي د مرگ یو پیغام دی نو انسان ته پکار ده چې نور هم په داسی حالت کې د آخرت زیات فکر وکړی او عبادة ته نبه متوجه واوسی.

**مسئله :** ځینی خلک داسی فکر کوی چې پر مریض باندی کله مرض زیات شی ، او د بی هوښی حالت وربادی راشی ، نو دوی وایی لمونځ ورځنی معاف دی ، دا خبره ناسمه ده ، څکه چې په هر ډول بی هوښی سره لمونځ نه معافیږی ، بلکې په هغه بی هوښۍ کې لمونځ معاف دی چې یونا شپه بی هوښه سی ، او یا د مرض په وجه بی هوښه شی خو دا بی هوښی ئي تر شپږو لمونځونو زیاته شی ، نو په دغه صورت کې لمونځ معاف دی او قضائی واجب نه ده.

او که چیری د هغو قضائي په راګرځولو کې سستی او لاپروائي کوی ، نو تر مړینی له مخه د هغو لمونځونو د فدیې ورکولو وصیت کول ورباندی واجب دی.

**مسئله :** ځینی خلک د مرض په حالت کې په ولاړی د لمانځه قدرت لری ، خو د هغه باوجود لمونځ په ناسته کوی ؛ چې دا صحت نلری ،

مسئله داسی ده چې څوک په ولاړه لمونځ کولای شی په ناسته ورته جائز نه دی ، لهذا ډیر احتیاط پکار دی.

## د مریض لپاره د تیمم حکم

ځینی مریضان داسی وی چې که څه هم اودس کولای شی او هغه ورته مضر هم نه وی ، خو له دې سره سره تیمم وهی او لمونځ کوی ، او هغه خلک چې دده پالونکي او خواخوږي وي ، له او داسه څخه ئي منع کړی او تیمم ته ئي هڅوی ، چې دا ډیره کم عقلي او ناپوهي ده ، ترڅو چې اودس ورته د صحت له پلوه مضر نه وی ؛ تیمم وهل جواز نلری.

مسئله : ځینی ناروغان بیاد پورتنی خبری برعکس داسی بی احتیاطی کوی چې اودس که څه هم ورته ډیر زیات زیان رسوی ، دی بیا هم اودس نه پریږدی او تیمم ته قطعاً زړه نه ښه کوی چې دا هم یو قسم غلو ده او د حق تعالی شانه د لورول شویو آسانتیاوو او نعمتونو نه قبلول دی ، چې دا ډیره بی ادبی او لویه ګناه ده څرنګه چې اودس کول د الله تعالی حکم دی دارازتیمم هم د الله تعالی حکم دی ، د بنده وظیفه خو د الله ﷻ حکم منل دی ، نه دا چې د خپل زړه د خوښي مطابق کار کوی. څه چې د الله تعالی حکم وی هغه د زړه له کومی منل د بنده ربښتینولی ثابتوی. (اغلاط العوام ص۱۹۶)

مسئله : که چیری جنب سړی ته له غسل کولو څخه زیان رسیږی ، د هلاکت او د ناروغتیا سبب ئي ګرځي او ګرمې او به پیدا کول ګران وی ، نو په هغه صورت کې تیمم وهل جائز دی. (شامی ص۱۵۶ ج۱، هدایه ص۵۲ ج۱)



## د ناروغ او معذور لمونځ

مسئله : که چیری یو سړی داسی معذور یا مریض وی چې د لمانځه ارکان په پوره ډول اداء کولای نشي نو بیا دی د خپل وس سره سم ارکان اداء کړی ، کفایت کوی ، مثلاً یو سړی ده. قیام نشی کولای د مرض یا بل عذر په وجه پر څمکه راپریوځی او یا دې ته ورته په نورو ارکانو کې بل کوم مشکل لری نو هغه رکن بیا وربانذی فرض نه دی ، کولای شی په ناسته لمونځ وکړی ، که د سنت طریقې سره سم کښیناستلی شی ، مثلاً لکه التحیات باندی چې عام خلک کښینی ، خو لابښه ده ، کنه نو چې څنګه کښینستی شی هغسی صحیح ده ، که د لمونځ وخت لپاره دریدای شی د ډیر وخت لپاره نه ، نو بیادی لمونځ په ولاړه شروع کړی چې څومره دریدای شی ودی دریږی ، له هغه وروسته دی کښینی ، حتی که یوازی تکبیر تحریمه ویلای شی ، په ولاړه هم سمه ده ، په ولاړه دی ووایی ، که ئي دومره توان در لودی چې ونه دریدی ، نو لمونځ صحت نلری ، همدا راز که د څه شی په وسیله ولاړیدای شی ، لکه لکړه تکیه ، یو بل سړی او داسی نور بیا هم لمونځ په ولاړه اداء کول پکار دی.

(درمختار ، ردالمحتار وغیره ، صغیری ص۱۴۳ ، علم الفقه ص۱۲۷ ، هدایه ص۱۰۸ ج۱ ، شرح نقایه ص۱۱۲ ج۱ ، کبیری ص۲۱۴)

مسئله : که چیری یو سړی ډیر کمزوری وی په ولاړه لمونځ په داسی حال کې کولای شی چې د ولاړی په وجه تنفس نشی وهلای او آواز ئي بندیږی ، قرائت نشی لوستلای ، نو دې ته هم پکار ده چې لمونځ په ناسته وکړی ، او بل سړی بیا داسی ده چې دومره جامې ور سره وی چې که په ولاړه لمونځ کوی ، بدن ئي نه وربانډی پټیږی مګر په

ناسته پټیدلای شي په دې صورت کې هم دا سړی لمونځ په ناسته نشي کولای په ولاړې به ئې کوي. (درمختار، شامي وغیره)

**مسئله** : که چیرې یو څوک په ولاړه لمونځ کولای شي، خو رکوع او سجده یاصرف سجده نشي کولای نو بیا دې نورلمونځ پوره کوي، یوازې رکوع اوسجده دې په اشاره سره کوي، د رکوع په نیت دې سجدې ته سر زیات ټیټوي، دا مکروه تحریمي ده چې یوشی راپورته کړي له تندی سره ئې سم کړي اوبیا سجده وربانډې ولګوي، مګر که داسې یوشی وي چې خپله پرځمکه پروت وي خو له تندي سره برابر شي نو سجده پرې لګولای سي؛ څه حرج نشته.

**مسئله** : که چیرې یو سړی دومره مریض وي چې په ناسته هم لمونځ نشي کولای نوبیا دې په پروتې په اشارې سره آداء کړي، ترڅو ئې مخ قبلې ته سیده شي. خو که پراړخ پریوزي هم درسته ده په دې شرط چې مخ ئې قبلې ته وي، او په سرسره به د سجدې او رکوع اشاره کوي، په سترګو او یا مخ سره اشاره کافي نه دي. (درمختار وغیره)

که داهم شوني نه وي نوځنګه کیدای شي، او ممکنه آسانتیاوي، پرهغه طریقه دې لمونځ اداء کړي. (علم الفقه ص۱۳۶ ج۲، کتب الفقه ص۲۰۸ ج۱، درمختار ص۲۰۳ ج۱)

**مسئله** : که چیرې یوه ښځه د ولادت په وجه په درد اخته وي، مګرحواس ئې پرځای او بې هوښه نه وي، نو پکار ده چې د ډېر ژر لمونځ اداکړي، تاخیر ونکړي، داسې نه چې نفاس راپیداشي اولمونځ ورځني قضاء شي، که په ولاړه لمونځ کولو کې دا وېره وي چې ماشوم به پیداشي اوصدمه به ورته ورسیږي نو په ناسته دې لمونځ وکړي. همدارنګه که د ماشوم نیمه برخه پیداشوې وي او نیمه



لاپاتې وي مګرنفاس لانه وي پیل شوی نو په دې صورت کې به هم لمونځ کې تاخیرنه کوي، په ناسته ناسته دې لمونځ وکړي، په ځمکه کې دې وړوکې غارغونډې ځای جوړکړي و ترڅود ماشوم سرهلته کښیږدي، که دا هم نشي کیدلی نوپه اشاره دې لمونځ وکړي (خزانةالروایات وغیره) که چیرې ئې ونکړي نو د دې لمانځه قضاء وربانډې شته ــ رفعت قاسمي)

**مسئله** : که چیرې یو مریض داسې وي چې د سرپه اشارې سره لمونځ نشي کولای نوبیادې پریږدي ترڅوجوړشي اوقضاء دې راوړي، خو که داحالت ترپنځو لمونځونو ورزیات شي نود دې لمونځونو قضاء هم بیاوربانډې نشته، لکه چې د قضاء په بیان کې داخبره تیره شوه.

**مسئله** : که کوم ناروغ ته په لمانځه کې د رکعتونو شمیرنه معلومیږي نوپرده بانډې هم د صحت تر وخته لمونځ نشته بیادې قضاء راوړي، مګر که څوک بل سړی ئې ورته وایي او دې لمونځ کوي داهم جائزه ده. او دا د هغه چالپاره ده چې د سپین ږیرتوب په وجه ډېر زیات کمزوری شوې وي، تر دې چې مخبوط العقل ګرځیدلی وي، یعنې د دویم سړي په وینا سره د ده لمونځ صحت لري، خو که دویم سړی ورته پیدا نشي او پرخپل غالب ګمان عمل وکړي هم جواز لري ورته. (نفع المفتي)

**مسئله** : که چیرې یو سړی په لمانځه کې نا روغ شي، نوپاتې لمونځ چې په څه طریقه کیدای شي پوره دې کړي، مثلا ولاړ وي، دا توان ئې له لاسه ورکړ، نوپه ناسته دې لمونځ وکړي اوکه یې د رکوع اوسجدې توان ختم شو نو په اشارې سره دې پوره کړي او که په

ناستی لمونځ کوي او دا توان يې هم ختم شو په پروتی دې لمونځ پوره کړی.

(علم الفقه ص۱۲۸ ج۲، هدايه ص۱۰۹ ج۱، شرح نقايه ص۱۱۸ ج۱، کبيری ص۲۶۹ درمختار ص۲۰۶ ج۱)

**مسئله** : د پورتنۍ مسئلې بالعکس که يو مريض دلمانځه په حالت کې جوړشی ،يعنی پر قيام ، رکوع او سجده تولوباندې قادر شی نو پاتی لمونځ به په ولاړی پوره کوي ، که چيری ئې مخکی د نه قدرت په وجه په اشارې سره رکوع او سجده کړی وی ، بياجوړشی هغه لمونځ ئې فاسد دی له سره به په ولاړه لمونځ راګرځوی.

(علم الفقه ص۱۲۸ ج۲، هدايه ص۱۰۹ ج۱، شرح نقايه ص۱۰۸ ج۱، کبيری ص۲۶۹)

**مسئله** : که چيرې د قرائت د درازوالی په وجه ځينی کسانوته په ولاړه تکليف رسيږی دريدای نشی نو دغه څوک که پر ديوال ، درخته اويالکړه تکيه ولګوی ، څه کراهت نلری ، د تراويحو په لمانځه کې اکثرا دغه ضرورت رامنځ ته کيږی ، خوپه داسی حالت کې چې خوب ورنشی ، کنه نو اودس ئې ماتيږی . (شامی وغيره)

**مسئله** : په نفلی لمانځه کې لکه څنګه چې ئې په پيل کې دناستی او ولاړی اختيار لری، همداراز د لمانځه په نيمائي کې هم کولای شی کښينی او لمونځ پسی پوره کړی، په دې کې هيڅ کراهت نشته.

(درمختار وغيره ،علم الفقه ص۱۲۹ ج۲)

## انسان څه وخت معذور بلل کيږی ؟

**مسئله** : ځينی وخت د چاڅاڅکی څاڅکی ،پيشاب يابولی راځي ، مګر د لمانځه تول وخت نه کښيباسی ، دومره وخت پيدا کيږی چې د پاکی په حالت کې لمونځ اداکړای شی ، نودی معذورنه بلل



کيږی،ده ته پکار ده چې د څاڅکو د دريدلو انتظار وکړی ، بيادې اودس تازه کړی او لمونځ دې وکړی ، که د لمانځه پرمهال د قطرې راتللو شبه وی، نولمونځ دې په منځ کې پريږدی او هغه ځای دې وګوری چې لوندشوی وی ،نو دی هغه ځای اوشرمګاه پريمنځي اودس دې تازه کړی بيادی لمونځ له سره پيل کړی ، اوکه شبه دغسی وريپيداشوی وی يعنی له کتلو وروسته ورته معلومه شی چې پرجامه باندی لوندوالی اوڅاڅکی نشته. نوآينده دې د دغسی شبهې پروا نه کوی ، بلکه د اوداسه پرمهال دی پرپرتاګه باندی دلاسو په ګوتو سره اوبه وپاشی چې د اد شبهې دختمولو يوه طريقه او علاج دی.

او که چيری دا قطره ځي راځی دومره موقع نه پيدا کيږی چې د پاکی په حالت کې لمونځ اداکړی ،نودی معذور بلل کيږی. د داسی معذورلپاره پکار ده چې د هر لمانځه لپاره نوی اودس وکړی نوی جامی واغوندی ، فرض ، سنت ، واجب نفل هرلمونځ چې وغواړی کولای شی ،ترڅو چې د دغه لمانځه وخت پاتی وی ، او دس ئي نه ماتيږی په قطرې راتللو سره ، مګر که له څاڅکی پرته بل کوم ناقض وی ، هغه اودس ماتوی.

**مسئله** : که څه هم د لمانځه په حالت کې دپيشاب قطره پرجامه په څرګنده وغورځی ، د معذور ګڼلو په وجه شرعا له ده څخه معاف دی ، نو څوک دا بهانه نشی کولای چې لمونځ ورځنی معاف دی ، د عذر په وجه ، داسی نه بلکی دغه عذر ورته معاف دی خو لمونځ نه.

(فتاوی رحيميه ص۲۷۲ ج۴، بحواله مراقی الفلاح)

**مسئله** : د ښاځکې د راتللو د ویرې لامله که څوک پرخپل عضو مخصوص باندې پوټو کرواچوي؛ لمونځ ورسره صحیح دی.
(فتاوی دارالعلوم ص۱۲ ج۴، بحواله ردالمحتار ص۱۳۹ ج۱)

**مسئله** : که څوک په ناسته لمونځ کوي نو د رکوع مستحب طریقه دا ده چې نس دومره کوږ کړي چې تندی له گونډو سره مقابل شي ، د ورنو د راپورته کولو ارتیا نشته. (فتاوی رحیمیه ص۲۹۹ ج۴، شامي ص۴۱۶ ج۱)

**مسئله** : د ناستې د لمانځه په وخت کې د قرائت پر مهال پرځای د دې چې د سجدې ځای ته گوري ؛ ښه دا ده چې خپلې غیږې ته گوري.
(فتاوی محمودیه ص۱۵۷ ج۲ بحواله شامي ص۳۲۱ ج۱)

**مسئله** : د معذور سړي د سجدې لپاره پکارنه ده چې تکیه او یا بل شی لوړ ورته کیښودل شي ترڅو دی سجده ورباندې ولگوي ، که د سجدې قدرت نلري نو په اشاره دې سجده کوي ، د تکیه او بل شئ د ایښودلو ضرورت نشته. (امدادالاحکام ص۱۹۸ ج۱)

## د معذور په اړه مسائل

**مسئله** : څوک چې په ولاړه نفل لمونځ کوي او په منځ کې ستړی شي نو کولای شي چې کښیني او یا هم په ولاړه پر کوم دیوال ، لکړه او یا بله تکیه باندې ځان واچوي او پاتې لمونځ پسې پوره کړي. دا د ده په حق کې عذر دی ، خوکه بې له عذره کښیني نو دا مکروه ده.
(هدایه ص۱۰۹ کبیري ص۲۷۱)

څکه چې نفل کوونکي په هرحال بې له کراهت په ناسته نفل کولای شي ، حتی چې په مینځ کې هم د عذر لامله کښیناستلای شي.
(درمختار ص۷۰۶ ج۱)



**مسئله** : که څوک په اورگاډي او یا بل داسې شي کې سفر کې لمونځ په ولاړه نشي کولای نو په ناسته دې وکړي څه حرج نشته . (درمختار ص۶۰۶ ج۱)

**مسئله** : که یو گوډ سړی وي په ولاړه لمونځ نشي کولای ، نو هغه ته پکار ده چې په جماعة کې د صف په یوه کونج او کناره کې کښیني او لمونځ وکړي دا جائزه ده. (امدادالاحکام ص۵۴۵ ج۱)

**مسئله** : څوک چې په ناسته هم لمونځ نشي کولای نو په پروټي دې په اشاره سره وکړي. او د مریض لپاره سنت او نفل کول ضروري نه دي ، که کولای ئې شي ، بهتره ده کنه نو هیڅ گناه نشته ورباندې.
(فتاوی دارالعلوم ص۴۴۰ ج۴، ردالمحتار ص۲۱۲ ج۱)

**مسئله** : که یو چا پرزخم باندې داسې پټۍ لگولي وي چې هغه په شراب او یا بل د ول نجس مرهمو باندې ککړه وي ، او لمونځ ورسره وکړي ، لمونځ ئې کیږي څه حرج نشته . (فتاوی دارالعلوم ص۴۴۰ ج۴، ردالمحتار ص۲۱۱ ج۱)

**مسئله** : که د ریاح مریض (هغه چې هوائې خارجیږي) شرعي معذور وي ، یعنې په هرحالت کې ئې ریاح جریان لري د طهارت (پاکۍ) یوه شیبه هم نه ورته پیدا کیږي ، نو د هغه لپاره دا جائزه ده چې یوځل اودس وکړي ، په وخت کې دننه لمونځ کولای شي که څه هم په لمانځه کې هوا خارجیږي. (فتاوی دارالعلوم ص۴۲۲ ج۴، ردالمحتار ص۲۸۰ ج۱، فتاوی محمودیه ص۱۳۳ ج۷)

**مسئله** : څومره چې ئې طاقت وي د هغه سره سم دې لمونځ اداء کوي ، که د ولاړې وس ئې نه وي ، نو په ناسته او که د ناستې وس ئې نه وي نو بیا په پروټې لمونځ کولای شي ، مطلب دا چې تکلیف د وسعت په اندازه دی . (فتاوی دارالعلوم ص۴۳۶ ج۴)

**مسئله**: که له مریض سره بل کوم څوک نه وي او دی خپله قبلې ته مخ نشي کولای، نو چې کوم اړخ ته ئې مخ وي هغې خواته دې په پروتې په اشاره لمونځ اداء کړي. (کتاب الفقه ص۳۲۴ج۱)

**مسئله**: که چیرې یو داسې مریض وي چې سلسل البول وي. (یعنې بولې ئې جاري وي) او ده ته دا وېره او اندېښنه وي چې که په ولاړه لمونځ کوي نو بولې ئې توئیږي او په ناسته نه توئیږي او همدارازیو روغ سړي ته د خپلې تجربې له مخې دا څرګنده وي چې که په ولاړه لمونځ کوي نو سرئې چکر کوي او یا بې هوښي ورباندې راځي، نو په دې صورتونو کې لمونځ په ناسته کولای شي، څه حرج نشته، خودا باید وویل شي چې په دې ټولو صورتونو کې رکوع او سجده او نور ارکان په مکمل ډول اداء کول واجب دي (کتاب الفقه ص۸۰۲ج۱فتاوی رحیمیه ص۱۹۵ج۱).

**مسئله**: که یو څوک د یوه شي په وسیله دریدای شي او لمونځ کولای شي، لکه لکړه، دیوال ... او یا بل داسې شئ، نو هغه سړی ته د دغه شي په مرسته په ولاړه لمونځ وکړي، په ناسته ورته اجازه نشته، همدارازد ناستې او پروتې هم همدا مسئله ده، لکه د ولاړې او ناستې.

(کتاب الفقه ص۸۰۲ج۱امدادالفتاوی ص۴۵۱ج۱، درمختار ص۷۰۱ج۱)

خو مره چې ممکن وي بې له کومې پریشانۍ دې لمونځ اداء کړي.

(رفعت قاسمیؒ)

**مسئله**: که یو سړی داسې مریض وي چې یوازې په سترګو، بانو ګانو او یا په زړه سره اشاره کولای شي، نور څه نشي کولای نو په دې حالت کې دا سړی معذور بری الذمة متصور کیږي، لمونځ که کوي هغه صحت نلري، که څه هم عقل ئې پرځای وي، او که په دې



حالت کې ئې لمونځونه تر پنځو ورزیات شي. نو بیائې قضاء هم ورباندې نشته. (کتاب الفقه ص۸۶ج۱)

**مسئله**: که یو سړی پر قیام قدرت لري، ولې رکوع او سجده نشي کولای نو پر دغه سړي قیام هم لازمه نه ده، دی به کښېني په ناسته به په اشاره لمونځ کوي. (هدایه ص۱۰۹ج۱، کبیری ص۲۶۶کتاب الفقه ص۸۰۶ج۱)

## له سجدې اور کوع څخه د معذرت حکم

**مسئله**: که څوک له رکوع یا سجدې څخه معذور وي، کولای ئې نشي نو هغه دې په اشاره سره اداء کړي.

**مسئله**: که یو سړی قیام او سجده کولای شي خو صرف رکوع نشي کولای، نو هغه ته پکار ده چې نیت وتړي او د قرائت لپاره ودریږي او بیا دې رکوع محض په اشاره سره وکړي، او سجده دې مکمله کړي.

**مسئله**: که یو سړی قیام کولای شي، ولې د رکوع او سجدې څخه عاجز وي نو تکبیر تحریمه او قرائت دې په ولاړه ووایې. او د رکوع اشاره دې هم په ولاړه وکړي، بیا دې کښېني او سجده دې په اشارې سره پوره کړي. (کتاب الفقه ص۸۰۵ج۱)

**مسئله**: که یو سړی داسې زخمي وي چې په سجده کې وینه څنې بهیږي او په ناسته کې ورته داستونزه نه وي، نو د ده لپاره ښه دا ده چې کښېني او د سر په اشارې سره سجده وکړي. ځکه چې په دې صورت کې او دس پرځای وي، صرف سجده له منځه ځي، او له سجدې پرته لمونځ په شریعت کې شته، مثلا پر سواری باندې لمونځ چې عذر وي، سجده پریږدي هیڅ حرج نشته. (درمختار ص۶۵ج۱کتاب الصلاة)

## هغه مریض چې رکعتونه او ارکان نه ورپه یاد پېږي

**مسئله** : که چیری پر یو ناروغ باندی د ناروغۍ په وجه داسی حالت راځي چې د رکعتونو شمیر ورڅخه ګډوډ کیږی ، چې څو رکعتونه ئي اداء کړي او څو پاتې دی ، یا سجدې ورځنی هیرې شی او یا نور ارکان ، نو په دې صورت کې پرده باندی لمونځ اداء کول لازم نه دی ، خوکه د بل چا په هدایت او ښوونه ئي اداء کوی بیا څه حرج نشته ، لمونځ ئي کیږی. (درمختار ص۷۰۴ج۱)

## د ستر ګو په اشاره لمونځ کول

**مسئله** : مجبورسړی د سر په اشارې سره بې له شکه لمونځ کولای شی ، مګر د سترګې ، زړه او مخ په اشارې سره لمونځ نه کیږی.(درمختار ص۷۰۲ج۱)

**مسئله** : که د یو سړي دواړه لاسونه ترمړوندو پورې او دواړه پښې ئي تر پونده یو پورې قطع شوی وی ، او پرمخ ئي هم زخمونه وی ، نو دا سړی پرته له اوداسه او تیمم څخه لمونځ کولای شی ،او راګرځیدل هم وربانذی نشته. (درمختار ص۸۰-۷ج۱)

که چیری ئي لاسونه ترمړوند کنبته یعنی لږ پرې وی نو بیا په هغه صورت کې څوک موجود وی نو د هغه په وسیله ئي دلاسو پریمنځل وربانذی واجب دی ، او که نه وی نو ضروري نه ده. (محمد رفعت قاسمی غفرله)

## د لیوني او بې هوښه سړي د لمانځه حکم

**مسئله**:کوم سړی چې لیونی شی اویابې هوښې وربانذی راشی پوره ۲۴ساعتۀ په همداسی حالت کې وی ، نو د بې هوښۍ په ختمیدلو سره د تیروشویو لمونځونو قضاء وربانذی لازمه ده. او که دغه حالت ئي ترشپږم



لمانځه هم ور واړوی ،نوبیا ئي قضاء وربانذی نشته. (درمختار ص۷۰۲ج۱،کتاب الفقه ص۴۸۸ج۱)

## د بنګو یا شرابو په وجه د عقل د له مینځه تللو په صورت کې د لمانځه حکم

**مسئله** : که چیری د شرابو یا بنګو او یا داسی بل دوایي او یا نشیئ شی په خوړلو سره د سړی عقل له مینځه ولاړ شی ، نو پرده باندی د هغو لمونځونو قضاء شته چې د بې عقلۍ په زمانه کې ورڅخه فوت شوی وی ، که څه هم عمر ئي ښه دراز شی ، ځکه چې دا د عقل زائلیدل د ده پخپل فعل شوی دی ، لکه چې یو سړی ویده شی د خوب په وجه چې هرڅومره لمونځونه قضاء شی راګرځوی به ئي، ساقطیږی نه ، نو همدا راز که څوک شی وخوری ، او د هغه په وجه بې هوښه شی ،نو پخپل لاس ئي داکار وکړ ، لهذا لمونځ ځنی ساقط نه دی ، راګرځوی به ئي. (درمختار ص۷۰۸ج۱)

## د ناروغۍ په وخت کې د روغتیا د وخت قضائی لمونځونه راګرځول

**مسئله** : که یو مریض د مرض په وخت کې خپل هغه لمونځونه راګرځوی چې د جوړتیا په وخت کې ورڅخه قضاء شوي وی ،څرنګه چې دی د خپلې ناروغۍ په وجه لمونځ په ناسته یا په اشاره کوی نو هغه قضائي لمونځ که څه هم په همدی شکل اداء کوی ، دا صحت لری ؛لمونځ ئي کیږی. ولی برعکس که دی د جوړتیا په وخت کې د ناروغۍ د وخت قضائي لمونځونه راګرځوی نودا صحیح نه ده چې په ناسته او یا په اشاره به ئي راګرځوی ، ولی چې قضاء شوی همداسی دی ، دا له دې امله چې اوس خوده ته هیڅ عذر نشته.

(درمختار ص۷۲۸ج۱کتاب الصلاة)

## د مريض او معذور قبله

**مسئله :** د هر هغه چاڅخه چې د مرض او په بلې وجې سره د لمانځه ارکان ساقط وي ، دهغوی ټولو قبله هغه طرف دی چې تروس ئي لاندې وي ، يعنې هرلوري ته چې مخ وي اوبلې خواته نشي کيداى ، همغه ئي قبله گڼله کيږي ، يعنې لمونځ ئي هغه لوري ته صحت لري ، دوی ته دالازمه نه ده چې قبلې ته به سيده درېږي ، او په هغه صورت کې چې بل څوک ورسره وي ، او قبلې ته ئي هغه مخامخ کولاى شي ، بياهم پرده لازمه نه ده چې دهغه په وسيله به ځان هرومرو قبلې ته سموي. (درمختار ص۷۸ ج۱، عالمگیری ص۵۶ ج۳)

که څه هم استقبال القبلة د لمانځه اهم شرط دی، مگر فقهاؤو داپه صراحت سره ويلي چې د عاجز لپاره داکافي ده چې پرکوم لوري ئي قدرت درلودی.

**مسئله :** که چيرې ترمريض لاندې ناپاکه جامه غوړيدلې وي او حال هم داسې وي چې کله هم کالي ترې لاندې خپور شي ، هغه مردار يږي، نو په دغه حالت کې دی دی خپل لمونځ وکړي ، اوکه چيرې تردغه کالي لاندې بستر خراب نه وي ، مگر دهغه په بدلولو رابدلولو کې مريض ته تکليف رسيږي نودی بستر نه بدلوي ..(فتاوی عالمگيری ص۵۶ ج۲)

**مسئله :** د يو ناروغ که دمجبورۍ په وجه هميشه جامې ناپاکې وي او په پاکو ئي بدلولاى نشي نو څه باک نلري ، لمونځ ئي صحيح دی. (البته که بې له مجبورۍ ئي جامه ناپاکه وي اودی ئي نه بدلوي ،نود دې لمانځه قضاء ورباندې لازمه ده.

(فتاوی دار العلوم ص۳۳۲ ج۴، ردالمحتار ص۲۸۱ ج ۱ باب احکام المعذور)



**مسئله :** د يخنی اویا بل علت په وجه يو مريض ټول بدن او مخ څادر يابل دغسې شئ پټ کړي وی ؛ لمونځ ئي صحيح دی.

(فتاوی دار العلوم ص۳۳۳ ج۴، ردالمحتار ص۲۸۰ ج۱ باب شروط الصلوة)

## که د يو بې لمانځه سړی له لوری څوک فديه ورکړی څنگه به وی ؟

**مسئله :** د ميت (مړی) له وصيت او مال پرېښودل پرته پر وارثانو هيڅ ډول کفاره واجب نه ده. مگر که ئي تبرعا اداء کړي ، بهترکار دی ، او ډيرښه دی ، کيداى شي د دې په سبب ئي الله تعالى گناهونه وبخښي ،په دې فديه کې څه حرج نشته ، که څه هم يقين ئي دانه وی چې په دې فديه سره به هغه ميت برائت پيدا کړي مگرامید به ئي وی،په هرحال لمونځ پرېښودل يو عظيمه گناه ده ،پوښتنه به ئي هرمرو کيږي ،خو معافي اوبښنه ئي هم د الله پاک په واک کې ده: «و يغفرمادون ذلک لمن يشاء» (فتاوی دارالعلوم ص۳۶۵ ج۴، ردالمحتار ص۶۸۵ ج۱ باب قضاء الفوائت)

## که چادوصيت سره سره فديه ورنکړه نو ؟

**مسئله :** که چيرې د ميت (مړی) د وصيت اومال پرېښودلو باوجود دهغه وارثين دمال دريمه برخه پوره فديه ورنکړي نو بې له شکه چې هغوی گناه کار دي ،او ميت هم له اخروی مؤاخذې نه خلاصيږي ، ترڅو ئي الله تعالى ونه بخښي له خپل فضل او کرم څخه.

(فتاوی دارالعلوم ص۳۶۸ ج۴،ردالمحتار ص۶۸۵ ج۱،باب قضاء الفوائت فتاوی محموديه ص۹۸ ج۷)

## د لمنځونو فديه څومره وي؟

**مسئله :** دلمانځه کفاره به د سړی له مړينې وروسته دهغه وارثان ورکوي ،په ژوند کې د کفارې حکم نشته. او د کفارې اندازه دا ده چې پاوکم ۲سيره غنم به ورکوی. (يعنې يوه کيلو ۶۳۳ گرامه ) په شپه او

ورځ کې به د سپږو لمونځونو ورکوي ، سره له وترو ، نو په دې حساب سره د يوې ورځې د لمونځونو کفاره (۹ کيلو ۷۹۸ گرامه ) شوې . نو ردې خپله اختيار لري ، غنم ورکوي او که نغدې پيسې ، ښه او افضل کار دا دی چې نغدې وي ، ځکه چې په هغه سره د سړي تولې ارتياوې پوره کيږي ، که ديني کتابونه واخلي او پر مستحقينو ئې وويشي دا هم ښه صورت دی . مگر په دې کې لازمه خبره دا ده چې هغه کتابونه به يا ضرور پر د ېرو ارو طالبانو ويشي او هغه ئې پخپل ملکيت سره قبول کړي ،داچې ځيني خلک ئې پر ديني مدرسو ويشي او هغوی ته ئې وقف کوي ،دا طريقه جواز نلري ، کفاره نه اداء کيږي . (ملکيت پکې ضروري دی ) . (فتاوی دارالعلوم ص۳۶۴ج۴، فتاوی محموديه ص۵۰ج۱۳)

**مسئله** : د فدئې د مصرف ځايونه همغه دي چې د زکوة اوصدقة الفطر دی ، او ډېر مستحق په دې کې هغه څوک دی چې ډير اړوي ، لکه پوروړی او داسې نور... او که ئې په مدرسه کې په دې شکل مصرف کړي چې مستقيما د طالبانو په ملکيت کې ورکړي نو دا هم ښه مصرف دی . او که ئې د مدرسې بيت المال ته په داسې ښه ليږي چې ملکيت ئې ناڅرگند وي ، نو دا جائز نه ده . (فتاوی دارالعلوم ص۳۶۹ج۴)

## د مريض په ژوند کې د لمونځو فديه ورکول څنگه دی ؟

**مسئله** : شيخ فاني (هغه څوک چې دعمر أخيرې پوړيو ته ورسيږي) کولای شي پخپل ژوند کې د روژو فديه ورکړي ، مگر د لمانځه فديه نشي ورکولای ، دا صحت نلري ،او لمونځ ئې له ذمې څخه نه ساقطيږي ځکه چې په لمانځه کې دا وسعت شته چې که په ولاړه ئې نشي کولای ، نو په ناسته دې وکړي ، او که په ناسته ئې نشي کولای



نو په پروته دې وکړي او که رکوع او سجده هم نشي کولای په اشاره دې وکړي ، البته له مرگه وروسته ئې چې پر ذمه څو مره لمونځونه پاتې شي يا روژې پاتې شي او د فديې ورکولو وصيت وکړي ،او مال ئې هم پرې ايښې وي ، نو پروارثينو ئې د هغه فديه اداء کول ضروري دي ،اوحکم ئې د زکوة دی ، چې تمليک پکښې ضروري دی ، او مستحقين ئې اړکسان دي ، او که په ديني مدارسو کې طالب العلمانو ته ورکول شي ، نو دا لا بهتره ده ، او ثواب ئې زيات دی ځکه چې دا د دين پخاطر او د ديني علومو لپاره د طالبانو مرسته ده .
(فتاوی دارالعلوم ص۳۳۸ج۴بحواله هداه ص۲۰۴ج۱کتاب الصوم )

**مسئله** : په توبې او يا حج سره صرف گناه معاف کيدلای شي ، ولی فرائض نه معافيږي ، مثلا يو سړی پوروړی وی د چا قرض ئې پر ذمه وی ، نو ورکول ئي ورباندی فرض دی ،اوس که دی توبه وباسی او يا حج وکړی نو له فرض خلاص نسو ، بلکی لاهمغسی ورباندی فرض دی ،لکه چې ترتوبې او حج وړاندې ئې پرځان فرض گاڼه .

همدارنگه د حقوق الله هم چې کوم قرض دی ، لکه لمونځ او داسی نور... په اداء کولو سره ئي سړی له مسئوليته خلاصيږي ، په توبې او حج سره نه ، بلکې په دی سره صرف د لمانځه تأخيرچې يو معصيت دی ؛ معاف کيدای شی ، ولی لمونځ لابياهم ورباندی لازم دی ، که چيری ئې په قضاء راوړلو کې بياتأخيروکړ ، نو بياله سره په گناه اخته شو . (فتاوی دارالعلوم ص۳۳۷ج۴، شامی ص۲۷۶ج۲)

**مسئله** : د قضائی لمونځونو کفاره د هغوی راگرځول او د الله تعالی په وړاندې د پښيمانۍ اوندامت سره توبه کول دی ، صدقه ورکول

کفاره نه ده، مګر دومره ده چې په صدقه سره د الله تعالی قهر او غضب (چې د لمانځه د ترک په وجه چې بنده ته راغلی وی؛) په رحمت د بدليدو امید شته، چې بنده د خپل عجز او قصور څرګندونه په دې سره وکړی چې نور و اړو بندګانو ته له خپل مال څخه څه ورکړی، نو الله هم وربانديمهربان شی او ترګناه ورتیرشی، نو د همدې امید او هیله په صدقه او خیرات کې شته، باقی صدقه کفاره نه ده. بلکې پخپله د لمانځه ادا ینه او رښتینی توبه ئې کفاره کیدای شی. (فتاوی دار العلوم ص۳۵۴ ج۴)

**مسئله**: د لمانځه او روژې قضاء صرف په توبه سره معاف کیږی نه، بلکې قضاء راوړل ئې هم ورباندی لازم دی.

(فتاوی دار العلوم ص۳٦۳ ج۴، ردالمحتار ص٦۸۰ ج۱).

توبه او صدقه صرف د تأخیر او د لمانځه د بې وخته کولو د معصیت کفاره کیدای شی.-ژباړن

## د اسقاط حیله

سوال: د اسقاط حیله جوئې په دې شکل ترسره کیږی، چې د جنازې د لمانځه نه مخکې یا وروسته د اوربشو یو مڼ، نغدی پیسی لږ تر لږه پاو بالا یوه روپۍ او قرآن شریف. یو څوک ئې پخپل لاس کې ګرځوی او هغه څوک چې جنازې ته راغلی وی، هغوی ته ئې ورکوی او هغوی ئې هم د حیلې په توګه ځنی رانیسی او وائې چې ما قبوله کړی او بیرته ئې درکوم. د حیلې جوړونکی او ورکوونکي غرض هم دا دی چې په دی توګه د میت ټول قضاء شوی لمونځونه روژې، حجونه



او داسی نور عبادات فوت شوی وی؛ د هغوی کفاره ګرځی، نو آیا داڅه حکم لری؟

جواب: د اسقاط دغه ذکر شوې حیله د میت پروارثانو واجب نه ده، او د دې خبری وصیت هم فقهاء کرامو جائز نه دی ګڼلی.

(فتاوی دار العلوم ص۲۳۰ ج۴ بحواله ردالمحتار ص٦۷۹ ج۱)

## بیلابیل مسائل

په هغه ملک یا سیمه کې چې شپې لنډی وی؛ د لمانځه حکم څنګه دی؟

پوښتنه: په ځینو هیوادونو کې لکه برطانیه په ټولیزه توګه د هغه په شمالی برخه کې اکثرا د ګرمیو په شپوورځو کې د ماخستن وخت پر ۱۱:۳ یولس بجې او درې دقیقې پیل کیږی او سپیدی بیا پر ۱:۴٦ یوه بجه ۴٦ دقیقې راخیژی، ګویا د شپې اندازه ۲ ساعته او ۴۳ دقیقی کیږی. اوس که څوک د وخت له شروع کیدو سره سم آذان وکړی ۱۴ یا ۱۵ دقیقې وروسته لمونځ هم کیږی، په دومره لنډو ګڼو وخت کې د پیشلمی خوراک، څښاک، مسجد ته تلل او نور ټول ضرورتونه پوره کول ډیر ګران کار دی، نو اوس په داسی حالت او صورت کې څه کول پکار دی؟

جواب: عزیمت خو دا دی چې د سنت مطابق تراویح په پوره توګه سرته ورسوی او یو ځل قرآن پاک پکښی ختم کړی، همدا راز نور عبادات هم په صحیح ډول پوره کړی، او ټوله میاشت په مجاهده او مبارزه کې په رښتیني ډول تیره کړی، آماکه بیا چیری مجبوری او عذر وی مثلا، کمزوری، ناروغی، ملازمت (دنده) او یا بلـه

ارتیا ورته وی نو دې بیا د «الم ترکیف» سورتونو باندې لنډې ۲۰ رکعته تراویح وکړی ، که ئې د دې توان او موقع هم نه لرله نو د فرض او وترو ترمنځ دې صرف ۸ رکعته تراویح اداء کړي.

سوال : په سکاټلینډ او ځینو نورو داډول ځایونو کې چې د کال په ځو میاشتو کې مثلاً د مئ جون او جولائی پورې لـه سپین شفق وروسته ماښام کیږي او پر صبح صادق بیرته سپین والی راوغوړیږي چې د ډیرې روښانتیا لامله د ماخستن وخت او د سهار اخیرې وخت معلومول ځرنګه کیداى شي ، او لمونځ په څه ډول او څه وخت کې باید اداء شي ؟

جواب : که څه هم ډیری احنافو فقهاؤ د سره شفق ترلوېدلو ورسته د ماخستن ابتداء بللې ده ، ولی ځینی محققین فقهاء بیا د سره شفق ترلویدلو ورسته د ماخستن شروع بولی ، نو په همدې آساس په مذکوره حالت کې باید د سره شفق لـه لویدلو سره سم د ماخستن ابتداء وبلله شي او د صبح صادق د بیاض (سپین والی ) ترپیل کیدلو وړاندې د ماخستن لمونځ اداء کړل شی ، او همدارنګه په روژه کې هم د ماخستن د فرضو او وترو په منځ کې د صبح صادق د سپین والی تر راڅرګندیدلو مخکی د تراویحو د اداء کولو کوښښ وکړي.

که د شلو رکعتونو موقع د «الم ترکیف» پـه سورتونو ویلو هم پیدا نشی ؛ نو ۸ رکعتـه دې وکړي او کـه چیـری د دې موقـع هم پیدا نشی ، نو دې بیا خپل فرض او وتر اداء کړي.

او د آداء پـه نیت بـه ئې آداء کوی ، لکه د بلغاریـه د او سیدونکو د ماخستن د لمانځه د آدايني په اړه په بحث کې فقهاؤ ویلی چې. که



چیرې چې شـفق ترختمیـدلو مخکی صبح صـادق شـروع شـی ، او د ماخستن لمونځ ته وخت پیدا نشی ، هلته هم د ماښام د لمانځه څخه څه وقفه وروسته بیا د سهار راختو ترمنځ به د ماخستن فرض او وترد اداء په نیت کول راجح دی. (نظام الفتاوی ص۴۷ بحواله شامی ص۳۷۵ ج۱)

**چیرې چې بیخی د ماخستن وخت پیدا نشی نو د لمانځه حکم څه دی ؟**

په برطانیه کې د میلادی کال په حساب د مئ د میاشتی لـه ۲۲ می څخه د جولائی تر ۲۱ می پورې په دغو دوو میاشتو کې شپې صرف ۴ ساعته وی ، په دغه ورځو کې شفق بیخی لویږي نه نو په دغه حال کې د لمانځه حکم څه دی ؟ چې د ماخستن وخت د شفق ترلویدلو وروسته پیل کیږي، نو د دالاندې ذکرشویو خبرو تفصیل که راته واضح کړي:

۱- چیرې چې د ماخستن وخت وی نه ، هلته د ماخستن لمونځ فرض دی ؟

۲- که فرض وی نو څه وخت به ئې کوی ؟

۳- آیا د لمرختو وروسته ئې قضاء راوړي ؛ که چیرې ئې قضاء راوړي پرمقرر وخت دی آذان ، اقامت او په جماعة سره آداء شی ؟

جواب : په دې مسئله کې ډیر زیات اختلافات او تفصیلات موجود دی ، خو خلاصه او لنډیزئې داسی ده چې که څه هم د ماخستن وخت نه وی ، خو لمونځ ئې فرض ده ، او دلیل ئې داده چې الله تعالی پنځه وخته پر خپلو بندګانو لمونځونه فرض کړي هرچیرې په هر وخت او په هر حال کې چې وی ، لکه چې په ( حدیث دجال ) کې چې وارد دي چې یوه ورځ به ئې د ټول کال سره برابره وی ، صحابه کرامو عرض

وکړ چې د لمونځو په اړه څه حکم دی؟ (په دغه ورځ) آنحضرت ﷺ وفرمایل چې په دغه ورځ به د ټول کال لمونځونه اداء کوی.

(فتاوی دارالعلوم ص۶۱ ج۲، درمختار ص۲۰ ج۱ کتاب الصلاة)

۲-اوبل داچې کـه چیرُی د ماخستن وخت پیدا کیږی خولږ؛ نو صورت

دادی: چې د ماښام نه لږ وقفه وروسته به د ماخستن لمونځ کوي، یاچې په خوا وشا سیمه کې پرکوم وخت ئي خلک آداء کوی. هغه معتبر دی، یوصورت دا هم دی چې د صبح صادق نه وروسته دي د ماخستن لمونځ وکړی، اوله هغه ورسته دي بیا د فجر(سهار) لمونځ وکړی. ځکه چې په «درمختار» کې راځی، پرچاچې د ماخستن وخت راځي نه، پرهغه هم د ماخستن فرض او وتر لازمي دي، هغه دي دغه لمونځ دخپلې اندازې او اټکل مطابق آداء کړی یعني کوم وخت چې یې سر وباله په هغه وخت کې یې کولای شی، مطلب داچې په بل موسم کې چې کوم وخت ماخستن پیل کیده او له ماښام ورسته به څومره فاصله بعد د ماخستن لمونځ کیده دلته دې هم همغسی وکړی، اویاچې په نورو ښارونو او ملکونو کې څنګه طریقه وي د همغسی عمل مطابق دی عمل کوی، او د ماخستن په لمانځه کې به د قضاء نیت نه کوی، ځکه چې قضاء هغه وخت بلله کیږی چې وخت پیدا شی او بیا ورځنی فوت شی، نو دلته خو د ماخستن وخت بیخی پیدا شوی نه دی، نو قضاء له کومه شوه.

(درمختار مع شامی ص۵۳۵ ج۱ وغیره)



۳-دا هم کیدلای شي چې ترلمر راختلو وروسته ئي اداء کړی، مګر چونکه د ماخستن او سهار ترمنځ بیا ترتیب مشکل دی، نو پکار ده چې ترصبح صادق وروسته او ترفجر وړاندی د ماخستن لمونځ په آذان، تکبیر او جماعة سره اداء شی.

**مسئله**: وتر به یوازی په روژه مبارکه کې په جماعة سره کیږی، بل وخت نشته په جماعة سره. (جوهر نیره ص۴۲ ج۱، دتفصیل لپاره: فتاوی رحیمیه ص۱۹۴ ج۲، فتاوی محمودیه ص۹۳ ج۷ نظام الفتاوی ص۵۹ ج۱، فتاوی دارالعلوم ص۴۴ ج۲)

چیری چې شپږمیاشتی ورځ شپږمیاشتی شپه وي د لمانځه حکم څه دی؟

**مسئله**: په داسی ځای کې چې په پرله پسی توګه شپږمیاشتی لمر لویدلی وی اویا پوره شپږمیاشتی ورځ وی، یعنی لمر بیخی لوېږی نه، نو په داسی ځای کې انسانانو ته زندګې کول هم یو ستونزمن کار وی، په هرصورت د عبادة یعنی لمانځه لپاره یې حکم داسې دی چې لمونځونه پرهرحال ورباندی فرض دی، په هرو څلورویشتو ساعتونو کې به د خپل حساب سره سم چې یوه شپه ورځ کیږی، لمونځونه به همغه حسابی ترتیب، یعنی وروسته ومخ ته او په معلومه فاصله به ئی کوی، چې له حدیث دجال څخه هم همدا ترتیب او مسئله رامعلومیږی اود شاه عبدالعزیز صاحب محدث دهلوی رح رجحان هم همداسی دی بیاچې مسلسل شپږمیاشتی لمروی او شپه راځی نه، نو هلته دی هم همغه مخکنی ترتیب جوړ کړی په هرو څلورویشتو ساعتونو کې دیوې شپې اوورځی پنځه لمونځونه د اندازې مطابق اداء کړی. همدا راز دی

رزژه هم په همدې ترتیب نیسي، لنډه دا چې څنګه د نیاوي کاروند د یو حساب اټکل او اندازې له مخې ترسره کوي، خوراک، څښاک، ویده کیدل، راپاڅیدل، وظیفه اجراء کول، تجارة او نور کاروبار کول همداسي دي عبادات هم سرته رسوي. کله چې ئې یو ځل لمونځ وکړ، بیا که د همدغه لمانځه دوباره وخت راورسي، نو لمونځ به نه کوي ځکه چې یو وار خو اداء شو، مثلاً: که یو سړی د ماپښین لمونځ په مشرق (ختیځ) کې وکړي او بیا په یو ډیره تیزه الوتکه کې مغرب ته ولاړ شي، دلته لا هماغه ماپښین وخت او خلک د دغه وخت پرلمانځه وي، نو پرده با ی دغه لمونځ نشته، ځکه ده خو لا په مشرق کې اداء کړی و. (نظام الفتاوی ص۳۷ج۱، بحواله مسلم شریف ص۲۰۱ج۱ او فتاوی دارالعلوم ص۳۰ج۲)

## په سپوږمۍ او مریخ کې د لمانځه حکم او طریقه

پوښتنه: په اوسنیو حالاتو کې چې خلک سپوږمۍ او یا مریخ ته د ختلو خبرې کوي او یا دا چې ورختلي دي. نو اوس پوښتنه دا ده چې هلته لمونځ څه حکم لري، که صحت لري نو څنګه او پر کوم لوري به ئې کوي؟

جواب: که ځای پیداکیږي نو نه یوازې لمونځ بلکې جماعة هم کولای شي، قضاء کوي به ئې نه، د «قبله نما» په مرسته به قبلة ځان ته معلومه کړي، او که دا نه وي نو د خپلې تحرې (فکري هڅې) په ملتیا چې هرې خواته ئې د قبلې ګمان زیات وي هغه لوري ته دې لمونځ وکړي، د تحرې په صورت کې که څه هم قبله واقعاً هغې خواته نه وي، بیا هم د ده لمونځ صحت لري. که چیرې په طیاره کې پرسیټ «څوکۍ» ناست وي، د لمانځه وخت شي، نو که څه خلاص ځای



پیداکیږي چې هلته ولاړ رکوع او سجده کولای شي نو دې هلته وکړي او کنه نو په خپله څوکۍ کې دې په اشاره سره رکوع او سجده وکړي، بیا چې د (سپوږمۍ، مریخ او یا دنیا) پرځمکه راکښته شي، هغه فرض لمونځ به راګرځوي.

دا نه یوازې چې د سپوږمۍ بلکې، د زهره، مریخ او نورو ... پرځمکه هم اوسیدل او رسیدل شونتیالري او په دې کې هیڅ شرعي مانع نشته، لمونځ او نور هرډول عبادات د ځمکې په څیر هلته هم صحت لري او کیږي، همدا راز، فرضیت، وجوب، ثواب او عقاب همداسي دي. (نظام الفتاوی ص۷۶ج۱)

## خپل اولاد پر لمانځه مجبور کول

**مسئله**: ماشوم چې کله ئي عمر ۷ کالو ته ورسیږي، نو والدینو (مور او پلار) ته پکار ده چې هغه ته پر لمانځه کولو ډیر ټینګار کوي، ترڅو له لمانځه سره عادت ونیسي، او بیا چې بلوغ ته نژدې یعنی د لسو کالو په عمر شي نو بیا دې تاکید ورباندې زیات کړي تر دې چې تأدیبا دې څه ناڅه وهل هم ورکوي، نه یوازې دې پر لمانځه تشویقوي، بلکې د لمانځه ضروري ارکان او شرائط دې هم ورته ښیي. (مظاهر حق ص۵۰۷ج۱، درمختار ص۸ج۱، کتاب الصلوة)

حضرت عبدالله ابن مسعود رض فرمایي چې د ماشومانو د لمانځه ځارنه کوئ، او ښه خبرې ورزده کول ئي عادت وګرځوئ، د آنحضرت ﷺ مبارک ارشاد دی چې وایې: یو سړی که خپل اولاد په یوشئ پوه کړي (یعنی له بدي را منع او په نیکې ئې امر کړي) نو دا تر هغه بهتره ده چې یوه پیمانه صدقه (خیرات) کړي. همدا رنګه فرمایي: هیڅ یو

پلار خپل اولاد ته تردې بله ښه عطيه (تحفه) نشي ورکولای چې ښه روزنه ئي وکړي. (فضائل نماز از شیخ زکریا رح ص ۲۵)

## د لمانځه لپاره د بل چا راپورته کول

په دې کې شک نشته چې د سهار وخت د غفلت وخت دی، نو پکار ده چې خلک هم داسې غافل پرينښودل شي، يو څوک چې ښه نيکمرغه وي او په دغه برکتي وخت کې دغفلت عادت نه لري، او لمانځه ته راپورته کيږي، د هغه لپاره مستحب داده چې نور مسلمانان هم لمانځه ته راپورته او تشويق کړي، خو په دې شرط چې دهغوی او د نورو د ايذاء او ضرر سبب ونه ګرځي
(فتاوی رحیمیه ص۲۹۱ بحواله کبیری ص۲۶۱، شامی ص۳۶۱ج۱)

**مسئله:** مستحب داده چې ويده سړي بايد جماعت ته راپيدار کړل شي، ترڅو له جماعت څخه بې برخې او محروم نشي.
(درمختار ص۱۴ج۱، کتاب الصلوة)

**مسئله:** که څوک پرچاږغ کوي او لمانځه ته ئې راپاڅوي پرده - باندې راپورته کيدل ګران وي، او د نيم خوب په حالت کې ووايي چې زه نه ځم يا نه پورته کيږم، نو په دې صورت کې د ايمان او نکاح تجديد ته ضرورت نشته ځکه چې د ده مقصد دا نه وي چې د لمانځه له فرضيت څخه انکار کوي، بلکه له پورته کيدلو څخه منکر وي، وايي يو څه مې لا خوب ته پريږده، ليکن توبه او استغفار به ډير کوي.
(فتاوی محمودیه ص۵۹ج۱۳)



## سورة فاتحه په يوه ساه ويل

**مسئله:** دا ښه د کمال او بهترۍ خبره نه ده چې امام په يوه ساه «الحمدلله» ووايي. حتی دا ډول يو عادت ګرځول ناوړه او ناخوښه عمل دی، چې له تنزيهي کراهت څخه به خالي نه وي، په ترتيل سره قرآن ويل او د هغه په معناګانو کې ښه تدبرکول پکار دي، چې د دې تائيد حديث شريف هم کوي، خلاصه دا چې په فرض لمانځه کې په يوه ساه سورة فاتحه لوستل نامناسب او مکروه عمل دی. دا عادت بايد پرينښودل شي. (فتاوی محمودیه ص۲۲۵ج ۷ بحواله مشکوة شریف ص۷۸ج۱)

**مسئله:** که څوک امام په درې څلورمياشتې کې ټول قرآنکريم ختموي، اخيره پاره په يوه يوه رکعت کې څوڅو سورتونه او په اخيري رکعت کې دبقرې سورة يو څه اندازه ووايي مثلاً له «الٓم څخه تر - مفلحون» پورې، نو په دې کې هيڅ حرج نشته، فرضا که په لومړي رکعت کې قرآنکريم ختم کړي، يعني «قل أعوذ برب الناس» ووايي، نو په دوهم رکعت کې د سورة بقرې څو آياتونه ولولي. مګر د فرائضو په يوه يوه رکعت کې څوڅو سورتونه لوستل خلاف اولی کار دی، يعني ښه نه دی. (فتاوی دارالعلوم ص۲۵۰ج۲)

## د لمانځه په حالت کې که کوم ليکل شوی شئ ولوستل شي؛ لمونځ ځنګه دی؟

**مسئله:** په قصدي توګه په زړه کې ويل او په معنی ئي ځان پوه کول مکروه دي البته لمونځ نه فاسديږي، او که چيرې يوناڅاپه ورباندې نظر ولګيږي، او بيا فکر پکښې بند نکړي؛ نو دا معاف ده. او هيڅ ډول کراهت نلري. (فتاوی رحیمیه ص۲۸۹ج۷، شامی ص۵۹۳ج۱، مراقی الفلاح ص۱۸۷، آپ کی مسائل ص۲۱۳ج۳)

## د وخت د تنګۍ په وجه تیمم وهل څنګه دي؟

**مسئله:** که یو څوک په صورت هم ښه جوړ وي، مګر د وخت د لږوالي په وجه غسل نشي کولای او تیمم ووهي، دا جواز نلري، که بیا هم په دې توګه لمونځ وکړي، هغه صحت نلري دوهم ځل لمونځ کول وړباندي فرض دي. (فتاوی محمودیه ص۲۶۴ج۱۰)

## د سهار له لمانځه ورسته د کتاب مسائل بیانول

**پوښتنه:** د سهار د لمانځه وروسته له دعاء نه مخکې یا وروسته امام صاحب په محراب کې خلکو ته د دین د کتاب ځینې مسائل بیانوي، په داسې حال کې چې خلک یا خو د قرآن تلاوت کوي. یا پړ وظیفه او یا په بل ذکر مصروف وي، او یا ځنې خلک مسبوق او ځینې لاحق وي، هغوی په پاتې لمانځه بوخت وي، نو طبعا هغوی ټولو ته د پریشانی سبب کیدای شي نو په دې اړه شرعي حکم څه دی؟

**جواب:** حامدا و مصليا! عموما په مسلمانانو کې د دین په پوره توګه عملي کیدل او د دین د تعمیم (خپرولو) سره بې رغبتي ډیره زیاته لیدله کیږي، نو د دې مصیبت د لیری کولو پخاطر مسلمانانو ته پکار ده چې یوبل ته د دین د معتبرو کتابونو د مسائلو اورول عادت خپل کړي چې ډیر په زړه پوری عمل دی، ښه داده چې ټول خلک چې په جماعة سره لمونځ وکړي، د چا څخه که یو یا دوه رکعته پاتې وي؛ هغه دې پوره کړي له هغه وروسته دې د کتاب مسائلې د امام او یا بل چا له لوری بیان کړی شي. او نور دې په غور سره واوري او زده دې کړي، دغه وخت که څوک د قرآن تلاوت کوی نو په بل وخت کې ئې هم کولای شي، ښه داده چې تلاوت پریږدي او د دیني مسئلو



زده کړو ته غوږ ونیسی په بل وخت او بل ځای کې داسې خلک سره راجمع کیدای نشي. (فتاوی محمودیه ص۲۶۷ج۱۰)

## له نیمې شپې وروسته د ماخستن لمونځ کول

**مسئله:** د شپې په اخیر کې لمونځ کول صحت لري، مګر بې له عذره دومره ځنډول مکروه دي. (امدادالاحکام ص۴۰۷ج۱)

## په لمانځه کې بسم الله ویل

**مسئله:** امام او منفرد به د هر رکعت په شروع کې یعنی له «سبحانک اللهم» وروسته «بسم الله الرحمن الرحیم» وایی، که جهري لمونځ وي، که سري، او مقتدی به یې نه وایې بسم الله دې هم نه وایې صرف «سبحانک اللهم» دې وایی. ځکه چې د مقتدي لپاره په امام پسې قرائت ویل جائز نه دي.

«بسم الله» او «أعوذ بالله» به له «سبحانک اللهم...» وروسته وایې، که أعوذ بالله هیره او بسم الله وویله شی؛ نو پکار ده چې له هغه وروسته بیا وویله شی. او که چیری بسم الله یې هیره شی او سورة فاتحه شروع کړی بیا دې پسې پوره کړي. بسم الله دې نه وایی، د فاتحې وروسته د سورة په شروع کې بسم الله ویل که څه هم مکروه نه ده. امانه ویل یې ښه دي.

باید وویل شي چې بسم الله نه د سورة فاتحې جزء دی او نه د کوم سورة، البته د قرآنکریم جزء دی. (کتاب الفقه ص۲۰۷ج۱)

## په لمانځه کې قرائت څومره او څنګه ویل پکار دي؟

**مسئله:** په لمانځه کې اوږد قرائت ویل مسنون دی، خو په هغه وخت کې چې امام پوهیږي چې پر مقتدیانو باندی ګران نه تماميږي، که

چیری پر مقتدیانو باندی دروند وی نو اوږد قرائت ویل مکروه دی ،ځکه چې آنحضرت ﷺ یو ځل د سهار لمونځ په معوذتینو سره اداء کړ، وروسته خلکو په حیرانتیا سره وپوښتل چې نن دی څومره مختصر لمونځ وکړ؟ هغه ﷺ وفرمایل: ما د یو ماشوم ژړا واوریدله ،زما اندیښنه شوه چې کیدای شی، مور ئې په جماعة کې شریکه وی، په ازموینت کې به را ایساره شی.

د دې حدیث په مفهوم کې کمزور، ناروغ او حاجتمند ټول شامل دی (کتاب الفقه ۲۱۰ج۱).

**مسئله**: امام ته په لوړ آواز تکبیر ویل سنت دی، خو دومره چې ضرورت ئې وی، تر هغه زیات آواز پورته کول مکروه دی په دې کې د تکبیر تحریمه او نورو هیڅ فرق نشته. (کتاب الفقه ص۲۰۲ج۱)

**مسئله**: په لمانځه کې طوال مفصل (یعنی اوږده سورتونه) له سورة حجرات څخه تر سورة البروج پوری دی، او منځنی سورتونه بیا له «البروج» څخه تر «لم یکن» پوری دی، او کوچنی سورتونه له «لم یکن» څخه بیا تر سورة «الناس» پوری دی. اوږده سورتونه په سهار او ماپښین کې ویل کیږی، (په دی شرط چې پر مقتدیانو ګران تمام نشی) لیکن د ماپښین سورتونه به د سهار تر دی لږ واړه وی، او منځنی سورتونه به د مازیګر او ماخستن په لمونځونو کې ویل کیږی، او واړه سورتونه به په ماښام کې ویل کیږی. (کتاب الفقه ص۲۰۸ج۱)

## امام به په قرائت کې آواز څومره لوړوی؟

سوال: زموږ امام صاحب په ډیر ټیټ آواز سره قرائت کوی، دومره چې د لومړی صف خلک ئی هم په ډیره مشکله اوری؟



جواب: امام باید داسی څوک مقرر کړل شی چې لوړ آواز، ښه لحن، د تجوید مطابق قرائت لوستونکی وی، چې په دومره اندازه لوړ آواز قرائت وویلی شی چې ټول لمونځ کوونکی او یا د جماعة ډیری برخه ئې واوری، خو دا چې دومره آواز ئې نه وی یوازی د لومړی صف ها نژدی خلک ئې اوری، په دې صورت کې لمونځ کیږی صحت، لری. خو پکار داده چې امام داسی نه وی. (فتاوی محمودیه ص۲۳۶ج۲، درمختار ص۴۹۸ج۱، فتاوی دارالعلوم ص۱۷۹ج۲)

## یوازی لمونځ کوونکی (منفرد) به قرائت په څومره لوړ آواز وایی؟

پوښتنه: په سری (خفیه) لمانځه کې څه ډول قرائت ویل پکار دی، دا کافی ده چې حروف صحیح کیدای شی او که څومره اندازه؟

ځواب: احوط قول (د احتیاط وړ خبره) داده چې دومره اندازه باید قرائت وویل شی چې پخپله ئې واوریدلی شی. (فتاوی محمودي ص۲۳۷ج۲)

## د جهر او سر (سوکه او په زوره) تشریح

پوښتنه: که څوک په لمانځه کې په دومره آواز سره قرائت کوی چې څنګلوړی شخص ئې واوری. په دې سره خو په لمانځه کې څه جرح نشته، نو په څومره اندازه جهر او څومره سر بلل کیږی؟

جواب: حامدا ومصلیا: که یو یا دوه سړی ئې په دې شکل واوری نو په لمانځه کې څه خرابی نه راځی او دا جهر نه بلکې سر بلل کیږی، که چیری د امام آواز د لومړی صف خلک عموما واوری نو دا جهر دی (فتاوی محمودیه ص۲۰۲ج۲).

## ضالین، په دوالین ویل څنګه دی؟

سوال: د ضالین پرځای دوالین ویل څنګه دی او په دې سره لمونځ کیږی کنه؟

جواب: د عربو قراء او علماء هم ضالین په داسی شکل اداء کوی چې د مضموم دال آواز ورکوی نو ځکه دا مشکل دی چې وویل شی د دې ټولو لمونځونه صحت نلری، په داسی حال کې چې هغوی اهل عربیة دی: حروفو په اصواتو او مخارجو باندی ښه پوهیږی. (فتاوی دار العلوم ص۳۷ ج۴)

مسئله: کوم سړی چې ضاد په صحیح توګه آداء کولای شی خو پرځای ئې دال وایی، نو د هغه لمونځ صحت نلری. (فتاوی محمودیه ص۱۸۶ ج۲)

مسئله: داچې په لمانځه کې د ضاد پرځای په ظا ویلو سره لمونځ فاسدیږی کنه؟

نو په دې اړه باید وویل شی، چې په قصدی توګه خو دا کار باید قطعاونشی، ځکه چې د دا ډول ویلو په صورت کې د لمانځه د فساد روایت موجود دی، بلکی په شرح فقه اکبر کې له محیط څخه په نقل سره وایی چې تعمد (یعنی همیشه په قصدي توګه ویل) کفر بلل شوی، مګر که ئې اراده د ضاد وی له خپله مخرجه او مشابهت ئې له ظاد یا دال سره راشی نو لمونځ صحیح دی، هیڅ حرج نشته. (فتاوی دار العلوم ص۴۷ ج۴ بحواله شرح فقه اکبر ص۲۰۵، ردالمحتار ص۵۹۲ ج۱، زلة القاری)

مسئله: اصلاً پکار دا ده چې ضاد باید له خپل مخرج څخه اداء کړه شی، که ونه ویلی شی، نو چې څنګه اداء شی لمونځ کیږی، څه باک نلری. (فتاوی دار العلوم ص۹۱ ج۴، فتاوی محمودیه ص۱۳۵ ج۲، ردالمحتار ص۵۹ ج۱)



## په بندو شونډانو قرائت لوستل؟

مسئله: ځینی خلک په لمانځه کې داډول کوی چې شونډان بند کړی او قرائت وایی په زړه کې تصور او فکر کوئ چې په دې توګه د قرائت رکن نه اداء کیږی، د قرائت د آداء کولو لپاره لږترلږه درجه دا ده چې حروف په سمه توګه اداء شی، یائي پخپله اوری او یائې د ده څنګلوری کس اوری. (صغیری ص۱۵۰)

مسئله: قرائت د شونډانو له خوځولو پرته اعتبار نلری.
(فتاوی دار العلوم ص۲۴۰ ج۲ بحواله ردالمحتار ص۴۹۸ ج۱)

مسئله: ښه بهتره او معتبره طریقه دا ده چې په لمانځه کې الحمد شریف او سورة داسی ولوستل شی چې که څه مانع نه وی نو خپل آواز پخپل غوږ سره واوری، او که وانه وری هم لمونځ صحت لری، خو چې توری صحیح آداء شی. (فتاوی دار العلوم ص۵۲ ج۲ بحواله در المحتار ص۴۹۸ ج۱ باب فی القرائت، فتاوی محمودیه ص۱۹۷ ج۲)

(یعنی داسی به ئي هم نه وایی چې شونډان بند کړی، په زړه کې ئی وایی او داسی به هم نه وی چې پرڅنګ خلک ورڅخه تنګ شی، او په لمانځه کې ئی خلل راشی. ـــ محمد رفعت قاسمی غفرله)

مسئله: په لمانځه کې د قرائت مطلب دا دی چې الفاظ به لوستل کیږی، محض په خیال کې ورتیرولو سره لمونځ نه کیږی، ترڅو چې ژبه پر حروفو حرکت ونکړی لمونځ صحت نلری، همدا راز د یو آیة پرځای د هغه معنی ویلو سره هم لمونځ نه صحیح کیږی. (هدایه ص۷۲ ج۱، شرح نقایه ص۸۲ ج۱ شرح وقایه ص۱۴۹ ج۱)

## په کعبه شریفه کې دننه لمونځ کول

څرنګه چې له کعبې شریفې د باندې هغې ته برابر لمونځ کول درست دی همداسې په کعبه مکرمه کې دننه هم لمونځ صحیح دی استقبال القبلة صحیح دی ، که هرلوری ته لمونځ وکړی ، ځکه چې هلته څلور واړه طرفونه قبله ده. مګر که هلته لمونځ یوه طرفته پیل کړی او د لمانځه په دننه کې بل اړخ ته راوګرځي ؛ دا جواز نلری. او څرنګه چې نفل لمونځ کیدلای شي ، دا راز فرض هم جواز لری .(ردالمحتار)

**مسئله :** که څوک د کعبې شریفې پربام ودریږی لمونځ وکړی دا صحت لری ، ځکه چې پرکوم ځای چې کعبه ده ، هغه ځمکه او د هغې محاذي پورته هوا تر آسمانه پوری ټوله قبله بلله کیږی ، قبله یوازی دیوالونو ته نه ویله کیږی ، له همدې وجې ده چې که څوک د لوړ غره پرڅوکه ودریږی او لمونځ وکړی ، نو لمونځ ئې ، بالاتفاق درست دی ، که څه هم د کعبې د دیوالونو پرمحاذات نه وی ، مګر دا چې په دی سره د کعبې مکرمې بې احترامي ده او له دې څخه نبی کریم ﷺ منع فرمایلې ده ، نو ځکه مکروه تحریمی ده.

**مسئله :** په کعبه کې دننه تنها هم لمونځ کول جائز دی او په جماعة سره هم او هلته دا هم شرط نه دی چې د امام او مقتدی به یوه طرف ته وي امام دا شرط ضرور شته چي مقتدي به له امام نه وړاندی نه وی ، نو که مخ په مخ ودریږی هم صحت لری ، ځکه په دې صورت کې مقتدی له امام نه مخکې نه بلل کیږی ، مخکې هغه مهال دی چې مخونه د دواړه یوه لوری ته وی ، مګر دا یوشی دی چې دلته لمونځ



مکروه ګڼل کیږی ، ځکه یو سړی ته مخامخ دریدل لمونځ کول کراهت لری ، لیکن که یو شئ ئې ترمنځ وی بیا کراهت نلری . (درمختار)

**مسئله :** که چیری امام په کعبه مکرمه کې دننه ولاړ وی او مقتدی دباندی ، بیا هم لمونځ صحیح دی ، مګر که یوازی امام دننه وی او کوم مقتدی دننه ورسره نه وی ، یعنی ټول دباندی وی نو لمونځ مکروه کیږی ، ځکه چې په دې صورت کې د امام مقام د یوه قد په اندازه له مقتدیانو څخه پورته دی او دا مکروه دی. (علم الفقه ص۱۵۹ ج۲)

## آیا یوازی فرض لمونځ کافی دی ؟

پوښتنه : که څوک سنت ، نفل او وتر پریږدی ، یوازی فرض آداء کوی دا لمونځ صحیح دی ؟ ځکه چې ځینی خلک دا فکر کوی چې په نننۍ پرمخ تللي عصر کې مصروفیت ډیر زیات وی ، څوک دومره فرصت نشی موندلای چې سنت او نفلو ته وزګار شئ ، اوس هم ځینی خلک داسی دی چې په بهر هیوادونو کې یوازی فرض اداء کوی سنت اونفل هیڅ یادوی لا نه ، که ورته ووایې چې ولې ؟ وایی د انسان نیت مهم دی ، عمل ته څه اړتیا نشته او ترییخی لمانځه پریښودلو دا بهتره ده چې فرض خو اداء شئ نو آیا دا خبره درسته ده که څنګه ؟

جواب : فرض خو فرض دی او وتر واجب دی ، ګویا عملا هغه هم فرض دی ، چې پریښودل ئې لویه ګناه ده. که پر وخت اداء نشی نو قضا ئې لازمه ده ، د سنت مؤکد پریښودل بده خبره ده ، او د هغوی د پریښودلو عادت خپلول هم ګناه ده ، په سنت غیرمؤکده او نوافلو کې اختیار لری چې کوي ئې که پریږدي ئې .

او دا خبره بیا پر خپل ځای ناسمه ده چې په دې عصري دور کې فرصت ډېر کم وي، ځکه چې د خلکو مصروفیت په عبث او حرامو کارونو کې مصروف نه وي نو په ځلورویشت ساعته کې خو اکثره برخه په حرامو، بې کتې او عبثیاتو لګیا وي، نو پکار ده چې د عدیم الفرصتی پر ځای پر لمانځه او عبادة ورو انه چوله شي. که څوک رښتیا هم خوند ور خدمتونه کوي، هغوی بیا د ښه خدمت او ښې حلالي روزۍ ګټلو او تولني ته د پراخ خدمت کولو تر څنګ عبادة ته هم خپل پوره وخت بیلولای شي، په داسې حال کې چې کار او خدمت ته به ئې هم صدمه نه وي رسیدلې، او دغه خلک چې وايي د نه فرصت په وجه عبادة پرېږدي دا هغه خلک دي چې خپل وخت ئې په حرامو، عبث او بې ځایه کارونو کې صرف کړی وي، نه دا چې د تولنې او کورنۍ په روا خدمت کې.

پاتې شوه دا خبره چې د سړي نیت درست پکار دی. دا پر ځای خبره ده، خو له دې خبرې نه بیا دا ځنګه راڅرګنده شوه چې سړی دې هرومرو هرډول خراب عمل کوي، خو نیت دې ئې سم وي ؟! بلکې خبره دا ده چې د نیت تر څنګ د عمل ښه والی هم ضروري دی که عمل خراب وي، نیت هم بیا څه ګټه نلري. (آپ کی مسائل ص۲۳۸ج۲)

## ترنامه لاندې (زیر ناف) وېښتانو نه کمولو په صورت کې د لمانځه حکم

**مسئله:** که څوک د غه وېښتان لرې کوي، نه، لمونځ یې صحت لري. اما دا کار ډېر ناوړه دی. تر ځلوېښت ورځو زیات دغه وېښتان نه لیرې کول مکروه دي. (فتاوی دار العلوم ص۵۰ج۲، عالمګیری مصری ص۳۶۸ج۵)



## روند سړی په لمانځه کې قبلې ته برابرول

**مسئله:** که چیرې یو روند نابینا سړی له قبلې څخه چپ لمونځ کوي او بل څوک ئې د لاس یا ژبې په وسیله قبلې ته سیده کړي، دا سمه ده، په لمانځه کې څه خلل نه راځي. (فتاوی دار العلوم ص۱۰۳ج۴)

یعنې د دې ړانده سړي په لمانځه کې څه خلل نه راځي، او د دا بل سړي (سیده کوونکي) په لمانځه کې که په یوه لاس سره سیده کړی وي نو دا عمل قلیل دی څه حرج نشته، او که ئې په ژبه سره برابر کړی او یا ئې په دواړو لاسونو برابر کړي، نو لمونځ ئې نشته. ځکه خبرې کول او عمل کثیر مفسد صلوة دی، ــ محمد رفعت قاسمي غفرله)

**مسئله:** د لمانځه په حالت کې که پر سړي باندې حیوان یا بل انسان حمله کوي، نو لمونځ به پریږدي او خپله چاره به کوي.

(فتاوی دار العلوم ص۹۹ج۴، رد المحتار ص۵۷۸ج۱)

**مسئله:** که چیرې په لمانځه کې د سړي پر تندي خاورې ولګیږي، په لمانځه کې به ئې نه صفا کوي، وروسته که یې پاکې کړي؛ څه حرج نشته، مګر ښه بیا هم دا ده چې پاکې ئې نکړي تر څو پخپله صاف شي

(فتاوی دار العلوم ص۱۰۲ج۴، غنیة المستملی ص۳۴۵)

## په لمانځه کې وسوسې راتلل او د هغوی علاج

**مسئله:** په لمانځه کې دنیاوي خیالات او وسوسې په ذهن کې د راګرځیدلو په وجه په لمانځه کې فساد نه راځي خو حتی الوسع به د سړي کوشش دا وي چې هغه دفع کړي. (فتاوی دار العلوم ص۵۶ج۴بحواله مشکوة شریف ص۱۸ج۱)

**مسئله:** د دغو وسوسو او شبهاتو د مخنیوي صورت دا دی، چې هغه شیطاني وسوسې، وبولي او هیڅ التفات ورته ونکړي تر پایه

خپله توجه پردې متمرکزه کړې چې هغه وسوسې دفع او د لمانځه د الفاظو اود هغوی معنی ته متوجه واوسی ، چې په حدیث کې ئې هم همدا علاج وارد شوی (فتاوی دارالعلوم ص۱۱۷ج۲، مشکوة شریف ص۱۹ج۱)

**مسئله :** داسې نه ده چې په هر ډول خیالاتو راتلو سره لمونځ ته خلل رسیږی ، که څوک د الله تعالی ادب او احترام سره آداء کړم نو ان شاء الله نه یوازې دا چې په لمانځه کې خلل واقع نه شو ، بلکې په أفضله طریقه لمونځ آداء شوی او هم ئې خیالات پریشانوونکي نه وی.

(فتاوی محمودیه ص۲۰۹ج۲)

## د جماعة په لمانځه کې دسورتونو په اخیر کې مسنونه اذکار ویل ؟

**مسئله :** د سورة الفاتحه نه پرته چې «آمین» ویل پکښې سنت دی ، په ټیټ آواز سره. په نورو سورتونو کې لکه د «بقره» په اخیر کې «آمین» د بنی اسرائیل په اخیر کې «تکبیر» د سورة ملک په اخیر کې «اللهم ربنا ورب العلمین» د «سورة القیامة ، مرسلات او والتین» په اخیر کې مشهوری مسنونې کلمې ، د سورة والضحی څخه نیولې د قرآن تر اخیره پورې د هر سورة په وروسته کې «الله اکبر» ویل ، همدا راز د ځینو آیاتونو په اخیر کې څه مسنون الفاظ ویل د تلاوت په منځ کې ، لکه په سورة طه کې ، «وقل ربی زدنی علما» څخه وروسته حضرت ابن عباس رضی الله عنه «اللهم زدنی علما وایمانا و یقینا» فرمایلې او داسې نور... دغه او دغه ډول نور ټول اذکار د أحنافو په نزد د فرض لمانځه او یا نوافلو په جماعة کې لکه تراویح او نورو ... کې ویل درست نه دی. بلکې په هغه نوافلو کې چې منفرد ئې کوی او یا هغه څوک چې له لمانځه د باندې تلاوت کوی ، هغه لپاره مسنون دی . (فتاوی دارالعلوم ص۲۲۵ج۲)



(یعنی د سورة فاتحه پر ختمید لو په ټیټ اواز آمین ویلی شی اما په نور لمانځه کې دا ډول مسنون الفاظ نه باید وویل شی محمد رفعت قاسمی غفرله)

**مسئله :** د آیاتونو جواب د جمع په لمانځه کې رد کول جائز نه دی ، البته که لمانځه د باندې د آیة جواب ورکول مسنون او مستحب دی ، او له نبی کریم ﷺ څخه هم همدا ثابته ده ، چې د آیاتونو جواب به ئې له لمانځه د باندې ورکاوه ، که کله په لمانځه کې ویلې شوي وی ، نو هغه د تعلیم لپاره وو ، نه د امت لپاره مسنونه طریقه ، او یا د اسلام په شروع کې داسې شوی دی ، چې هغه مهال په لمانځه کې دوسره قیودات نه وو ، مثلا خبرې کیدلای شوي او داسې نور... خو په وروسته کې دا امور ټول منع شوی دی.

(فتاوی دارالعلوم ص۲۵۵ج۲ بحواله مرقاة المفاتیح شرح مشکوة ص۵۳۶ج۱ باب القراءة)

## د سهار په لمانځه کې د قرائت اندازه

**مسئله :** د سهار په لمانځه کې امام ته پکار ده چې ډیر مختصر واړه سورتونه لکه «الم نشرح» ، «والتین» ویل د ځان عادت نه وګرځوی ، دا خلاف سنت او مکروه دی. که څه عذر نه وی نو امام او منفرد دې د سهار په لمانځه کې له سورة الحجرات څخه نیولې تر سورة البروج پورې یو یو سورة په یوه یوه رکعت کې وایی. چې دا مسنون او مستحب طریقه ده ، او یا دې له کوم ځای څخه په منځنی ډول لږ تر لږه څلویښت آیتونه یا یو څه زیات ۵۰ آیتونو څخه تر ۶۰ پورې او ښه بهتره بیا دا ده چې سل آیتونه ولوستل شی ، په دې سلسله کې د امام او مقتدی د همت خیال ساتل پکار دی ، البته که څه عذر وی.

مثلاً وخت تنګ وي او يا بل څه مشکل وي، بيا لنډ او مختصر قرائت
هم ويلای شي، هيڅ حرج نشته. (فتاوی رحيميه ۱۵۵ج۱، کبيری ص۳۰۳ شامی ص۵۰۲)

## د رکعت د نيولو لپاره په منډه ځغستل

سوال: کله چې امام صاحب رکوع ته ځي، نو خلک په دغه وخت کې
د دې لپاره چې شرکت ورسره وکړي او رکعت پيدا کړي؛ په منډه
او په ځغاسته ورځي چې دائي د نورو د لمانځه دخلل سبب کيږي نو دا
شرعاً څنګه دی؟

جواب: دا ډول ځغستل منع دي، که څه هم رکوع ته و نه رسيږي په
حديث شريف کې راځي چې لمانځه ته په منډه نه، بلکې په اطمنان
سره راشئ، که رکعت در څخه تېر شي نو وروسته ئې اداء کړئ.
(مسلم شريف ص۲۲۰ج۱)

له دې پرته په مسجد کې ځغستل د مسجد بې احترامي او بې ادبي
ده، په خاصه توګه چې کله لمونځ کوونکو ته هم تشويش وي، نو له
دې نه ځان ساتل پکار دي، په يو حديث کې راځي: کله چې تاسې
اقامت واورئ نو لمانځه ته په اطمنان سره راځئ، ځغلی مه.
(بخاری ص۸۸ پاره ۲، فتاوی رحيميه ص۱۸۸ج۱)

## لمونځ په څه مهال ماتوی؟

**مسئله**: د لمانځه ماتول کله حرام او کله مستحب وي، کله واجب
او کله مباح وي. که چيرې هيڅ يو عذر نه وي نو لمونځ ماتول حرام دي
، خود جماعة لپاره ئې بيا ماتول مستحب دي، او که چيرې د سړي مال
ضائع کيږي نو د لمانځه ماتول مباح دي، خود ځان د ژغورلو
(ساتنې) په غرض لمونځ ماتول واجب دي. (درمختار ص۶۲۹ج۱)



**مسئله**: که څوک په لمانځه ولاړ وي او مور پلار ئې ورته آواز وکړي،
نو که فرض لمونځ وي نه به ئې ماتوي، که نفل وي او دوي پوهيږي
چې دی په لمانځه ولاړ دی نو بيادې هم نه ماتوي او که مات ئې کړي
نو څه حرج نشته، او که هغوی په دې نه وي خبر چې دی په لمانځه کې
دی نو بيا دې لمونځ ورته پريږدي په دې ګمان چې هغوی ناخوښه
يعنې خفه نشي. (شامی وغيره، علم الفقه ص۱۲۶ج۲)

**مسئله**: په کومو حالاتو کې چې د لمانځه د ماتولو حکم دی او يا ئې
د ماتولو اجازه شته؛ دا په داسې حالت کې نيت ماتيږي چې ولاړ وي
ځکه چې په لمانځه کې کښيناستل هغه مهال وي چې د حلال کيدلو
لپاره وي، او دلته خو لمونځ قطع کيږي، د حلال کيدو خبره نه ده،
نو په همدې وجه دلته په ولاړه د لمانځه د ماتيدلو لپاره يوازې
يو سلام کافي دی، او په امام پسې دې اقتداء وکړي (يعنې خپل
لمونځ دې په ولاړه په يوه سلام ګرځولو سره قطع کړي او په امام پسې
دې اقتداء وکړي او په جماعة کې دې شامل شي). (درمختار ص۶۴۹ج۱)

که څوک تنها فرض لمونځ کوي خو پر څنګ ئې دغه فرض په جماعة
سره پيل شي؟

**مسئله**: دلته د لمانځه ماتول او په جماعة کې شامليدل په دې
صورت کې ده چې هغه د لومړي رکعت سجده تر اوسه کړې نه وي.
يائې کړې وي مګر هغه لمونځ دوه رکعتي وي، لکه د سهار، يادرې
رکعتي وي لکه د ماښام، او که لمونځ څلور رکعتي وي او ده سجده
کړې وي، نو په هغه کې دويم رکعت هم ورسره ضم کړي، نو څه حرج

نشته ، له دې وروسته په امام پسې اقتداء وکړي نو دی به جماعة هم ترلاسه کړي او دوه رکعته نفل ثواب به هم وګټي. (درمختار ص۶۲۵ج۱)

د دغې پوړتنۍ مسئلې حاصل او خلاصه دا ده چې کـه يو سړی تنها پر خپل فرض لمانځه ودريږي او لمونځ هم دوه رکعتي يا درې رکعتي وي ؛ په دغه وخت کې ئې تر څنګ جمع ودريږي ، نو اوس که ده سجده بيخي کړې نه وي ، سلام دې وګرځوي ، په جماعة کې دې ګډ شي. خودا په دې شرط چې لمونځ د سهار يا د ماښام وي.

. او که دغه لمونځ چې ده تنها پيل کړی وي ؛ څلور رکعتي وي ، د ماپښين ، يا مازيګر او يا ماخستن وي ، او ده يوه سجده کړې وي، يعنې يو رکعت ئې کړی وي ؛ نو دلته پر ده واجب ده چې يو به بل رکعت هم کوي او بيا به سلام ګرځوي ، په جماعة کې به اشتراک کوي، تر څو دغه دوه رکعته نفل شي او جماعة هم پيدا کړي ، نو د دواړو ثواب به ترلاسه کړي.

او که چيرې ده په هغه دوه رکعتي لکه د سهار يا درې رکعتي لکه د ماښام لمونځ کې د دويم رکعت سجده هم کړې وه ، دلته جماعة شروع شو ، نو دی به اوس خپل لمونځ پوره کوي او له سلام وروسته به په جماعة کې شرکت نه کوي او که ئې چيرې د څلور رکعتي لمانځه درې رکعته کړي وو ؛ دلته جماعة شروع شو ، نو دی به نيت نه ماتوي يعنې هغه خپل لمونځ به نه پريږدي ، پوره کوي به ئې ، بيا وروسته که ئې په امام پسې د نفلو اقتداء کوله ، هغه خپله خوښه ، چې د جماعة ثواب هم حاصل کړي ، البته د مازيګر او سهار په وختونو کې ، به



جماعة کې د نفلو په نيت ګډون نشي کولای ، ځکه چې له سهار او مازيګر وروسته نفل کول مکروه دي. ـ رفعت)

## تر امام وړاند يو رکن اداء کول؟

**مسئله** : که چيرې يو مقتدي په يو رکن کې پر امام باندې سبقت وکړي، مثلاً رکوع ته له امام نه مخکې ولاړ شي او مخکې تر هغه راپورته شي او دا رکن بيا ورسره اداء نکړي او يا ئې له امام سره سلام ونه ګرځوي نو لمونځ ئې باطل دی ، که دغه سبقت ئې قصداً کړی وي او که په هيره سره په هر صورت لمونځ ئې نه کيږي ، او که ئې چيرې دغه رکن بيرته له امام سره اداء کړ او له امام سره ئې يو ځای سلام وګرځاوه ؛ نو لمونځ ئې نه دی باطل. (کتاب الفقه ص۲۹۲ج۱)

**مسئله** : که چيرې يو مقتدي د لمانځه له ختميدلو نه مخکې سلام قصداً وګرځوي لمونځ ئې باطل دی. او که ئې داګمان وي چې لمونځ خو دا دی پوره شو په دې هيره کې ئې سلام وګرځاوه ، بيايې لمونځ باطل نه دی. تر څو چې له سلام وروسته عمل کثير او يا خبرې ونکړي. (يعنې بيرته ورسره ګډ شي). (کتاب الفقه ص۲۹۵ج۱)

## امام که د چا په مراعت قرائت اوږد کړي؟

**مسئله** : که چيرې امام قصداً په دې نيت چې هغه څوک په جماعة کې ورسره شريک شي ؛ قرائت اوږد کړي نو دا مکروه تحريمي دی. (په دې شرط چې هغه سړی پيژندوی وي ) او که ئې پيژندی نه ؛ نو بيا مکروه تنزيهي دی. (فتاوی دارالعلوم ص۱۱۵ج۴بحواله ردالمحتار- ص۲۶۲ج۱)

## په لمانځه کې سترګی بندول

**مسئله** : په لمانځه کې سترګي بندول مکروه دی ؛ مګر د څه مصلحت پخاطر پټول صحیح دی مثلاً له داسې یو شي څخه سترګی پټول چې انسان په غفلت کې اچوی ، دا راز په لمانځه کې د آسمان طرف ته کتل هم مکروه دي.

آنحضرت ﷺ فرمایي: د لمانځه په حالت کې چې څوک سترګی پورته کړي او د آسمان پر لوری ګوري نو د سترګو بصارت (دید-لیدل) یې له منځه ځي یا یې سترګي ړندیږي. (بروایت بخاری - کتاب الفقه ص۴۳۷ج۱ ، آپ کی مسائل ص۲۱۷ج۳)

**مسئله** : د خشوع او عاجزۍ پخاطر سترګي بندول بلاکراهت درست ، بلکه اولی دی . (فتاوی دارالعلوم ص۱۰۹ج۴ ، ردالمحتار ص۶۰۵ج۱ ، فتاوی رحیمیه ص۲۱۸ج۲)

**مسئله** : د سترګو له اپریشن (عملیات) کولو وروسته که د سجدې او رکوع په حالت کې رښتیا ناقابل برداشت تکلیف زسیږي یا سترګو ته نقصان کوی ؛ نو په داسې صورت کې په ناسته لمونځ کولای شي سجده او رکوع دې د سر په اشاره سره وکړي. په سجده کې به د رکوع په نسبت لږ زیات ټیټیږي. (فتاوی رحیمیه ص۲۲۱ج۲)

**په هغه خونه کې چې تصویر او یا داور بلید لو ځای وي؛ لمونځ کول څنګه دی ؟**

**مسئله** : تناره او یا هغه ځای ته چې اور پکې بلیږي ؛ مخامخ دریدل لمونځ مکروه دی. ځکه چې دا د مجوسیانو له عبادت سره مشابهت راځي. (کتاب الفقه ص۴۲۸ج۱)

(که چیرې بل ځای نه وی نو بیا مجبوري ده ، لمونځ یې کیږي - محمدرفعت)



**مسئله** : د ذیروح تصویر په وړاندې لمونځ کول مکروه دی. هغه ته 19
که توجه ور اوړي او که نه هرچیرې چې وي ، یعنی که یې پر سر راځوړند وي ، که یې مخکې وي ، که شاته ، که ښي اړخ یا کیڼ ته وي ؛ مطلب دا چې نهایت زیات کراهت لري. خو په ټولو کې بیا هغه چې مخ ته راځوړند وي ؛ زیات کراهت لري. په هرصورت په کوم ځای کې چې تصویر موجود وي هلته لمونځ کول مکروه دی. مګر که داسې وړوکی تصویر وي چې که سړی ښه په غور ورته ونه ګوري ، اعضاوي یې نشي محسوسولای. د غیر ذیروح شي تصویر که هرڅومره جالب او جاذب وي ، لمونځ ورسره صحیح دی. (کتاب الفقه ص۴۳۹ج۱)

## د قبر په وړاندې لمونځ کول

**مسئله** : که د لمونځ کوونکي په وړاندې قبر وي ، لمونځ یې مکروه دی. مطلب دا چې څوک پر لمانځه ولاړ وي په ښه خشوع او خضوع سره او سترګی یې پر قبر ولګیږي. که چیرې قبر شاته وي یا یوه او بل اړخ ته وي ، او یا پورته وي او یا په داسې ځای کې چې هغه د لمانځه ترځای کښته وي نو په دې اړه تحقیق دا دی چې دلته بیا هیڅ کراهت نشته ، باید وویل شي چې دا کراهت په هغه صورت کې راځي چې په مقبره یا قبرستان کې د لمانځه لپاره کوم مخصوص ځای داسې نه وي چې هغه له ناپاکۍ څخه پاک وي. که داسې وي نو بیا لمونځ مکروه نه دی مګر د انبیاء کرام علیهم السلام مقبرې له دې څخه مستثنی دي. ځکه چې هلته که قبر مخامخ وي هم څه حرج نشته ، لمونځ مکروه نه دی.

(کتاب الفقه ص۴۴۰ج۱ ، فتاوی دارالعلوم ص۹۳ج۴ ، ردالمحتار ص۳۵۲ج۱)

## په لمانځه کې غاړې تازه کول

**مسئله** : که څوک په لمانځه کې غاړې تازه کوي په دې شکل چې لرتر لره دوه حروفه ورځنې پیدا شي نو لمونځ يې باطل او له منځه ځي بې ضرورته بايد غاړې تازه نکړای شي ، مګر که د ضرورت په وجه مثلاً د قرائت لپاره د آواز د صفا کولو پخاطر غاړې تازه کړلي شي ترڅو حروف په سمه توګه ادا شي او يا د غاړې تازه کيدلو په وسيله امام ته فتح ورکوي يعنى هغه خپلې غلطۍ ته متوجه کوي. نو بيا په دا ډول صورتونو کې لمونځ نه باطليږي. همدا راز که په طبعي ډول سړي ته ټوخى ورشي او دا هم د ضرورت او يا ناروغۍ لامله وي نو لمونځ نه باطليږي. (کتاب الفقه ص۴۷۸ ج۱ ، هدايه ص۸۷ ج۱ ، کبيري ص۴۴۹)

**مسئله** : د آواز د صفا کولو په وجه غاړې تازه کول لمونځ نه فاسدوي ، که څه هم دوه درې ځله وي. (فتاوی دارالعلوم ص۶۵ ج۴ بحواله ردالمحتار ص۵۷۸ ج۱)

## په لمانځه کې د اودس ماتيدل

**مسئله** : که په لمانځه کې د چا اودس مات شي نو پکار ده چې سمدستي ولاړ شي اودس تازه کړي بى له دې چې خبرې او يا بل عمل ترسره کړي بيرته راشي لمونځ له همغه ځايه پيل کړي چې پرې اينبى يې وو. که څه هم دا له تشهد يعنى التحيات څخه وروسته وي. مګر فقهاء کرام وايي چې لمونځ که څه هم دا ډول صحيح دى خو أفضل او بهتره دا ده چې له سره يې پيل کړي. (نماز مسنون ص۵۴۱، هدايه ص۸۲ ج۱ ، شرح نقايه ص۹۰ ج۱ ، کبيري ص۴۵۲)

**مسئله** : که په لمانځه کې د چا اودس مات شي نو پر پوزه دې لاس ونيسي او دباندې دې د اوداسه لپاره راووزي. که چيرې دې خپله



امام وي نو د دې ترشا ولاړ يو مقتدي دې د ځان خليفه (نائب) کړي چې هغه نور پاتې لمونځ ورکړي. (هدايه ص۸۲ ج۱ ، شرح نقايه ص۹۰ ج۱ ، کبيري ص۴۳۵)

**مسئله** : که په لمانځه کې د چا اودس مات شي او ترشا ئي نابالغ هلک يا ښځه ولاړه وي. نو لمونځ ئى فاسديږي ځکه چې هلک او ښځه د دې قابليت او صلاحيت نلري چې خليفه يا نائب دې کړي. (شرح وقايه ص۱۶۲ ج۱)

## په لمانځه کې قهقه (په زوره خندا) کول ؟

**مسئله** : بالغ سړى که په لمانځه کې په قهقهه په زوره سره وخاندي ، لمونځ ئي هم فاسديږي اودس ئي هم ماتيږي. (په هغه لمانځه کې چې رکوع او سجده ولري په زوره خندل ، يعنى دومره په لوړآواز خندل چې پرځنګ خلک ئى هم واوري ، لمونځ او اودس دواړه له مينځه ځي.

محمد رفعت قاسمي غفرله ) هدايه ص۱۴۱ ج۱، شرح نقايه ص۱۲ ج۱، نماز مسنون ص۴۸۶، فتاوی دارالعلوم ص۳۵ ج۴)

**مسئله** : په لمانځه کې په ضحک (سوکه خندل) سره صرف لمونځ فاسديږي ، ولى اودس نه ماتيږي ، او په تبسم سره نه لمونځ او نه اودس ماتيږي. (شرح نقايه ص۱۲ ج۱، کبيري ص۱۴۲، درمختار ص۵۷۶ ج۱، آپ کی مسائل ص۳۱۹ ج۳)

ضحک هغې خندا ته ويل کيږي چې پخپله ئې واوري او بل څنګلوري ئې وانه وري ، او تبسم بيا هغې مسکا ته ويل کيږي چې آواز ئې نه پخپله واوري او نه ئې بل څوک واوري. (ژباړن)

## په لمانځه کې دستر لڅيدل

**مسئله** : که چيرې د لمانځه په دوران کې ستر يعنى د بدن هغه برخه چې پټيدل ئي ضروري وي ، څلورمه برخه ئي پرته له خپل لاسى عمله لوڅه شي ، مثلاً د تيزې هوا (باد) لامله ئي د بدن څخه جامه ليرې شي

اوتر دومره وخته پورې همداسې لوڅ پاتې وي چې یو رکن اداء کیدای شي ؛ نو لمونځ فاسدیږي لیکن که دغومره برخه یا ترديې هم کمه په قصدي توګه یعنې پخپل لاسې عمل لوڅه شي، نو لمونځ فورا فاسدیږي دا شرط نه دی چې د یو رکن د آداء کیدلو په اندازه که لوڅ پاتې وي بیا فاسدیږي ، لکه په نژدې پورتني صورت کې.

**مسئله** : که چیرې مخکې د غومره برخه لوڅه وي او په دغه حالت کې لمونځ پیل شي ، نو ګویا له سره لمونځ درست نه دی ، نیت تړل شوی نه دی. (کتاب الفقه ص۲۰۲ج۱)

**مسئله** : که چیرې مستوره برخه په لمانځه کې لڅه شي ؛ او سمدستي بیرته پټه کې تأخیر کې رانشي ، نو لمونځ صحیح دی ، فاسدیږي نه. (فتاوی دارالعلوم ص۳۵ج۴، غنیة المستملی ص۱۲۳)

**مسئله** : د نارینه وو لپاره په دې کې څه حرج نشته چې جامه ئې په بدن پسې چسپه وي ، دومره چې مستور ځایونه پکې له ورایه څرګنده وي.

**مسئله** : ستر پټول له خپل ځان نه ، ضروري نه ده ، که چیرې څوک په لمانځه کې د خپل ځان مستور ځایونه ووینې ، نو لمونځ ئې باطل نه دی ، که څه هم داکار کراهت لري. (کتاب الفقه ص۱۰۴ج۱)

**مسئله** : د کم عمره ماشومانو لپاره ستر نشته ، که هلک وي که نجلۍ، کم عمره ماشوم هغه دی چې عمر ئې له څلورو کالو او یا له هغه څخه هم کم وي ، نو د داسې ماشوم جسم لیدل او مسح کول مباح دي ، له دې عمر څخه پورته ترڅو چې په لیدلو کتلو ئې د سړي په ذهن کې ناوړه خیال نه راګرځي تر هغه مهاله ئې ستر صرف شاو مخ



شرمګاه ده ، مګر که هغه بیا داسې ځای ته ورسیږي چې په لیدلو کتلو ئې د سړي ذهن ته ناوړه خیال ورځي نو بیائې ستر د بالغ نارینه اوښځې غوندې دی که په لمانځه کې وي ، که دباندې وي.

(کتاب الفقه ص۲۰۸ج۱)

## د څراغ یا شمعې په وړاندې لمونځ کول

**مسئله** : که څراغ یا شمعه په مسجد کې مخ ته پراته وي او خلک جمع ورته کوي ، لکه په عامو مساجدو کې چې د محراب ترڅنګ اېښودل کیږي ، په دې سره په لمانځه کې څه خرابي نه راځي ، خو که یوه یا بل څنګ او یا شاته وي نو بیخي د پوښتنې ځای نشته ، یعنې بلکل صحیح دی. (فتاوی محمودیه ص۲۵۲ج۱۰، درمختار ص۴۳۸ج۱)

**مسئله** : که چیرې ئې دا یقین وي چې قبله صحیح ده ، نو په تیاره کې لمونځ منع نه دی. (فتاوی محمودیه ص۲۵۷ج۱۰)

**مسئله** : مار، لړم او داسې نور ضرري خزندې په لمانځه کې وژل جائز دي. (شرح نقایه ص۹۶ج۱، کبیری ص۳۵۴)

## که د سهار په لمانځه کې لمر راوخیژي ؟

**مسئله** : د سهار په لمانځه کې که له نیت تړلو وروسته او یا له یوه رکعت کولو څخه وروسته لمر راوخیژي نو لمونځ نه آداء کیږي ، بیا به ئې بیرته راګرځوي ، همدا رنګه که په جماعة کې وي نو د ټولو لمونځ فوت شو ، وروسته به ئې بیرته په جماعة سره ټول راګرځوي.

(فتاوی محمودیه ص۲۷۴ج۱۰)

**مسئله** : د لمر راختلو پر مهال لمونځ کول صحت نلري ، که عینا په لمانځه کې لمر راوخیژي ، نو لمونځ به پر همغه ځای پریږدي ، کله چې

لمرښه راپورته شی نو قضاء به ئي راوګرځوی ، خوکه وخت تنګ وی یعنی لمرختلو ته لږشیبې پاتی وی ، نودې خپل لمونځ تنهاوکړی ، د جمع انتظاردی نه کوی. (فتاوی محمودیه ص۲۶۱ج۱۰)

## د لمرراختلو وروسته ، به د قضاء راوړلو لپاره څومره انتظار کوی ؟

**مسئله** : کله چې لمر راختل پیل شی نو په ۲ دقیقې او ۲۴ ثانیې کې په پوره ډول راپورته کیږی بیا قریبا ۲۰ دقیقې وروسته لمرداسی کیږی چې ورته کتل مشکل و ، یعنی بلکل سپین شی ، ژړوالی ئي ختم شی ، نودغه مهال د اشراق وخت پیل کیږی.

(فتاوی محمودیه ص۲۵۸ج۱۰) له دې وروسته بس قضائي لمونځ کولای شی ـ محمد رفعت)

**مسئله** : د عین زوال پر وخت یعنی د استواء پرمهال تکنده غرمه د قرآنکریم تلاوت صحي دی. خونوافل اونور د امام صاحب په نزد ناجائز دی. (فتاوی دارالعلوم ص۷۲ج۲بحواله ردالمحتار ص۲۴۲ج۱)

## د ماښام لمونځ ترڅه وخته پوری اداء کیدلای شی . ؟

**مسئله** : له لمر لویدو وروسته چې د اسمان پر افق باندی کومه سر خې وې هغې ته شفق وایې نوتر کومه وخته چې پر افق باندې دغه سر خې موجوده وی (او دا تقریبا تر یو ساعت زیات وکم پورې وی تر هغه وخته پورې دماښام لمونځ کیدای شې په عوامو کې داخبره مشهوره ده چې لږتیاره شې ، وایی دماښام لمونځ ختم دی اوس ماخوستن دی داخبره غلطه ده خودماښام په لمانځه کې قصداً تاخیر مکرو ه دی لیکن که د څه ضرو رت یا مجبورۍ په وجه وځنډیږې نو د شفق تر لویدو مخکې مخکې باید اداء شې کنه نو بیا قضاء ده او قصداً د لمانځه قضاء کیدل ګناه کبیره ده. (آپ کی مسائل ص۱۰۸ج۲)



## له غټو نوکانو سره لمونځ کول

**مسئله** : د لمانځه حکم دادی که د نوکانو په دننه کې داسې شی وې چې لاندی اوبه نه پریږدی نو نه اودس کیږې او نه لمونځ ، اوکه چیرې نوکان غټ وې خودننه صاف وې اوبه په اسانې ورتلای شې نو لمونځ صحیح دی. (آپ کی مسائل ص۱۸۲ج۳)

## دنامسلمان په کور کې لمونځ کول

**مسئله** : ځمکه که خرابه شې نوله وچیدلو وروسته د لمانځه لپاره پاکه ده لمونځ ورباندی صحیح دی نو همدارنګه د یو نامسلمان په کور کې که خالې ځمکه که څه هم خرابه شوې وې خوله وچیدلو وروسته لمونځ وربانديې صحیح دی خوکه کالی وربانديې واچول شې نو دا بیاډیرښه دی.(آپ کی مسائل ص۱۸۵ج۳)

## د بډې (رشوة) خوړونکې د لمانځه حکم

**مسئله** : کوم سړی چې له خپلې مزدورۍ تنخواپرته په پټه یا ښکاره رشوت خورې د هغه لمونځ قبلیږې او ثواب هم ورته ملاویږې مګر د رشوت لویه ګناه بیاجدا ده هغه وربانديې شته. (فتاوی دارالعلوم ص۲۲ج۲)

## د ګونګې سړی د لمانځه حکم

**مسئله** : مورزاده ګونګی کوڼ سړی چې قرائت نه شې لوستلی نو قرائت وربانديې فرض نه دی نور چې د لمانځه ارکان دی ټول به د نورو خلګو په څیر اداء کوې که دومره پوهیږې چې لمونځ فرض دی او د اداء کولو توان یې هم لرې بیایی هم نه کوی نو ګناهګار دی په ګناه کبیره اخته دی. (فتاوی محمودیه ص۲۱۷ج۲ ،بحواله شامی ص۳۶۳ج۱)

## که د لمونځ کونکي په وړاندې د روضې مبارکې تصویر وي

سوال : که چیرې د لمونځ په حالت کې د مدینې منورې نقشه چې په هغه کې د رسول کریم صلی الله علیه وسلم د مزار تصویر وي یعنی د مزار گنبده وي په لمانځه کې خو څه خرابي نه راځي ؟

جواب : د درمختار ( ص ۹۴۵ ج ۱ ) څخه معلومیږي چې که څه هم د قبر په وړاندې لمونځ مکروه دی لیکن د قبر د نقشې یا تصویر په مخامخ لمونځ کولو کې څه حرج نشته ځکه چې د دې نه پرستش شوی دی او نه یې کیږي البته که چیرې دیوه قوم داسې رسم رواج وی نو بیا په دې صورت کې کراهت لري. (امدادالفتاوی ص۲۴۰ ج۱)

## په لمانځه کې د نبي کریم ﷺ د نامه په اوریدو سره درود ویل

پوښتنه : که چیرې امام په لمانځه کې دا ایة ووایي (ومامحمدالا رسول الله) او کوم مقتدي په دې فکر چې د نبي کریم ﷺ له نامه سره باید درود وویل شي ، درود ووایي په لمانځه کې خو به څه خرابي نه راځي ؟

جواب : د مقتدي دا خیال خو بالکل صحیح دی چې د آنحضرت ﷺ د نوم په اوریدو سره درود شریف ووایي حتی په احادیثو کې د دې ډیر تاکید او تائید راغلی دی مگر د حکم د لمانځه څخه د باندې دی په لمانځه کې نه دی نو که چیرې څوک همداسې وکړي لمونځ یې فاسدیږي .

دا راز که څوک د الله تعالی د نوم په اوریدو سره ﷻ ووایي هم یې لمونځ فاسدیږي همدا رنگه دې ته ورته په نورو الفاظو کې هم همدا حکم دی لکه «صدق الله العلی العظیم» ویل او داسې نور ځکه



چې په دې کې جواب ورکول ملحوظ وي او په جواب ورکولو سره لمونځ فاسد کیږي او که چیرې په غیر ارادي توگه یې له خولې نه درود شریف ووزي ، بیا لمونځ نه فاسدیږي ځکه چې درود شریف داسې یو شی نه دی چې په لمانځه کې بیځې دا الفاظ شته نه بلکې دا خو په لمانځه کې مستقل ویل کیږي نو په همدې اساس په ناڅاپي ویلو سره لمونځ نه فاسدوي او په قصدي توگه چې وویل شي لمونځ فاسدیږي. (فتاوی محموديه ص۱۲۷ ج۲)

## که څوک د سهار لمونځ اداء کړي او وروسته بیا پر خپلو کالو منې وویني

مسئله : که چاته په شپه کې احتلام ور پیښ شي ،ولې سهار ور په یاد نه شي لمونځ وکړي بیا غرمه هغه نجاست ووینې نو که د سهار څخه وروسته ویده شوی نه وي نو بیا د سهار لمونځ راگرزول ور باندې لازم دي. (فتاوی محموديه ص۱۳۶ ج۲)

## تر لمانځه وروسته له صف څخه لږ شاته کیدل

سوال : ډیر وخت داسې وي چې ځینې خلک له نورو سره یو ځای په جماعت کې پر څنگ ودریږي خو له سلام گرزولو وروسته سمدستي شاته کیږي ادباً مثلاً لکه طالب العلمان د استاذانو تر څنگ په جماعت کې و دریږي بیا د ادب په خاطر ورځینې شاته کیږي دا څنگه عمل دی ؟

جواب : حامداً ومصلیاً : که برابر ورسره کښیني هم څه حرج نشته او که ادباً ورځینې شاته سي هم څه خبره نشته دا دواړه صحت لري نه دا د اصرار شی دی نه د انکار. (فتاوی محموديه ص۲۱۱ ج۲)

مسئله: د جماعت په اختتام کې له صف څخه جدا قبلې ته مخامخ کښيني اوتسبيح وايي چې کله يې پوره کړې بياله امام سره په دوعاکې شريک شي نو په دې کې هيڅ حرج نشته نه هم منافق دی نه هم ګناهګار، دا عمل درست دی. (فتاوی محموديه ص۲۵۹ ج۲)

## څلورويشت ساعته ليونځونو ته يوه ځغلنده کتنه فرض لمونځونه

دا لمونځونه په شپه او ورځ کې ۱۵ رکعته د جمعې په ورځ وي او په نورو ورځو کې ۱۷ رکعته دي ۲ رکعته سهار، ۴ رکعته ماپښين، ۴ رکعته مازيګر ۳ رکعته ماښام ۴ رکعته ماخوستن، دا لمونځونه فرض عين دي او د جنازې لمونځ فرض کفايه ده.

## واجب لمونځونه

د شريعت له پلوه ۳ لمونځونه واجب دي وتر او د اخترونو لمونځونه، وتر ۳ رکعته دي هره ورځ د ماخوستن له لمانځه وروسته.

او د اخترونو دوه دوه رکعته په ټول کال کې يو يو ځل پر دې برسيره کوم لمونځونه چې نذر کړل شوي وي هغه هم واجب دي او همدارنګه هر نفل له شروع کيدلو وروسته واجب ګرزي يعني د هغوی پوره کيدل ضروري دي او د فساد په صورت کې يې قضاء لازمه وي.

## سنت لمونځونه

د سهار له فرضو څخه وړاندې ۲ رکعته د ماپښين مهال ۶ رکعته څلور مخکې ۲ وروسته تر فرضو ماښام مهال دوه رکعته له فرضو وروسته همدارنګه ماخوستن هم دوه رکعته له فرضو وروسته دا راز د تهجد لمونځ تحية المسجد. اوتراويح لمونځ ۲۰ رکعته، دا حرام لمونځ، دکسوف لمونځ دوه رکغته، دخوف لمونځ دوه رکعته.



## مستحب لمونځونه

له وترو څخه وروسته دوه رکعته، د اوداسه دوه رکعته د سفر لمونځ ۲ رکعته د توبې لمونځ دوه رکعته د قتل لمونځ دوه رکعته.

د تهجد لمونځ: د تهجد لمونځ سنت دی نبي کريم ﷺ به هميشه اداء کوی او خپلو صحابه کرامو ته به يې ډير ترغيب ورکاوی د دې ډير فضائل په احاديثو کې وارد دي.

نبي کريم ﷺ فرمايلي چې د فرض لمانځه وروسته غټه مرتبه د تهجد د لمانځه ده. (مسلم) ځينو فقهاؤو دې لمانځه ته مستحب ويلي دی مګر صحيح خبره داده چې دا لمونځ سنت دی صوفيه کرام فرمايي چې هيڅ شخص د تهجد له لمانځه پرته د ولايت مقام ته نه شي رسيدای په دې کې شک نشته چې دغه لمونځ د امت د ټولو نيکو او صالحو بندګانو يو معمول دی له صحابه کرامو څخه رانيولې بياتر دې وخته پورې بلکې په يو حديث کې راځي چې د راتلونکې امت وګړي به هم دا لمونځ اداء کوي، د تهجد وخت د ماخوستن له لمانځه وروسته دی، سنت دادی چې سړی د ماخوستن لمونځ اداء کړي بيا ويده شي اوله هغه وروسته بيارا پورته شي د تهجد لمونځ وکړي. (شامی علم الفقه ص۲۳ ج۲)

مسئله: د تهجد وخت له صبح صادق څخه مخکې مخکې ده.

(فتاوی دارالعلوم ص۳۰۲ ج۴ بحواله مشکوة ص۱۰۵ ج۱)

بهتره داده چې تهجد د نيمې شپې نه وروسته اداء شي د تهجد لمونځ لږ تر لږه دوه رکعته او زيات له زيات ۱۰ رکعته منقول شوي دي

او د نبي کريم ﷺ معمول ۸ رکعته وو چې په يوه يوه سلام به يې دوه دوه رکعته اداکول.

د فقهې په ځينو کتابو کې د دې لمانځه (تهجد) ۸ رکعته اخيرنی شمير نقل شوی دی مګر خو له احاديثو څخه څرګنديږي چې نبي کريم ﷺ ۱۰ رکعته هم کړي دي (شيخ عبدالحق دهلوي رحمة الله تعالى عليه په شرح سفر السعادت) کې دا په ډير تفصيل سره بيان کړې دی.

د تهجد لمونځ نيت به داسې وي :

« نويت ان اصلي رکعتی صلوة التهجد سنة النبي ﷺ » مانيت کړی چې د نبي کريم ﷺ پر سنت طريقه د تهجد دوه رکعته لمونځ اداء کړم کله په نيمې شپه کې ، کله له هغه هم مخکې اوياکله يو څه وروسته به د تهجد لپاره راپورته کيږي اودا دعاء به د ځان معمول ګرځوي په داسې حال کې چې دواړه لاسونه به پر مخ راتيروی تر څو د خوب اثر ورځني ليری شي او دعاء داسې ده: «الحمدلله الذي احيانا بعد ما اماتنا واليه النشور» د الله تعالى شکر او حمد دی چې زه يې له مرينې (خوب ) وروسته بيا را ژوندی (ويښ ) کړم او هغه ذات ته بيرته زموږ د ټولو بيرته ورتله دی له دې پر ته نورې هم ډيرې دعاګانې شته چې له نبي کريم ﷺ څخه منقولې دي. (سفر السعادت)

له دې وروسته به مسواک وهی. په مسواک کې مبالغه کول د آنحضرت ﷺ عادت ؤ له مسواکه وروسته به يې اودس تازه کوی په ځينو رواياتو کې راځي چې د مسواک يا اوداسه پر مهال يا ځينې وايي تر دی لږ مخکې به يې پورته د آسمان پر لورې کتل او د سورة آل



عمران ورستې ۱۰ آيتونه چې له « انّ في خلق السموات والأرض » څخه به تلاوة کاوو ، او په ځينو رواياتو کې « ربنا ماخلقت هذا باطلاً » څخه بيا تر «انک لا تخلف الميعاد» پورې به يې تلاوت کاوه له دې وروسته به يې لمونځ پيل کاوو د لمانځه په اداينه کې د هغه ﷺ عادات بيلابيل وو کله به يې شپږ رکعته لمونځ کاوه اوله هر و دوو رکعتونو ورسته به ويده کيده . له راپورته کيدو وروسته به يې بيا هغه ډول مسواک او اودس تازه کاوه او آياتونه به يې تلاوت کول د نبی کريم ﷺ عادت اکثر ۸ رکعته وو له همدې امله فقهاؤ ۸ رکعته غوره کړي دي وتر به نبی کريم ﷺ له تهجد وروسته کول ، او کله چې به د سهار وخت نژدې ؤ نو د سهار سنت به يې هم ور پسې کول ، بيا به د يوه ساعتکي لپاره ويده کيده او بيا به راپاڅيدی د سهار فرض لمونځ به يې اداء کوی.

(علم الفقه ص۴۴ ج ۱ ، قران کريم المزمل پ۲۹ ، بخاري ص ۱۵۳ ج ۱ کتاب الفقه ص ۵۳۱ ج۱).

پوښتنه : چې څوک تهجد ګزار وی هغه د تهجد پر وخت وتر کوی ، که چيرې څوک مخکې لا د ماخستن پر مهال وتر وکړی په دې کې خو به څه حرج نه وی ځکه چې ځينې خلک وايي چې له وتر لمانځه وروسته تر سهاره بل نفل نشته.

جواب : په دې کې هيڅ حرج نشته څوک چې تهجد ګزار وی هغه هم وتر ماخستن کولای شي بلکې (احوط ) ښه احتياط لا هم داده. بيا که راپورته شي تهجد دی وکړی دا خبره ناسمه بلکې غلطه ده چې وايی له وترو وروسته تر سهاره بل نفل نشته.

(فتاوی دارالعلوم ص ۱۶۵ ج ۴ بحواله ردالمحتار ص ۲۴۲ ج۱)

**مسئله :** تهجد او تراويح له آنحضرت ﷺ څخه ثابت دي په روژه او غير روژه کې ۱۱ رکعته د تهجد سره له وترو دی تر دې زيات نه . يعني اکثراً د هغه مبارک دا عادت وو (فتاوی دارالعلوم ص ۲۵۳ ج ۴)

**مسئله :** څرنګه چې آنحضرت ﷺ اکثراً ۸ رکعته تهجد کاوه او ۳ رکعته وتر ، نو ځکه حنفي فقهاؤ پر ۸ رکعته باندې مواظبت مستحب بللی دی. او که چيرې ګنجايش نه وی نو دوه يا څلور رکعته هم کافي دی. (فتاوی دارالعلوم ص ۳۰۴ ج ۴، شامی ص ۶۴۱ ج ۱)

**مسئله :** که څوک دا نشي کولای چې د شپې په آخير کې تهجد وکړي ، نو دې اول ماخستن له لمانځه وروسته له وترو مخکې يا وروسته د تهجد په نيت وکړي. (فتاوی دارالعلوم ص ۳۰۲ ج ۴)

همدارنګه د تهجد په لمانځه کې په لوړ آواز قرائت ويل مستحب دی . (بحواله ردالمحتار ص ۴۹۸ ج ۱ فصل فی القرائت)

**مسئله :** د تهجد د لمانځه قضاء نشته خو که تر غرمې مخکې وشي ښه خبره ده. (فتاوی دارالعلوم ص ۳۱۱ ج ۴ بحواله مشکوة شريف ص ۱۱۰ ج ۱)

(دا د هغه چالپاره چې کال ۱۲ مياشتې همشه تهجد نه پريږدي نو که يو دورځ ځني پاته شي خفګان دې نه کوی ، تر غرمې مخکې مخکې دې اداء کړې ، کيدای شي هغه پوره ثواب ورته ورسيږي محروم به نه وی. محمد رفعت قاسمي غفرله)

**مسئله :** ځينې خلګ دا ګمان کوی چې له تهجد وروسته ويده کيدل ښه نه دی ، په دې سره دا تهجد له مينځه ځي . په داسې حال چې دا خبره هيڅ اصل او حقيقت نلري ، دا غلطه ده. همدا وجه ده چې ډير خلګ له تهجده په دې وجه محروم شوې دی. چې وايی بيا وروسته



تر سهاره کتبيناستل مشکل دی. او خوب کول منعه ګڼي نو که څوک تهجد وکړي او بيا ويده شي په دې کې هيڅ ډول ممانعت او حرج نشته. (اغلاط العوام ص ۵۷)

مګر دا به يې په ذهن کې وی چې د سهار لمونځ تری قضا نه شي ـ محمد رفعت قاسمي غفرله)

**مسئله :** په صلوة الاوابين ، اشراق ، او ځاښت ټولو کې صرف د نفل نيت کول کافی دی د کوم خاص لمانځه او وخت نوم اخيستل دومره ضروري نه دی که يې ياد کړي بهتره ده . (فتاوی دارالعلوم ص ۲۰۹ ج ۳)

## د شکرانې د لمانځه طريقه

**مسئله :** کوم وخت چې يو ستر نعمت سړی ته ورسيږي او يا غټ مصيبت ور څخه زايل شي ، نو بهتره داده چې په بدل کې يې لږ تر لږه دوه رکعته لمونځ اداکړي. که دا نه وی نو يو ه سجده د شکر هم مستحب ده مګر دا سجده له لمانځه وروسته لګول مکروه او ممنوع ده ځکه چې ناخبره خلګ پر هغه باندی واجب يا سنت اعتقاد کوی. (فتاوی محموديه ص ۱۲۵ ج ۱)

**مسئله :** د شکرانې د لمانځه نه وخت معلوم دی نه رکعتونه البته په مکروه وختونو کې به نه وی او تر دوه رکعته به کم نه وی.

## د ځاښت لمونځ

د ځاښت لمونځ مستحب دی که څلور رکعته کوي که تر څلور زيات ، له نبي کريم ﷺ څخه څلور او تر څلور زيات دواړه منقول دی د طبراني په يوه روايت کې ۱۲ رکعته پورې منقول شويدی. (مراقی الفلاح)

د څاښت وخت له هغه پیل کیږي چې لمر ښه راپورته شي او بیا تر زوال لږ مخته (مراقی الفلاح)

د څاښت لمونځ به په دې نیت اداء کوي « نویت ان اصلي اربع رکعات صلوة الفجر سنة النبي ﷺ »

ترجمه : نیت می کړی چې څلور رکعته لمونځ د څاښت په سنت طریقه د نبي کریم ﷺ اداء کړم. تر دې ځایه چې د کومو لمونځونو یادونه وشوه دا هغه لمونځونه وو چې نبی کریم ﷺ په التزام سره کول او هیڅکله به یې نه پریښول او پاتی نور لمونځونه چې به نبې کریم ﷺ اداء کول د هغوی لپاره به څه خاصه وجه او سبب وو. مثلاً تحیة المسجد به یې هغه وخت چې مسجد ته به تلی اداء کول دا راز خسوف او کسوف لمونځونه به یې بیا چې لمر یا سپوږمی تندر ونیول کاوو به یې دغه رنګه نور ټول پاتې لمونځونه.

د هغه چالپاره چې د ثواب او اجر هیله من او خواهشمند وی ، هغه ته پکار ده چې له یوه قوی عذره پرته دې دغه لمونځونه نه پریږدی که سړی سم فکر وکړی نو دا څه ګرانه خبره هم نه ده په یوه شپه او ورځ کې ټول ټال لمونځونه ۴۲ رکعته کیږي : ۱۷ رکعته فرض ۳ رکعته وتر ۱۲ رکعته مؤکد سنتونه چې له پنځو لمونځو فرضو سره یو ځای اداء کیږي ۸ رکعته د تهجد لمونځ ۴ رکعته د څاښت لمونځ مګر خو د افسوس خبره دا ده چې موږ له کم همتی او کمزوری څخه خپل فرض لمونځونه نشو اداء کولای هغه راته ګران وی الله تعالی فرمایی: « وَإِنَّهَا لَكَبِيرَةٌ إِلَّا عَلَى الْخَاشِعِينَ (۴۵) الَّذِينَ يَظُنُّونَ أَنَّهُم مُّلَاقُو رَبِّهِمْ »



ترجمه : بې شکه لمونځ کول ډیر ګران وی مګر نه هغو کسانو ته چې خدای ﷻ ته په ورتلو یې کلک یقین وی ) نو ددی کمزوری او سستی اصلي وجه دا کیدای شي چې موږ اصلاً پر دې کلک او پوخ یقین نلرو چې قیامت راتلونکې ، حساب کتاب شته ، او ثواب عقاب به وی اعوذبالله من جمیع ماکره الله ...

**مسئله** : د اشراق د لمانځه پوره او مکمل ثواب هغه چاته رسیږي چې د سهار فرض لمونځ په مسجد کې په جماعت سره اداء کړی او یایې د څه عذر له امله په کور کې اداء کړي او د همدې لمانځه پرځای ناست په ذکر باندی مشغول واوسي تر هغو چې کله مکروه وخت ووزي بیا دوه یا څلور رکعته اداء کړی. (فتاوی رحیمیه ص۱۷ ج۳)

تحیة المسجد : دا لمونځ د هغه چا لپاره سنت دی چې و مسجد ته ورداخل شي. (درمختار وغیره)

له دې لمانځه نه مقصود د مسجد تعظیم دی چې په حقیقت کې دا د الله تعالی تعظیم بلل کیږي ځکه چې د مکان تعظیم د هغه د خاوند له امله کیږي . نو دلته دا اشتباه هیڅ نه رامینځ ته کیږي چې د نفس مکان تعظیم پکې غرض وی ، نو چې کله څوک مسجد ته ورشي ، که مکروه وخت نه وی نو تر کښیناستلو مخکې دی دوه رکعته لمونځ وکړی. (درمختار بحرالرائق شامی وغیره)

او که مکروه وخت وی نو بیا دی صرف دغه کلمات څلور ځله ووایی « سبحان الله والحمد لله ولا اله الا الله » اوله دې وروسته به کوم درود شریف ولولي. (درمختار ،مراقی الفلاح)

د دې لمانځه نيت په دې ډول دی « نويت ان اصلی رکعتن تحية المسجد» ما اراده کړی چې دوه رکعته لمونځ تحية المسجد اداء کړم ) دوه رکعته ضروري نه دی که څلور اداء کړی هم څه حرج نشته او که چيري مسجد ته له راتلو سره سم په خپل فرض لمانځه پيل وکړی نو هغه فرض د تحية المسجد ځای هم نيسي او يادا رنګه سنت وکړی هغه هم تحية المسجد کيدای شي يعنې په دی تو ګه د تحية المسجد ثواب هم ترلاسه کولای شي که څه هم نيت د تحبة المسجد نه وی شوی. (درمختار، مراقی الفلاح شامی وغيره)

که چيری څوک مسجد ته داخل شي نو بهتره خبره دا ده چې سمدستي تر کښيناستلو مخکې تحية المسجذ اداء کړی، خو که لږ شيبې کښينې بيايې وروسته وکړی هم څه حرج نشته (در مختار وغيره) نبي کريم ﷺ فرمايي چې: کله په تاسو کې څوک مسجد ته ځي نو تر څو چې مو دوه رکعته لمونځ نه وی کړی نه دی کښينې. ( صحيح البخاري، صحيح مسلم)

که چيرې په لږ وخت کې څو ځله سرې مسجد ته ورشي نو يو ځل تحية المسجد کافی دی که په اول ځل يې وکړی او که په اخير کې.
(در مختار، شامی علم الفقه ص ٥٣٧ ج ١) فتاوی دارالعلوم ص ٢٢٦ ج ٢، ردالمحتار ٦٣٥ ج ١، فتاوی رحيميه ص ٢٢٦ ج ١)

د اوداسه سنت: مخکې تر دې چې د اوداسه د لوندوالې څخه لا وچ شوی نه وی دوه رکعته لمونځ کول مستحب دی. (در مختار، مراقی الفلاح) که څلو ر رکعته وکړی هم څه حرج نشته او که فرض يا سنت وکړی هم د دی مستحب لمانځه ثواب موندلای شي. (مراقی الفلاح، علم الفقه ص ٤٥ ج ٢)

مسئله: ښځې هم تحية الوضوء کولای شي. (آپ کی مسائل ص ٨١ ج ٣)



نبی کريم ﷺ فرمايی: څوک چې په ښه توګه اودس تازه کړی بيا دوه رکعته نفل د زړه له اخلاصه وکړی د هغه لپاره جنت واجب دی (صحيح مسلم) نبی کريم ﷺ د معراج په شپه په جنت کې دحضرت بلال رضی الله تعالی عنه د تلو اواز واوريدی، سهار يې له هغه نه وپوښتل چې ته کوم داسې يو نيک کار کوی چې پرون ماپه جنت کې تر خپل مخ ستاد تللو اواز واوريدی ؟! حضرت بلال رضی الله عنه عرض وکړ چې يارسول الله ! زه چې کله اودس وکړم نو دوه رکعته لمونځ کوم (بخاري) دغسل کولو نه وروسته هم دغه دوه رکعته سنت دي ځکه چې له هر غسل سره يو ځای اودس هم ضرور کيږي. (ردالمحتار علم الفقه ص ٤٦ ج ٢، کتاب الفقه ص ٥٣٠ ج ١)

د سفر لمونځ: کله چې يو څوک له خپل وطن څخه سفر کوی نو ده ته مستحب داده چې دوه رکعته لمونځ وکړی او بيا سفر پيل کړی. کله چې بيرته له سفر څخه راستون شي نو هم مستحب دا ده چې لومړی مسجد ته ولاړ شي، دوه رکعته لمونځ وکړی بيا وروسته کورته ولاړ شي (درمختا روغيره) نبي کريم ﷺ فرمايي: څوک چې په سفر ځی؛ تر دې بل هيڅ ښه شی خپل کور نشی پريښودلی، لکه دوه رکعته لمونځ چې وکړی دسفر د پيل پر مهال. (طبراني) نبی کريم ﷺ چې به کله له سفر څخه تشريف راووړ نو لمړی به مسجد ته تلی او دوه رکعته لمونځ به يې کاوه. (صحيح مسلم)

مسافر ته دا هم مستحب دی چې په سفر کې چې کوم ابادۍ ته ورسيږي او هلته يې د څه وخت لپاره دقيام (اوسيدلو) خيال وی، نو مخکې تر دې چې کښينې او دوه رکعته لمونځ دې ادا ء کړی.
(شامی غيره) علم الفقه ص ٤٦ کتاب الفقه ص ٥٣٠ ج ١ مسائل سفر)

د استخارې لمونځ : کله چې چاته کوم کار ورپیښ شي د هغه په کولو او نه کولو کې متردد وي نو ده ته په کار ده چې دوه رکعته د استخارې لمونځ وکړي ،له هغه وروسته چې یې پر کوم لوري رغبت وي پر هغه باندې دې پریکړه وکړي . (درمختار ،مراقی الفلاح)

بهتره داده چې تر ۷ ځله تکرار ولو وروسته بیا خپل کار پیل کړي یعني ۷ ځله دې د استخارې لمونځ وکړي (شامی ،مراقی الفلاح)

نبي کریم ﷺ به د استخارې د لمانځه په تعلیم کې داسې اهتمام کاوه لکه د قران کریم په تعلیم کې چې بې کاوه. (بخاری ،ترمذی وغیره)

د استخارې لمونځ به په دې نیت سره شروع کړي : « نویت ان اصلی رکعتی صلوة الاستخارة » نیت مې کړی چې دوه رکعته د استخارې لمونځ اداکړم ، بیا دې له دستور سره سم خپل دوه رکعته لمونځ وکړي او دا دعاء دې وکړي:

« اللهم اني استخیرک بعلمک واستقدرک بقدرتک وأسئلک من فضلک العظیم فانک تقدر ولاأقدر وتعلم ولاأعلم وأنت علام الغیوب ـ اللهم ان کنت تعلم ان هذا الامر خیرلی فی دینی ومعاشی وعاقبة امری وعاجله واجله فأقدره لی ویسره لی ثم بارک لی فیه وان کنت تعلم ان هذا الامر شرلی فی دینی ومعاشی وعاقبة امری وعاجله واجله فاصرفه عنی واصرفنی عنه واقدرلی الخیر حیث کان ثم رضینی به . »

کله چې دعاء کوی نو د ـ هذا الامر ـ پر ځای دې خپل مقصد او حاجت ذکر کړي ،مثلاً که یې د سفر اراده وي نو وایي به چې هذا السفر او که یې د نکاح اراده وي وایي به هذا النکاح او که یې د کوم شئ اخیستل او خرڅول وي نو وایي دې هذا البیع همداسې نور...



ځینې علماء وایي چې له دعاء وروسته دې په اودا سه سره قبلې ته مخامخ ویده شي که په خوب کې سپینو الی یا زرغون والی وویني نو دې پوه شي چې دا کار خیر دی او که تور والی یا سور والی وویني نو دې پوه شي چې دا کار بد دی کول یې په کار نه دي (شامی) که د کوم ضرورت له امله یې لمونځ نه شو کولای مثلاً بیړه یې وي یا ښځه د حیض یا نفاس په حالت کې وي نو بیادې صرف دعاء وکړي او په کار دې پیل وکړي. (طحطاوی وغیره)

مستحب دا دی چې تر دعاء مخکې د الله تعالی تعریف او حمد او پر نبی کریم ﷺ درود شریف هم ولولي

(علم الفقه ص ۴۷ حجة الله البالغة ص ۱۹ ، بخاري ص ۱۰۰ ،ترمذی ص ۹۰،کتاب الفقه ص ۵۳۱ ج ۱)

که چیرې یې په یوه ورځ کې درک معلوم نشي نو درې یا اووه ۷ ورځې دې دا عمل تکرار کړي نو نتیجه به یې معلومه شي ان شاءالله

محمد رفعت قاسمي.

د حاجت لمونځ : که چاته کله کوم کار ورپیښ شي که له الله تعالی ځخه دغه حاجت بلاواسطه وي او که په واسطه سره وي.یعني د یو بنده ځخه د حاجت پوره کول مقصود وي مثلاً څوک د یوې وظیفې هیله مند وي څوک له کومې ښځې سره نکاح او یا داسې نور ... نو هغه ته مستحب داده چې دوه رکعته لمونځ وکړي درود شریف دې وایي او د الله تعالی تعریف وکړي او بیا دا دعاء ولولي : « لااله الاالله الحلیم الکریم سبحان الله رب العرش العظیم الحمدلله رب العلمین أسئلک موجبات رحمتک وعزائم مغفرتک والغنیمة من کل بر والسلامة من کل اثم لاتدع لی ذنباالاغفرته ولاحاجة لک فیها رضی الاقضیتها یاأرحم الراحمین . »

له دې دعاء وروسته چې کوم حاجت يې په زړه کې وي له الله تعالی څخه به د هغه غوښتنه وکړي دا لمونځ د حاجت پوره کولو لپاره مجرب دی ډيرو بزرګانو په همدې طريقه سره له الله تعالی څخه خپل حاجتونه پوره کړي دي. (شامی)

يو ځل د نبی کريم ﷺ په خدمت کې يو ړوند سړی حاضر شو چې يارسول الله زما لپاره دعاء وکړه چې الله تعالی ما روغ کړي.

نبی کريم ﷺ ورته وفرمايل: که ته صبر وکړې ډير زيات ثواب به دې وي او که ته وايې چې زه درته دعاء وکړم؟

د هغه خواهش داوو چې ته راته دعاء وکړه. نو نبی کريم ﷺ ورته دغه لمونځ په دې طريقې سره وښودی. (علم الفقه ص۲۸ ج ۲، کتاب الفقه ص ۵۳۲ ج ۱)

صلوة الاوابين: د اوابين لمونځ مستحب دی نبی کريم ﷺ د دې ډير زيات فضائل بيان کړي دي د اوابين لمونځ د ماښام د لمانځه وروسته په درې سلامه ۶ رکعته لمونځ کول په کار دي.

(مراقی الفلاح، علم الفقه ص ۲۸ ج ۲، ترمذی ص ۸۹، ابن ماجه ص ۹۸)

صلوة التسبيح: صلوة التسبيح مستحب لمونځ دی چې ډير ثواب او فضيلت يې په احاديثو کې ډير زيات ذکر شوی دی دغه لمونځ نبی کريم ﷺ حضرت عباس رضی الله تعالی عنه ته وربښودلی دی او فرمائلي: ای کا! د دې لمانځه په کولو سره د انسان ټول ګناهونه معاف کيږي، تير شوي او راتلونکي نوي اوزاړه، که تاسو کولای شئ نو په ورځ کې يې يو ځل کوئ که دا هم نشئ کولای نو په اونۍ (هفته) کې يې يو ځل کوئ او که نه نو په مياشت کې يې يو ځل کوئ



اوکه دا هم بيخی نشی کولای نو په ټول عمر کې يې يو ځل خو ضروري کړئ. (ترمذی)

له حضرت ابن عباس رضی الله تعالی عنهما وپوښتل شول چې د دی لمانځه لپاره تاته کوم خاص سورة هم ياد دی؟ هغوی وويل: هو: « الهکم التکاثر، والعصر، قل يايها الکافرون، قل هوالله احد » صلوة التسبيح له نبی کريم ﷺ څخه ۴ رکعته منقول شوی دی، بهتره داده چې څلور واړه رکعتونه په يوه سلام سره اداء شي خو که په دوو سره وشی هم صحت لري په هر رکعت کې به ۷۵ واره تسبيح وايی، په ټول لمانځه کې ۳۰۰ ځله کيږي. د صلوة التسبيح د اداء کولو طريقه داسې ده:

لمړی به نيت وکړي: « نويت ان اصلي اربع رکعات صلوة التسبيح » نيت مي کړی چې څلور رکعته صلوة التسبيح اداء کړم، وروسې به تکبير تحريمه ووايی لاس به تر نامه لاندې بند کړي او سبحانك اللهم به ووايی بيا به ۱۵ واره « سبحان الله والحمدلله ولااله الا الله والله اکبر» بيا به أعوذ بالله او بسم الله ووايی له هغه وروسته به سورة فاتحه او بل سورة ولولي. له دې وروسته به بيا ۱۰ ځله همغه تسبيح ووايی، په رکوع کې، بيا به له رکوع راپورته شي له سمع الله لمن حمده ويلو وروسته به ۱۰ واره بيا همغه تسبيح ووايی، او سجدې ته به ولاړ شي هلته به په دواړو سجدو کې له سبحان ربی الاعلی وروسته لس لس واره هغه تسبيح ووايی او بيا به په دوهم رکعت کې له الحمدلله څخه مخکې ۱۵ ځله او له فاتحې او سورة وروسته به لس واره هغه تسبيح وايی، او په رکوع، قومه، دواړو سجدو او دهغوی په مينځ کې به

لس لس واره همدا تسبیح وایی ، همدا راز په دریم او څلورم رکعت کې بې هم وایی په یو بل روایت کې دا رنګه راغلی دی چې له سبحانك اللهم څخه وروسته به دا تسبیح نه وایی ، بلکې له الحمد او سورة څخه وروسته به یې ۱۵ ځله وایی او له دوهمې سجدې څخه وروسته به کښیني لس ځله به یې ووایی ، همدا راز په دوهم رکعت کې بې هم له الحمد او سورة څخه وروسته لس واره او له تشهد وروسته به یې هم لس واره ، بیا همدا ډول په دریم رکعت کې هم ، په څلورم رکعت کې به یې له درود شریف څخه وروسته لس ځله وایی . او نورې پاتې تسبیحاتې به د دستور سره سم وایی دا دواړې طریقې په ترمیذی شریف کې ذکر شویدی نو د چاخوښه ده چې په دې دواړو طریقو کې هره یوه خوښوی خوښولای ئې شي . خو بهتره دا ده چې کله په یوه روایت او کله په بل روایت عمل وکړی تر څو دواړه روایتونه عملی شي (شامی)

په دې کې چونکه دغه تسبیحات په یوه خاص عدد (شمیر) باندې ویلې کیږی ، یعنی د قیام په حالت کې ۲۵ یا ۱۵ ځله او په نورو حالتونو کې لس لس واره دی ، نو ځکه د دې د شمیرلو اړتیا پیداکیږي نو که چیرې د سړی خیال د دې شمیر نې پرخواشې نو بیا به په لمانځه کې خشوع نه وی نو له همدې امله فقهاء کرامو لیکلی دی : چې ذ هغوی د شمیرلو لپاره دی یوه نښه وټاکې . مثلاً چې یو ځل یې پوره کړی د یوه لاس یوه ګوته دې تینګه کړی ، بیا دې دوهم ، دریم او څلورم همداسې وکړی کله چې شپږم عدد ته ورسیږي نو د دهم لاس پنځمه ګوته دې همداسې یو په بل پسې



تینګه وی تر څو چې پوره لس شې ، خلاصه دا چې په همدې او دې ته ورته طریقې سره دې د تسبیحاتو شیمرنه کوی نه دا چې د ګوتو پر بندونو یې شمیرې داسې نه ده (شامی) او که څوک یې بیا په خپل ذهن کې یاد ساتلی شې ، نو دا بیا نوره هم بهتره ده ، په دې شرط چې ټول ذهن یې هغه ته متوجه نه وی. (شامی)

که په هیره له چا څخه په یوه ځای کې تسبیح پاتې شې نو په دا دویم هغه ځای کې چې ورسره متصل وی پوره دې کړی ، په دې شرط چې دا دوهم مقام داسې نه وی چې په دوه ځله ویلو سره زیات شې او ده دغه زیاتوالی تر مخکنی مقام زیاتوالمنع وی. مثلاً قومه تر رکوع زیاتول. نو به د رکوع پاتې شوی تسبیحات په قومه کې نه اداء کوی بلکې په اوله سجده کې به یې اداء کوی . دا راز د سجدو پاتې شوې تسبیحات به په جلسه یعنی د دوو سجدو تر مینځ نه وایی ځکه بیا جلسه تر سجده زیاتیږې . بلکه په دوهمه سجده کې به یې وایی .

(شامی ، علم الفقه ص ۵۰ ج ۲ ، ابن ماجه ص ۹۹ ، ترمیذی ص ۹۰)

د تفصیل لپاره شب برات او شب قدر رساله وګوره

د توبې لمونځ : له چا څخه چې کومه ګناه صادره شې نو هغه ته مستحب دا ده چې دوه رکعته لمونځ اداء کړی او د خپلې دی ګناه معافي اوبښنه له الله تعالی څخه وغواړې (طحطاوې ، شامی او نور) حضرت صدیق اکبر رضی الله له نبی صلی الله علیه وسلم څخه روایت کوی چې آنحضرت صلی الله علیه وسلم وفرمایل: که چیرې له کوم مسلمان څخه کومه ګناه وشي او له هغه وروسته دی سمدستي اودس تازه کړی ۲ رکعته لمونځ دې اداء کړی او بیا له الله تعالی څخه

مغفرت وغواړی ،نو الله تعالی دهغه ګناه بخښي بیا هغه صلی الله علیه وسلم د سند په توګه دغه آیة مبارک تلاوت کړ: « وَالَّذِينَ إِذَا فَعَلُوا فَاحِشَةً أَوْ ظَلَمُوا أَنْفُسَهُمْ ذَكَرُوا اللهَ فَاسْتَغْفَرُوا لِذُنُوبِهِمْ الاية » د دې آیة مطلب دا دی چې کله یو شخص په کومه ګناه کې مبتلا شی نو دی دې د الله ﷻ په ذکر ځان مشغول کړی او له الله تعالی څخه دې د بخښنې غوښتنه وکړی الله تعالی هغه ور بخښي . چونکه لمونځ هم د الله ﷻ یو عمده ذکر دی نو ځکه له دې آیة څخه همدا لمونځ معلومیږي د قتل لمونځ : کله چې یو مسلمان قتل کیږی نو هغه ته مستحب دا ده چې دوه رکعته لمونځ وکړی او د خپلو ګناهونو مغفرت له الله ﷻ څخه وغواړی ، ترڅو همدا لمونځ یی په دنیا کې اخیري د(کامیابی) یو عمل پاتي وی . (طحطاوي ،مراقی الفلاح ،وغیره).

یو ځل نبی کریم ﷺ له خپلو صحابه کرامو رضی الله تعالی عنهم څخه څو تنه قاریان د قرآن کریم د تعلیم لپاره چیري ولیږل ، په لاره کې د مکې کافرانو هغوی ونیول ،له حضرت خبیب رضی الله عنه څخه پرته یی نور تول ځای پر ځای شهیدان کړل حضرت خبیب رضی الله عنه یی له ځان سره مکې ته بو تلی ،هلته یی په ډیر دردونکي عذاب او ناوړه شکنجو سره په شهادت ورساوه خو مخکې له دې چې هغه شهید کړی ،له کفارو نه یې وغوښتل چې د دوه رکعته لمانځه اجازه ورکړی ،هغه دوه رکعته لمونځ اداء کړ (او بیا شهید کړای شو ) نو له همغه مهاله دغه لمونځ مستحب وګرځیدی. (مشکوة،علم الفقه ص۵۱ ج۲ ،بخاري ص ۴۲۸ ج ۱ ،طحطاوی ص۲۱۹ )



د تراویح لمونځ : د تراویح لمونځ په روژه مبارکه کې مؤکد سنت دی.د نارینه وو لپاره هم او د ښځینه و لپاره هم. (درمختار)

له کومي شپې نه چې د روژې میاشت ولیدله شي ،له همغې شپې دې تراویح پیل کړی او کله چې د اختر میاشت ولیدله شي ،پریږدی به یی ،تراویح د روژې تابع نه دی ،ځوک چې له کومې وجې روژه نه شي نیولای ،پر هغه بیا هم تراویح کول سنت دی ،که یی ونه کړی نود ترک سنت ګناه یی پر ذمه شته. مراقی الفلاح

مسافر او هغه ناروغ چې روژه نه شی نیولای ،دا راز د حیض او یا نفاس لرونکې ښځې که چیرې د تراویح په وخت کې له عذره خلاص شي او یا هغه کافر چې همدا مهال اسلام راوړی ،پر دې تولو باندې د تراویح لمونځ سنت دی که څه هم دی روژه نه وی نیولې . (مراقی الفلاح) د تراویحو وخت د ماخستن له لمانځه وروسته د سهار تر راختلو پورې دوام لري . که ځوک د ماخوستن تر لمانځه وړاندی تراویح وکړي ،دا صحت نه لري ،تراویح نه بللې کیږي. همدا راز که ځوک د ماخوستن د لمانځه نه وروسته تراویح په سنت توګه اداء کړی او بیا وروسته دا څرګنده شي چې په لمانځه کې څه فساد یا غلطي شوې ده او لمونځ راګرزول وربانندی لازمي وی نو لمونځ به راګرزوی او د لمانځه له راګرزولو سره به تراویح هم بیرته راګرځوي. (درمختار وغیره)

وتر تر تراویحو وروسته اداء کول بهتر دی ،خو که مخکې وشی هم څه حرج نشته. (درمختار وغیره ).تراویح د ماخستن له لمانځه وروسته د شپې په لومړۍ برخه یعني تر نیمې شپې مخکې به یی

اداء کوی. له هغه وروسته یې اداء کول مکروه دی. یعني خلاف اولی دی. (طحطاوی، حاشیه مراقی الفلاح)

د تراویحو شل رکعتې لمونځ د صحابه کرامو په اجماع سره ثابت دی. پر هر دوه رکعته به سلام گرزوی چې په ټولو شلو رکعتونو کې لس سلامه کیږي. (درمختار بحرائق وغیره) د تراویحو له هر و څلورو رکعتو وروسته دومره اندازه کښیناستل چې څلور رکعته پکښې اداء کیدای شي مستحب ده. مگر که دومره وخت کښیناستل پر خلگو بوج او د جماعت د کمیدو ویره وي نو بیا به دغومره اندازه نه بلکې لږ شیبه به کښني. د دغې ناستې پر مهال د هر چا خوښه ده که نوافل کوې، که تسبیح وایی او که پټه خوله کښیني په مکه مکرمه کې خلک پر دغه مهال طواف کوی او په مدینه منوره کې څلور رکعته لمونځ کوی. ځینو فقهاء کرامو لیکلي دي چې د ناستې په حالت کې دی دغه لاندی تسبیح وایی:

« سبحان ذی الملک والملکوت سبحان ذی العزة والعظمة والقدرة والکبریاء والجبروت سبحان الملک الحی الذی لا یموت سبوح قدوس ربنا ورب الملائکة والروح لا اله الا الله نستغفر الله ونسئلک الجنة ونعوذ بک من النار». (شامی)

که څوک د ماخستن لمونځ په جماعت سره اداء نه کړي نو دې تراویح هم په جماعت سره نه کوي ځکه چې تراویح د ماخستن تابع دی. مگر هغه څوک چې جماعت ځینې تیر شوی وی، له خلگو سره د تراویحو په جماعت کې شریک شي، نو دده دغه تراویح په جماعت سره صحیح دی. ځکه چې په دې وخت کې دغه کس د خلگو تابع گرزي



.گویا ده هم د ماخستن جماعت ورسره کړیدی. (درمختار، شامی غیره) که چیرې څوک مسجد ته په داسې وخت کې ورشی چې جماعت تیر شوی وی، نو دې خپل فرض اداء کړي او د تراویحو په جماعت کې دی شرکت وکړی، او د تراویحو هغه تیر شوي رکعتونه دې له وترو بعد راو گرزوي. (درمختار)

په میاشت کې یو ځل قرآن کریم په تراویحو کې په ترتیب سره ختمول مؤکد سنت دی. د خلگو د سستی یا کهالی په وجه به یې نه پرېږدي مگر که چیري دا اندیښنه زیاته وي چې د ټول قران په ختمولو به سره به جماعت ډیر کم حتی بیخي خلک نه راځي او که راځي د ډیر به وربانډی گران وی. نو بیا بهتره داده چې چې څومره اندازه پر خلگو گران نه پریوزي، هغومره دې وایی او یا دی له الم ترکیف څخه تر اخیره پورې سورتونه پکښې وایی، په هر رکعت کې دې یو سورة وایی چې کله لس رکعته پوره شي دوهم ځل دې بیا په دې لسو کې هغه سورتونه راغبرگوي.

او یا کوم سورة چې خوښه یې وی وایی دی (درمختار، مراقی الفلاح، شامی، بحرائق، وغیره) تر یو ځل زیات دې قرآنکریم زیات نه وایی. مگر په دې شرط که یې خلک ډیر هیلمند او شوقیان وو په یوه شپه ټول قران کریم ختمول جائز دی، مگر که پر خلگو درونډ تمامیږي نو بیا مکروه دی. په تراویحو کې به دیوه سورة په سر کې بسم الله الرحمن الر حیم یو ځل په لوړ اواز سره وایی ځکه چې بسم الله د قران مجید یو ایت دی، که څه هم دیوه خاص سورة جزء نه دی. نو که دا نه وویله شي د قران یو ایت پاته شو، او دا چې په لوړ اواز به یې وایی ځکه چې

خفیه ویل بیا مقتدیانو له لوري نه اداء کیږي. نوګویا ذهغوی قرآن پوره نه شو تراویح په ټوله روژه کې کول سنت دی که څه هم قران تر هغه مخکې ختم شي. صحیح خبره دا ده چې د تراویحو په هر رکعت کې «قل هوالله» درې درې ځله وایی لکه چې ځینو خلکو عادت ګرزولی دی، دا مکروه دی. د تراویحو نیت به په دی ترتیب سره کوی (نویت ان اصلي رکعتی صلوة التراویح سنة النبی صلی الله علیه وسلم واصحابه) نیت می کړی چې دوه رکعته سنت تراویح اداء کړم پر طریقه دنبی علیه السلام اوصحابه کرامو رضی الله تعالی عنهم تراویح هم د نورو لمونځونو په شان اداء کیږي چې مخکې یې د ادایني طریقی بیان شویدی د تراویح دلمانځه فضیلت اوثواب ډیرزیات دی ځکه چې د روژې په مبارکو شپو کې چې کوم عبادات تر سره کیږي دهغوی فضیلتونه په احادیثو کې ډیر زیات بیان شوی دی. په یوه صحیح حدیث کې راځي چې کوم څوک چې د رمضان المبارک په شپو کې خاص د الله تعالی لپاره په سپیڅلی نیت سره عبادت کوی. د هغه وروسته او مخته ټول ګناهونه الله تعالی و ربخښي. (علم الفقه ص ۵۲ ج ۲ کتاب الفقه ص ۵۲۴ ج ۱، په دی اړه نور تفصیل لپاره دمؤلف مرتب شوې رساله (مکمل ومدلل مسائل تراویح)) وګوری.

د احرام لمونځ: کوم شخص چې دحج کولو اراده یې کړی وی، نو داحرام د تړلو پر مهال هغه ته مستحب ده چې لږ مخکې ۲ رکعته لمونځ وکړی. چې دا سنت دی، (مراقی الفلاح طحطاوی وغیره) د دې لمانځه نیت به داسی کوی؛ نویت ان اصلی رکعتی الاحرام سنة النبی صلی الله علیه وسلم، نیت می کړی چې د احرام دوه رکعته لمونځ وکړم.



## د خسوف او کسوف لمونځ

خسوف د سپوږمی تندر نیولو ته وایی او کسوف د لمر تندر نیولو ته وایی په دې لمانځه کې به قرائت سهوکه وایی. (فتاوی رحیمیه ج ۱ ص ۲۲۶) د کسوف په وخت کې دوه رکعته لمونځ سنت دی، نبی علیه السلا- فرمایی چې خسوف او کسوف دالله تعالی دقدرت دوې نښې دی، چې مقصود ورځني د بندګانو ویرول دی، پس تاسو چې کله هغه ووینی نو لمونځ کوئ

د کسوف او خسوف دلمانځه همغه دنورو لمونځونو طریقه ده. د کسوف لمونځ په جماعت سره هم کیدای شي په دی شرط چې د جمعې امام یا حاکم د وخت یا د هغه نائب امامت وکړی. (مراقی الفلاح وغیره)

د کسوف په لمانځه کې هغه ټول شرطونه معتبر دي چې په جمعه کې دی، پرته له خطبې د دې لمانځه لپاره اذان، اقامت نشته، بلکې که چیري د خلکو راټولول یو ځای کول مطلب وی نو آواز دې ورته وکړل شي. (مراقی لفلاح، طحطاوې وغیره) د کسوف په لمانځه کې غټې سورتونه لکه بقره او داسې نور او همدارنګه په رکوع او سجده کې ځنډ مسنون دی، خو قرائت به په ټیټ (ورو) آواز سره وایی.

(بهشتي زیور ص ۳۷ ج ۲، بحواله شرح التنویر ص ۱۱۲ فتاوی رحیمیه ص ۲۲۶ ج ۱)

له لمانځه وروسته امام ته په کار ده چې په دعاء کې تر هغه پورې مصروف واوسي او مقتدیان به امین امین ورسره وایی تر څو چې لمر له تندر څخه خلاص او بیرته خپل عادي حالت ته راځي مګر داسی وخت وی چې لمر ولویږې اویا د کوم لمانځه وخت راشي، بیا دعاء موقوفه کولای شي. د خسوف په وخت کې دوه رکعته لمونځ سنت دی.

مګر په دی کې جماعت مسنون نه دی. دا راز که بل هر ډول مصیبت او یاغم چاته راځي نو لمونځ کول سنت دی. په داسې حالت کې مثلاً: زلزله راشي تالنده یا تکه راپریوزی ،ستوری ډیر غورزی ،زیاته تیاره شي، ویره خلګوته ډیره پیدا شی ،واوره ډیره واوری ،یا باران زیات شي ،یا یو ه ناروغي په خلګو کې خپره شي .مګر په دې ټولو حالاتو کې چې لمونځ کیږی په جماعت سره به نه وی ،هر څوک به یی په خپل کور کې اداء کوي نبی علیه السلام ته چې به کله کوم مصیبت یا تکلیف رسیده ؛سمدستي به یی ځان په لمانځه باندی مصروف ساته. (مرقی الفلاح وغیره) دلته چې څومره اندازه لمونځونه ذکر شول ،له هغوی پرته نور هر څومره نوافل زیات کیږي ،د ثواب او اجر باعث ګرځي .خصوصاً په هغو وختو کې چې د هغوی فضیلت په احادیثو کې بیان شویدی ،او په هغوی کې نبی کریم ﷺ د عبادة کولو ترغیب ورکړی دی لکه د روژې په اخیره عشره کې د شپې عبادة ،همدا راز د شعبان د ۱۵مې شپې او داسې نور... چې د دې وختونو زیات فضیلتونه وارد شوی او د عبادة یې ډیر ثوابونه او اجرونه یاد شویدی خو موږ دلته په همغه اندازه چې په احادیثو کې یی یادونه شوي ؛ په هغه ډول په تفصیل سره بیان نه کړل.

د استسقاء په اړه باید وویل شي چې تر ټولو بهترین شی توبه ،استغفار ،عجز ،او زاري دی د الله ﷻ په دربار کې .خو که چیرې لمونځ کوی نو بیا ضروري دهٔ چې د ښار یا کلیو ټول لوی او واړه مسلمان له ښاره څخه دباندی په عیدګاه او یا لوید میداني کې سره راجمع شي ،په ښه اخلاص او د زړه له تله استغفار پیل کړی ،توبه

21



وباسي. کله چې ټول خلګ سره یو ځای شي نو دې دوه رکعته لمونځ په جماعت سره اداء کړی. امام به قرائت په جهر سره وایی. له سلام ګرزولو وروسته به خطبه ووایی اوور پسې به بله هغه خطبه ووایی چې د جمعې، په ورځ له اولې خطبې وروسته ویله کیږې .د دواړو خطبو تر منځ به جلسه هم کوی. بیا به په ګډه دعاء وکړی .قلب رداء به یواځې امام کوی مقتدی به یی نه کوی یعنی مقتدیان به خپل څادرونه نه اړوي . (ابوداؤد ،زادالمعاد ،حصن حصین)

د استسقاء په باره کې چې له نبی کریم ﷺ څخه کومې دعاګانې منقول شوی ؛له هغوی نه یوه دا ده: « اللّهم اسقينا غيثاً مغيثاً نافعا غير ضار عاجلا غير عاجل اللهم اسق عبادک وبهائمک وانشر رحمتک واحی بلدک الميت اللهم انت الله لا اله الا انت الغنی ونحن الفقراء انزل علينا الغيث واجعل ما انزلت لنا قوتا وبلاغا الى حين » دا ضروري نه ده چې دعاء به په عربي الفاظو سره وی. که په هر ډول سره یې کولای شي هغسې صحیح ده.

(علم الفقه ص ۵۷ ج ۲ ،هدایه ص ۱۲۱ ج ۱ ،کبیري ص ۴۲۷ ج ۱ ،فتاوی دار العلوم ص ۲۳۹ ج ۵ ،مشکوة ص ۱۳۲ ج ۱ ،خطبات ماثوره)

دویري لمونځ :که چیری څوک له دښمن سره مخ شی ، هغه دښمن که یی انسان وی، که حیوان نو په داسی حالت کې څه خلګ یا ټول خلګ پر یوه ځای جماعت نشې کولای ، حتی له خپل سواری څخه د کښته کیدلو مهلت هم نه وی ورته ، نو بیا ټولو ته پکار ده چه هر یو پر خپل سواری په ناسته په اشارې سره لمونځ اداء کړی. استقبال قبله هم د غه وخت شرط نه دی . او که چیری په یوه سواري دوه تنه سپاره وی نو هغوی دې جماعت وکړی. که دا جماعت یی هم نشوی کولای

نو بیا معذور دی. لمونځ دې نه کوی. بیا وروسته د اطمنان په حالت به یې قضاء راوړی او که چیری یو څه اندازه خلک کولای شی چې جماعت وکړی نو هغوی به جماعت نه پرېږدی، که څه هم ټول یې نشی کولای. او هغه لږ خلک به جماعت په دې ډول اداء کوی چې ټول مسلمانان به دوې برخې شی یوه حصه به په سنګرکې د دښمن مقابلې او څارنې ته چمتو وی بله ډله به په امام پسی جماعت ودروی او س که دا لمونځ ۳ درې رکعتي او یا څلور رکعتي وی لکه د ماپښین، مازیګر، ماښام او ماخستن لمونځ. او دا لمونځ کوونکی مسافر هم نه وی یعنی په لمانځه کې قصر نه کوی، نو کله چې امام دوه رکعته وکړی او دریم رکعت ته ولاړ شی نو دغه حصه خلک دې ولاړ شی. او که ۲ رکعتي لمونځ وی، لکه د سهار، جمعې، اخترونو، لمونځونه او یا د ماپښین، مازیګر، ماخستن لمونځونه د قصر یعنی سفر په حالت کې نو بیا به دغه خلک پر دغه یوه رکعت باندی ځی او هغه نور خلک به راشی، په امام پسی به هغه نور پاتی لمونځ پوره کړی، کله چې دا لمونځ پوره شو، نو یوازی امام به سلام وګرځوی او دا مقتدیان به بیرته د دښمن دمقابلې لپاره سنګر ته وخیژی او هغه مخکني خلک به بیرته راشی، دلته به هغه خپل پاتی لمونځ بې له قرائت پوره کړی ځکه چه دغه خلک لاحق وی. بیا به دغه خلک د دښمن مخی ته ورشی او هغه نور خلک به بیا راشی دلته به خپل پاتی لمونځ په قرائت سره پوره کړی ځکه چه دوی مسبوق دی.

خودا به په یاد لرو چې سنګر ته د تلو راتلو پر مهال به پرسواری نه سپرېږی پیاده (پلی) به ځی، که چیری پرسواري ولاړ شی سنګرته او



یا له هغه ځایه جماعت ته پرسواری باندی راشی، نو لمونځ یې فاسدېږی ځکه چه دا عمل کثیر دی. او عمل کثیر ته یوازی د ډېر اشد ضرورت پر مهال اجازه شته.

که چیری امام په درې رکعتي یا څلور رکعتي لمانځه کې له اولی ډلی خلکو سره یو رکعت او له دوهمی ډلی خلکو دوه یا درې رکعته وکړ نو لمونځ فاسدېږي نه او بهتره دا ده چې دواړې حصې خلک خپل لمونځ له امام یعنی د جماعت پر ځای پوره کړی خو جائز دا هم ده چې هغه وروستی ډله که رانشی او خپل پاتی لمونځ پر همغه ځای پسی تمام کړی. (درمختار، شامی وغیره)

خود نماز خوف (دویری لمونځ) دغه طریقه د هغه چا او هغه مهال لپاره ده چې له یوې خوا ډیر اشد ضرورت وی، د دښمن د برید خطره وی. او بل دا چې خلک ټول غواړی په یوه امام پسی هرومرو لمونځ اداکړی، مګر أفضله او بهتره دا ده چې هره ډله جدا جدا په خپل امام پسی یو ځل لمونځ پوره اداء کړی، هغه ډله ولاړ شی د دښمن جبهې ته بیا هغه بله ډله په بل امام پسی خپل ټول لمونځ پوره وکړی. او که چیری خلکو یو ځل په دې ګمان چې د دښمن څخه ویره زیاته ده، لمونځ یې په همغه پورتنی طریقه اداء کړ، او بیا وروسته دا څرګنده شوه چې د دښمن د حملې خطره نه وه او نه دښمن دومره نژدی و؛ مطلب دا چې ضرورت دومره زیات نه وو چې په دومره اشده طریقه سره دې لمونځ اداء شی، نو بیا پر دوی ټولو باندی د دغه لمانځه راګرځیدل لازمي دی. ځکه چې به دومره عمل کثیره سره لمونځ کول

د ډېر اشد ضرورت له وجې جواز پیدا کولای شي ، کنه نو بیا جائز نه ده. دا ډول خلاف قیاس عمل.

او بل دا چې که چیرې دا جګړه یو ناروا جګړه وي. مثلاً: باغي خلک د مسلمان بادشاه پرخلاف جګړه کوي او یا څه خلک د دنیاوي غرض لپاره له بل چا سره په جګړه وي. نو بیا د دا ډول لمانځه اجازه نشته. بلکې دا یوازې د هغه چا لپاره ده چه مجاهد وي یعنی فی سبیل الله یو مسلمان د کافرو په وړاندې په حقه جهاد کوي او که چیرې یې د دښمن له ویرې او په عین حال کې د هغه ( یعنی دښمن ) د ویرولو په خاطر لمونځ له قبلې چپ بل طرف ته پیل کړی وي. نو په هندې وخت کې دښمن له هغه ځیله ځایه وتښتي او پرشا ولاړ شي ، نو دوی به فوراً خپل مخ قبلې ته ګرځوي که څه هم د لمانځه په هر رکن کې چې وي. که داسې ونکړي نو لمونځ یې فاسد ګرځي.

او که چیرې بالعکس دوی په ښه اطمنان سره قبلې ته لمونځ کوي ، په دغه وخت کې له کومه اړخه دښمن راڅرګند شي او دوی په دې وخت کې دا ضرورت احساس کړي چه مخ باید پر هغه خوا وګرځي چیرې چې دښمن دی. نو دې هغې خوا ته مخ واړوي څه ممانعت نشته ، استقبال قبله دغه وخت شرط نه دی.

که یو څوک په داسې حالت کې وي چه په دریاب کې د لامبو په وهلو سرد پورې وزي او یا یې د پورې وتلو نه ، بل هدف وي خو د لمانځه اخیر وخت راورسید ، نو که ممکنه وي د یو څو شیبو لپاره دې لاس او پښې ودروي او په اشاره سر د دې لمونځ اداء کړي.



**مسئله :** د جمعه د لمانځه نیت به داسې کوي: نیت مې کړی چې دوه رکعته فرض لمونځ د جمعې اداکړم. ښه دا ده چې د جمعې لمونځ په یو ځای ، یوه مسجد کې ټول خلک سره یو ځای اداکړي ، که څه هم په یوه سیمه کې په مختلفو مساجدو کې دغه د جمعې لمونځ جائز دی.

**مسئله :** که څوک په اخیره ناسته کې د التحیات پروخت یا د سجده سهوې کولو وروسته راشي په جماعت کې ورسره شریک شي ، دا شرکت یې صحیح دی. او ده ته پکار ده چې د جمعې دغه پاتې تیر شوی لمونځ وروسته پوره کړي. یعنی دده دوو رکعتو په کولو سره یې له ذمې څخه د ماپښین څلور لیرې کیږي. (بحرالرائق ، درمختار ، علم الفقه ص ۱۵۲ ج ۲)

**مسئله :** د شوال د میاشتې لومړۍ نیټې ته عید الفطر وایي او د ذی الحجه لسم تاریخ ته عید الاضحی وایي ، دا دواړه په اسلام کې د اختر او خوښۍ ورځې وي. په دې دواړو ورځو کې د شکرانې په توګه دوه دوه رکعته لمونځ کول واجب دي. د جمعې د لمانځه لپاره چې کوم شرائط دي ، هغه د اخترونو لپاره هم دي. پرته له خطبې ، د جمعې په لمانځه کې خطبه شرط ده. ولې د اخترونو په لمانځه کې خطبه ویل شرط نه دي. یعنی د جمعې دا فرض او د اخترونو د اسنت ده. په جمعه کې به یې تر لمانځه مخکې وایي او په اخترانو کې وروسته. مګر یه خلګو یې اوریدل د دواړو واجب دي. (علم الفقه ص ۱۵۴ ج ۲) د تفصیل لپاره ( مسایل نماز جمعه ، او مسایل نماز عیدین ) وګوروی.

دعشق لمونځ ځینې خلک داسې یو قسم لمونځ کوي چه په قیام کې غل خله ار به ؛ و مه او جلسه او نورو کې لس لس ځله د الله ﷻ ذکر کوي. او دې ته دعشق لمونځ وایي چې دا په شریعت کې هیڅ

اصل نلری. دا غلط دی. بلکی په طریقت کې هم همغه لمونځ د اعتبار ور دی چې په شریعت سره ثابت وی. او شرعاً جواز ولری. مګر دا د شریعت او سنت خلاف دی. حقیقت نلری. (فتاوی دارالعلوم ص ۲۳۳ ج ۲)

سجده سهوه په لمانځه کې که چیری سنت او مستحبات پریښودل شی نو په لمانځه کې هیڅ ډول خرابي نه راځی. یعنی لمونځ حجت لری. اوکه د لمانځه له فرائضو هم کوم شی په هیره یا قصداً پاتی شی نو لمونځ فاسد یږی

اوبله هیڅ چاره نلری، یوازی دا چی لمونځ له سره را وګرځول شی. همدارازکه چیری دلمانځه له واجباتو څخه یو شی قصداً پریښودل شی. نو دې هم بل څه تدارک نشته. یوازی د لمانځه راګرځول اوکه چیری یو واجب په هیره پریښودل شی، نو بیاد هغه تدارک کیدای شی، هغه دا چې په اخیره ناسته کې به له التحیات وروسته به خپل ښی ارخ ته یو ځل سلام وګرځوی، بیابه (۲) سجدې وکړی اوله هغه وروسته به بیا قعده وکړی، التحیات، درودشریف، او دعاء به د معمول سره سم ووایی اوسلام به وګرځوی. چې دې ته سجده سهو وایی بایدوویل شی چه له نبی کریم ﷺ څخه هیڅکله په دغو شرعی اقوالوکې هیڅ قسم سهوه نه صادره شوی اونه یی تصورکیدای شی. خوکه په افعالوکې یی سهو کړی وی، هغه هم امت ته د تعلیم پخاطرشوی ده. ترڅو د امت خلک د سهوی په اړه مسائل زده کړی. (مظاهرحق ص۲۱ ج ۲)

## دسجده سهوی اصول

مسئله: سجده سهو به په لاندنیو صورتونو کې ترسره کیږی.



(۱) ـ دلمانځه له واجباتو څخه که یو واجب پریښودل شی.

(۲) ـ کوم واجب چې له خپل محل څخه وروسته کړای شی.

(۳) ـ دکوم واجب رکن تاخیراوځنډ په دومره اندازه وشی چې یو رکن اداءکیږی.

(۴) ـ که یو واجب دوه ځله اداء شی.

(۵) ـ که یو واجب له خپل حالت نه متغیر کړل شی. مثلاً: جهری لمونځ په خفیه بدل شی او خفیه په جهري.

(۶) ـ د لمانځه له فرائضو نه یو فرض موخر (وروسته) کړای شی.

(۷) ـ او یاکوم فرض له خپل محل څخه مقدم کړای شی.

(۸) ـ که چیری یو فرض په هیره دوه ځله اداء شی.

(مسائل سجده سهو ص ۶۲، درمختار، ص۶۷۸ ج۱)

مسئله: په خطائي سره په لمانځه کې څه خرابي راشی مثلاً: یو رکعت یا مقدم او بل موخر شی، یارکوع ترقرائت مخکی وشی او یاسجده تر رکوع مخکی شی. یا یو رکن مکرر کړل شی. نو دې د تدارک لپاره پرسړي دوې سجدې لازمیږی چې په اخیره ناسته کې به یې له تشهد وروسته اداء کوی. او بیا به قعده بیرته له سره کوی. (شرح نقایه ص ۱۱۱ ج ۱، کبیری ص ۴۵۵، نمازمسنون ص ۵۱۲)

مسئله: سجده سهو هغه خرابي له منځه وړی چې په لمانځه کې د ترک واجب یا تاخیر واجب له امله رامنځ ته شوي وی. هرڅو مره چې وی، یعنی که یو واجب پاتی شوی وی که ډېر وی. حتی که په لمانځه کې ټول واجب ځنی پاتی شوی وی چې دوې سجدې په اخیره کې د

سهوي په نيت وکړي کفايت کوي. تردوو زياتي سجدې کول مشروعيت نلري.

**مسئله** : له سجده سهوي وروسته التحيات ويل هم واجب دي.

(علم الفقه ص ۱۱۲ ج ۲، درمختار ص ۶۸۱ ج ۱)

**مسئله** : افضل دا دی چې ښي طرف ته سلام وګرځول شی او بیا دوې سجدې ولګولې شی که چیری پرته له سلام ویلو مخ وګرځول شی او یا مخامخ سلام وویل شی پرته له مخ ګرځولو بیا سجدې وشی ، دا صورت هم جواز لري. (علم الفقه ص ۱۱۲ ج ۲)

**مسئله** : که په هیره چادواړو طرفونو ته سلام وګرځاوه ، په دې کې هم څه حرج نشته له هغه وروسته دې دوې سجدې وکړي.

(فتاوی دارالعلوم ص ۳۵۶ ج ۴ ،بحواله درمختار ص ۵۷۵ ج ۱ ،فتاوی رحیمیه ص ۲۴۶ ج ۲)

**مسئله** : که چا په غلطۍ سره لومړی چپ طرف ته سلام وګرځاوه ،او بیایی سجده وکړه ، نو پرده باندی زیاته بله سجده نشته د همدې غلطۍ په وجه. (عالمګیری ص ۶۵ ج ۱) د سجده سهوي لپاره دوې سجدې واجب دي. که چیری یوه سجده وی نو دا کافی نه ده. لمونځ به بیرته راګرځول کیږي. (فتاوی رحیمیه ص ۳۶ ج ۲، بحواله هدایه ص ۱۳۶ ج ۱)

**مسئله** : که چیری امام سجده سهو کړې وی او وروسته یو تن راشی په جماعت کې شرکت وکړي ، نو هغه دې د سلام له ګرځولو وروسته پر هغه نیت او هغه تحریمه دې خپل پاتې لمونځ پوره کړي.

(فتاوی محمودیه ص ۱۸۳ ج ۲ ، طحطاوی ص ۲۵۶ ج ۱)

مسئله : کله چه امام دویم طرف ته سلام ګرځول پیل کړی نو مسبوق (هغه چه یو یا څو رکعته څیني تیر شوي وی) ولاړ دی شی. داسی نه



چې د امام پر اول سلام به لا ولاړ یږی ، ځکه چې کیدای شی پر امام باندی سجده سهو وی. (آپ کی مسایل ص ۲۹۳ ج ۲، فتاوی محمودیه ص ۲۷۰ ج ۱۰ ردالمختار ص ۵۹ ج ۱، فتاوی دارالعلوم ص ۳۹۲ ج ۴)

**مسئله** : که چا یوازی چپ طرف ته سلام وګرځاوه نو بیا دی فقط ښي طرف ته سلام وګرځوی. د دې اړتیا نشته چې بیرته به چپ طرف ته هم سلام ګرځوی. او نه سجده سهوې ته ضرورت شته. لمونځ صحیح دی . (فتاوی رحیمیه ص ۲۴۷ ج ۱، جوهریره ص ۵۵)

## امام ته د فتح ورکولو حکم

**مسئله** : که چیری امام په لمانځه کې خطا شی ،مثلاً کوم آیة وزخنی هیر شی یا یی وروسته وشاته ولولی. نو مقتدی ته جائز ده چې امام په دې خپله غلطۍ پوه کړي. لیکن غرض به یی یوازی د هغه پوهونه وی .نه دا چې قرائت یی مقصود وی. ځکه چه په امام پسی د اقتداء په حال کې مقتدی ته قرائت کول جواز نلري. او دا هم مکروه ده چې مقتدی په دې کې ډېره عاجله کوی. داراز امام ته هم مکروه ده چې د مقتدی د فتح په انتظار وی. هغه ته پکار ده چه له بل سورة څخه ضروری قرائت پوره کړي. او یا رکوع ته ولاړ شی ،په دې شرط چې د قرائت هغه فرض یا واجب مقدار پوره شوی وی. مقتدی که له خپل امام پرته بل چاته مثلاً: د ده غوندی بل مقتدي ته فتح ورکړي دا جواز نلري. په دې سره چې لمونځ باطلیږي. مګر که یی د تلاوت په نیت نه د څه لارښوني په غرض څه ووایی ، لمونځ نه باطلیږي مګر مکروه تحریمي ده. داراز که کوم لمونځ کوونکی د بل لمونځ کوونکي پروینا او لارښوني عمل وکړي ، نو د ده هم لمونځ باطلیږي.

**مسئله** : که چیرې امام د خپل مقتدي فتح قبوله نکړي ، په دې صورت کې د دوی دواړو لمونځ نه خرابیږي صحت لري. د سجده سهوې هم ضرورت نشته. او که یې په غلطۍ سجده سهو وکړه هم لمونځ صحیح دی. (فتاوی دارالعلوم ص۵۰ج۴)

**مسئله** : څرنګه چې په لمانځه کې د غلطۍ په وجه د بل چا په فتح باندې عمل کول و سره لمونځ فاسدیږي ، دا راز د بل هغه چا په خبره عمل کول هم لمونځ فاسده وي ، چې په لمانځه کې نه وي ، مثلاً: په صف کې خالي پاتې وي له بهر نه یو څوک پر لمونځ کوونکي رږغ کړي چې لږ وړاندې شه دا خالي ځای ډک کړه. نو که دی د هغه پر خبره عمل وکړي ،لمونځ یې باطلیږي په داسې حال کې دې دغه لمونځ کوونکی سم ستي د هغه پر خبره عمل نه کوي بلکې یو څو شیبې دې توقف کوي ، بیا لږ وروسته دې پخپله خوښه هغه ځای ته ورنږدې کیږي او خالي ځای دې ډک کوي.

(کتب الفقه ص۲۸۱ج۱، هدایه ص۹۷ج۱، شرح نقایه ص۹۲ج۱، کبیری ص۴۲۰، فتاوی دارالعلوم ص۳۳ج۴)

**مسئله** : که چیرې امام له سورة فاتحې وروسته د ویم سورة د دریو آیاتو نو مقدار ویلي وي، نو بیا د مقتدي د فتح انتظار کول مکروه دي. فوراً به رکوع ته ځي ،او که یې تر دې کم ویلي وي او نور ځني هیر شي نو بیا بهتره دا ده چې له بل ځایه څخه شروع کړي. که یې له بل ځای څخه هم شروع نکړ نو بیا دې مقتدي فتح ورکړي که څه هم لمونځ صحیح دی په هر صورت خو نه امام ته د مقتدي د فتح انتظار پکار د د او نه مقتدي ته بیړه او تلوار.

(فتاوی دارالعلوم ص۱۰۶ج۲، بحواله شامي ص۶۵۰ج۱، فتاوی رحیمیه ص۱۵۵ج۱، فتاوی عالمګیری ص۹۱ج۱)



**مسئله** : په لمانځه کې که چیرې امام ته بې اودسي (حدث) ورپېښ شي نو د مقتدیانو څخه یو تن خلیفه ګرځول درست کار دی ، مګر ضروري نه ده. که چیرې دا عوام خلک په دې مسئله ناخبره وي ، بیا خو یې پرېښودل أفضل کار دی ،لومړی به لمونځ پر دغه ځای قطع کړي په داسې عمل سره چې د لمانځه سره منافي وي. بیا به له اودس څخه وروسته له سره لمونځ شروع کړي. (فتاوی دارالعلوم ص۲۰۱ج۳، ردالمختار ص۵۶۲ج۱)

**مسئله** : که چیرې امام د سجدې په حالت کې وفات شي ، نو هغه لمونځ یې فاسد دی، بل څوک به امام کوي او له نوي سره به جماعت کوي. (فتاوی دارالعلوم ص۷۰ج۴، ردالمختار ص۵۵۳ج۱)

**مسئله** : که چیرې امام د ناپاکۍ یا بې اودسۍ په حالت کې چا ته لمونځ ورکړی وي او بیا وروسته ورپه یاد شي. نو امام ته پکار ده چې حتی الوسع کوشش وکړي تر څو خلک خبر کړي چې د فلاني وخت لمونځ ونشو تاسو یې راو ګرځوئ او که ورپه یاد نشو بیا څه حرج نشته لمونځ یې وشو او که بیا کله ډیر وروسته یو وخت ورپه یاد شو هم پرده ضروري ده چې دا عمل به کوي او د دې غفلت توبه او استغفار به کوي او امام ته پکار ده چه اعاده به یې کوي. (فتاوی دارالعلوم ص۷۷ج۳، فتاوی رحیمیه ص۳۶۴ج۴، شامي ص۵۵۳ج اول، درمختار ص۵۲۵ج۱)

## په لمانځه کې د قرائت د غلطۍ یوه کلیه قاعده

**مسئله** : د لمانځه په قرائت کې د غلطۍ د راتللو په اړه فقهاؤ داسې یوه کلیه قاعده لیکلې ده هغه غلطي د الفاظو چې په معنی کې یې په څرګنده زیات تغیر راځي چې حتی، کفر ورڅخه لازمیږي نو په دې

صورت کې لمونځ هرځای او هر وخت فاسد دی. که له دې آیتونو څخه مخکې دا غلطي وشي او یا وروسته.

بل په قرائت کې هغه ډول غلطي چې صرف د حرف په هیئت کې تغیر راشي مثلاً: زبر، زیر، پیښ، بدل شي او یا تشدید، تخفیف، مد او قصر کې فرق راشي نو په دې صورت کې لمونځ نه فاسدیږي. البته تر دې لږ زیات شي نو لومړی درجې ته ورسیږي، په هغه صورت کې لمونځ فاسد دی.

همدارازکه چیرې د یوې کلمې په یوه حرف کې داسې تغیر راشي چې له خپلې معنی څخه لیرې شي، دلته هم لمونځ فاسدیږي. دارازکه چیرې د یوه حرف پرځای بل حرف وویل شي او معنی بدله شي او بل دا چې د دغو دوو حرفونو ترمنځ په آسانۍ سره فرق کیدلای شو خوده یې فرق ونکړ، یو یې د بل پرځای وو وایه نو بیا فاسدیږي. او که چیرې د دغو دوو تورو ترمنځ توپیر مشکل وو لکه سین، صاد او ضاء، ظا ترمنځ او یا طاء او تاء ترمنځ. اوس که څوک قصداً یې داسې وو وایي نو لمونځ فاسد دی او که بې قصده یې له خولې څخه داسې ووزي یا ځینې داسې ناخبره او جاهل خلک یې وایي چې د دوی ترمنځ په فرق یاندې نه پوهیږي نو بیا لمونځ کیږي، څه مشکل نشته.

همدارنګه که یو څوک چیرې یو لفظ کش کړي او په معنی کې یې تغیر راشي، نو لمونځ فاسدیږي په قرآن شریف کې که بل ځای دغه زائد لفظ وی کنه وی. او که په دې کشولو سره یې په معنی کې تغیر رانشي. لیکن په قرآن کریم کې بل ځای هم دغه لفظ موجود وی نو لمونځ بالاتفاق درست دی. او که چیرې دغه لفظ په قرآن کې نه



ځای نه وی راغلی نو په دې کې اختلاف دی د امام ابویوسف رحمه الله په نزد لمونځ فاسدیږي او د نورو آئمه کرامو په نزد نه فاسدیږي.

په هر صورت په پورتنیو ذکرشویو صورتونو کې د متأخرینو علماؤ په ډیرو ځایونو کې ګنجایش کړی یعنې د آسانۍ لحاظ یې ساتلی دی او لمونځ یې صحیح ګڼلی دی. او متقدمین علماء بیا حکم کوی چې لمونځ به راګرځوی. ځکه چې لمونځ أهم عبادت دی احتیاط ورکې پکار دی. لهذا لمونځ کوونکو ته پکار ده چې په داسې مسائلو کې له احتیاط څخه کار واخلي. او د ضرورت په وخت کې له کوم عالم دین څخه د پوښتنو لپاره رجوع وکړي. (مسایل سجده سهو ص ۴۲ بحواله شامی ص ۴۴۲ فتاوی دارالعلوم ص ۷۲-۷۸ ج ۴ بحواله ردالمختار ص ۵۹۲ ج ۱)

**مسئله**: په قرآن کې چې د متکلم ضمیر «أنا» باثبات الف رسم الخط سره په لمانځه کې وویل شي. نو که څه هم لمونځ صحیح کیږي خو دا لحن غلط دی. (فتاوی دارالعلوم ص ۷۳ ج ۴ بحواله ردالمختار ص ۵۸۹ ج ۱)

**مسئله**: په کومو ځایونو کې چې راء او لام ډک ویل پکار وی، هلته که باریک وویل شي، لمونځ صحیح دی. په لمانځه کې هیڅ خلل نشته.

## لمونځ د ترتیب خلاف اداء کول

**مسئله**: که څوک په نمانځه کې خلاف ترتیب په لومړي رکعت کې هغه سورة وو وایي چې باید په دویم کې لوستل شوی وای، مثلاً: په لومړي رکعت کې «قل یاایها الکافرون» وو وایي او په دویم کې «الم ترکیف» وو وایي. نو که دا په هیره سره وکړي، لمونځ یې بلاکراهت درست او صحیح دی. او که یې قصداً داسې وو وایي نو لمونځ مکروه دی. او که په خطا سره وویل سی نو بیا هیڅ حرج نشته. یعنې په

دوارو صورتونو کې سجده سهو واجب نه ده اولمونځ په هر حال صحیح دی.

(فتاوی دارالعلوم ص۱۱۰ ج۴، فتاوی دارالسلام ص۴۱۹ ج۲، شامی ص۵۱۰ ج۱، فتاوی محمودیه ص۲۲۷ ج۱۰)

**مسئله:** په یوه یوه رکعت کې څو څو سورتونه ویل په فرائضو کې مناسب نه دی. او په نوافلو کې څه حرج نشته.

(طحطاوی ص۱۹۴ ج۱، فتاوی محمودیه ص۱۵۶ ج۲، فتاوی رحیمیه ص۴۶ ج۱)

**مسئله:** که څوک په منځ کې وړه سورة پرېږدي، مثلاً: په اول کې «ارأیت الذی» ووایي بیا «انااعطینک» پرېږدي په دویم رکعت کې «قل یاایهاالکافرون» ووایي نو دا مکروه تنزیهي دی، اما سجده سهو نه واجبیږي. (شامی ص۴۲۵)

**مسئله:** که څوک د قرائت په منځ کې د یوه یا څو الفاظو ترجمه ووایي نو لمونځ یې فاسد دی او په سجده سهو سره نه سمیږي. دوباره به یې راګرځوي. (شامی ص۳۴۰ ج۱)

## په لمانځه کې د تجوید له رعایت کولو پرته قرائت ویل

**مسئله:** که څوک په جهري لمانځه کې په قرائت کې د تجوید خیال نه ساتي، نو سجده سهو پر لازمه نه ده. البته که داسې غلطي وکړي چې په هغه سره په لمانځه کې فساد راځي نو بیا سجده سهو نه بلکې لمونځ له سره راګرځول ضروري دي. (فتاوی دارالعلوم ص۴۱۹ ج۴، عالمګیری ص۶۶ ج۱، ردالمختار ص۹۰ ج۱)

## یو سورة په دوو رکعتونو کې ویل

**مسئله:** که څوک په دوو رکعتو کې یو سورة دوه ځله ولولي، نو سجده سهو نه لازمیږي. (مسایل سجده سهو ص۳۲، شامی ص۵۱۰ ج۱)



**مسئله:** بهتره دا ده چې په هر رکعت کې پوره پوره (کوچنی) سورة وویل شي او که په یوه رکعت کې د یوه سورة څه برخه ولوستله شي نو دا هم جائز ده، مګر بلاضرورة دا ښه نه ده. (عالمګیری ص۷۰ ج۱، فتاوی رحیمیه ص۱۷۷ ج۱)

**مسئله:** په دواړو رکعتونو کې یوه رکوع قرآن مکرر ویل صحیح دی، لمونځ کېږي سجد سهو نه واجبیږي.

(فتاوی دارالعلوم ص۲۰۵ ج۴، فتاوی محمودیه ص۹۵ ج۷)

**مسئله:** که څوک په اول رکعت کې یوه رکوع ووایي او په دویم کې پوره سورة چې تر رکوع غټ نه وي؛ ووایي په دې کې هیڅ کراهت نشته، البته فضیلت په دې کې ده چې پوره سورة وویل شي.

(فتاوی دارالعلوم ص۲۳۵ ج۲، بحواله ردالمختار ص۵۱۰ ج۱)

**مسئله:** په یوه رکعت کې ۲ سورتونه ویل خلاف اولی دی. مګر لمونځ صحیح دی. او له خلاف اولی څخه مراد کراهت تنزیهي دی.

(فتاوی دارالعلوم ص۲۵۵ ج۲، بحواله فتح القدیر ص۲۹۹ ج۱)

## د اوقافو پر نښه باندې دریدل یا نه دریدل

الحمدلله رب العلمین ۞ الرحمن الرحیم (۲) من شر الوسواس الخناس ۞ الذی یوسوس (۳) علی کل شئ قدیر ۞ الذی خلق الموت والحیوة »

که چیرې څوک پر هغه آیة چې د «لا» نښه وي ورباندې، د ساه د ختمیدلو په وجه وقف وکړي او بیا هغه اخیرني توری له راګرځولو نو مخکې شروع کړي، نو په لمانځه کې څه خلل راځي؟ همدارنګه که چیرې په درېیم مثال کې وقف وکړي نو مخکې تکې به بیا داسې شروع کوي چې «الذی» که «نِ الذی»؟

جواب: د علماء پر آیة باندې د ضرورت په وجه وقف کول هیڅ حرج نه دی. او د ماقبل لفظ راګرځول هم ضروري نه دي. په لمانځه کې هم څه خلل نه راځي

که یې راوګرځوي او په دویم مثال کې د «الذي» او «من الذي» دواړو ویل درست دي مګر د وقف په حالت کې به «الذي» وایي. (فتاوی دارالعلوم ص۲۲۷ ج۲)

## په ځینو الفاظو کې دوه قرائته ویل

سوال: په قرآنکریم کې ځینې ځایونه څه واړه حروف لیکل شوي وي مثلاً: بصطة، هم المسیطرون ⊙ علیهم بمصیطر له دې څخه مقصود دادی چې دا لفظ په سین، صاد دواړو سره ویلای شي. یعنی تلاوت کوونکی که سین ووایي او که صاد، لمونځ ور سره صحیح دی. او دا یې مطلب نه دی چې دا الفاظ باید دوه ځله وویل شي، تلاوت کوونکی که د هر قاري اتباع کوي د هغه د قرائت موافق دې وایي.

(فتاوی دارالعلوم ص۲۳۲ ج۲ بحواله جلالین سوره غاشیه ص۴۹۸)

## د واحد صیغه جمع او د جمع صیغه واحد ویل

مسئله: په لمانځه کې د قرائت پروخت واحد د جمع په صیغه او جمع د واحد په صیغه ویل، مثلاً آیة آیات وویل شي. غلطي ده، قصداً داسې کول درست نه دي. او که چیرې په هیره داسې وویل شي، نو لمونځ صحیح دی مګر احتیاط کول ضروري دي. (فتاوی دارالعلوم ص۲۳۲ ج۲ بحواله ردالمحتار ص۵۹۱ ج۱ باب زلة القاري)

## په قرائت کې د سهو مسائل

مسئله: کله ناکله څوک لمونځ کوي، قرائت چه پیل کړي یو څه ووایي هیرئي شي او یا متشابه راشي، نو له بل ځایه او بیایي له بل



ځایه څخه پیل کړي. خو وروسته د وریادیدلو او یا اشتباه په وجه قرائت بیرته بیا له سره پیل کړي نو په دې صورت کې لمونځ کیږي او سجده سهو هم نه لازمیږي. او که بیا سجده هم وکړي نو دا هم درست کار دی. (فتاوی دارالعلوم ص۲۹۳ ج۲، ردالمحتار ص۵۶۰ ج۱، شامي ص۱۸۲ ج۱)

مسئله: که چیرې د جمع په لمانځه کې امام په لومړي رکعت کې سورة الدهر شروع کړ، ترنیمایي ورسید مخکې یې نشو ویلای دوهم ځل دریم ځل یې بیا له سره پیل او پوره یې کړ په دې صورت کې هم لمونځ صحیح دی. او سجد سهو هم نشته. (فتاوی دارالعلوم ص۳۷۲ ج۴)

مسئله: که چیرې واجب مقدار قرائت پوره شوی وي، بیا غلطي وشي په قرائت کې نو سجده سهو نه لازمیږي، مګر که داسې غلطي وي چه مفسد صلوة وي، بیا نو لمونځ راګرځول لازمیږي.

(فتاوی دارالعلوم ص۳۷۸ ج۴)

مسئله: که له چا څخه سورة فاتحه یا بل سورة پاته شي په هیره او بیا د همدې رکعت په رکوع کې او یا له رکوع وروسته ورپه یادشي، نو ده ته پکار ده چه بیرته ولاړ شي فاتحه او سورة ولولي مګر دواړه هیرشوي وي او کنه یو دې ووایي) او په اخیر کې به سجده سهو کړي ځکه چه د رکوع په اداکولو کې تاخیر راغی. او که چیرې په همدې رکعت کې نه بلکې په دویم رکعت کې ورپه یادشي نو بیا په هغه دویم رکعت کې سورة ویلای شي خو فاتحه نشي ویلای ځکه چه بیا په یو هر رکعت کې دوې فاتحې راځي او دا مشروع نه دي. نو په دې صورت کې به هم سجد سهو کوي او لمونځ یې صحت لري.

(علم الفقه ص۱۱۷ ج۲، فتاوی رحیمیه ص۱۵۶ ج۱، شامي ص۶۲۷ ج۱)

**مسئله** : که یو څوک تر فاتحې مخکې سورة ولولي. او دلته ورپه یادشي نو پکار ده چه فاتحه ولولي او دوباره سورة بیا ولولي. او په اخیر کې به سجده سهو هم کوي چه له فاتحې وروسته سورة ویل واجب دي. او دلته عمل خلاف شویدی.

(علم الفقه ص۱۱۷ ج، عالمگیری ص۶۵،فتاوی رحیمیه ص۱۷ ج۱).

## که په لمانځه کې یوازې فاتحه اویا یوازې سورة ولوستل شي

**مسئله** : که چا صرف سورة فاتحه اویا صرف سورة ووایه او رکوع ته ولاړي ، نو په دې دواړو صورتو کې سجده سهو واجب ده.

(درمختار ص۴۲۴ ج۱،فتاوی دارالعلوم ص ۳۱۳ ج ۲)

**مسئله** : که څوک له سورة فاتحې وروسته صرف دوه آیتونه ولولي ،په هیره رکوع ته ولاړشي (نوچونکه واجب مقدارپوره نشو) نو سجده سهو ورباندې لازمه ده. اوکه قصداً داسې وکړي بیابه دوباره له سره لمونځ راګرځوي. (عالمگیری ص۶۵ ج۱،فتاوی دارالعلوم ص۲۰۸ ج۴)

## سورة فاتحه دوه ځله ویل

**مسئله** : که چاد فرض لمانځه په لومړي یادویم رکعت کې په هیره دوه ځله فاتحه وویله یا یې د فاتحې اکثره برخه راوګرځوله ، نو په دې دواړو صورتونو کې سجده سهو واجب ده. اوکه یې چیرې په دریم اویا څلورم رکعت کې دوه ځله وویله ،بیا سجده سهوه نشته او دا یوازې د فرضو خصوصیت دی لیکن د نوافلو په هر رکعت کې داسې وشي سجده سهو واجب دد.



**مسئله** :که چاد فاتحې زیاته برخه وویله لږځینې پاته شوه په هیره نوسجد سهو نشته اوکه یې لږوویله ، اوزیاته پاته شوه ، نوسجده ورباندې واجب ده.(عالمگیری ص۶۵ ج۱،فتاوی رحیمیه ص۱۶۸ ج۱،فتاوی محمودیه ص۱۹۰ ج۷ ص۱۸۵ ج۲)

**مسئله**: تر سورة مخکې « الحمد شریف » ویل واجب ده ، که چیرې د سورة یوه جمله هم تر فاتحې مخکې وویله شي نو سجده سهو لازمه ده .(شرح نقایه ص۱۱۲ ج۱)

**مسئله**: د فرضو لومړي دوه رکعتونه د قرائت لپاره تعین کول واجب دي .(شرح نقایه ص۷۰ ج۱، کبیری ص۲۹۵)

**مسئله**: که په لومړيو رکعتو کې یې تر فاتحې وروسته سورة ونه وایه ،نو په اخیرو دوو رکعتو کې دې له فاتحې وروسته ووایي. او په اخیر کې دې سجده سهو وکړي. (شرح نقایه ص۱۱۲ ج۱)

**مسئله**: که په غلطۍ سره د څلور رکعتي فرض لمانځه په اخیرو دوو رکعتو کې له فاتحې وروسته سورة ووایي ، سجده سهو نشته.

(فتاوی رحیمیه ص۲۲ ج ۳ بحواله درمختار ص۴۲۷ ج۱)

**مسئله** : له فاتحې وروسته که چاد کوم سورة اراده کړې وي ، په غلطۍ سره یې هغه نه بلکې بل سورة ووایه ، لمونځ یې صحیح دی ، سجده سهو لازمه نه ده . (عالمگیری ص۶۵ ج۱)

**مسئله** : که چا یو سورة شروع کړ بیا سمدستي بل سورة ووایي ،نو لمونځ یې صحیح دی سجده سهو نشته ورباندې. (فتاوی دارالعلوم ص۲۷۵ ج۲)

## د « التحیات » پرځای « الحمد » اویا بالعکس ویل

**مسئله** : که څوک د التحیات پرځای فاتحه ووایي اوبیا دستي ورپه یادشي ، التحیات پسې ووایي ، نوسجده سهو نشته ؛ مګرتفصیل

داسې دي چه که څوک د تشهد پرځای فاتحه ولولي یا لومړی فاتحه او بیا تشهد ووایې نو په دواړو صورتو کې سجده سهو لازمیږي او که لومړی تشهد او بیا فاتحه ووایي نو سجده نه واجبیږي.

(فتاوی دارالعلوم ص۴۰۲ ج۴ فتاوی رحیمیه ص۲۲۲ ج۱)

**مسئله:** که څوک په لومړي رکعت کې د «الحمدلله» وروسته «التحیات» ووایي نو سجده وربانذې واجب ده. او که له فاتحې څخه مخکې التحیات ولولي نو بیا سجده نشته. (عالمگیری ص۶۶ ج۱)

## د الحمدلله له ویلو وروسته تر ډیره پورې چپ دریدل

**مسئله:** که څوک الحمدلله ووایي، بیا تر ډیره خاموش ودریږي، دومره چه یو اوږد آیة او یا درې واړه آیتونه لوستل کیږي، بیا وروسته سورة ووایي نو سجده سهو وربانذې لازمه ده.

(فتاوی دارالعلوم ص۳۸۷ ج۴ بحواله ردالمختار ص۶۹۳ ج۱، عالمگیری ص۲۹۳ ج۱)

## په لمانځه کې هغه فعل چه د فرض او یا واجب د تاخیر سبب شي

**مسئله:** که څوک په لمانځه کې داسې عمل ترسره کړي چه د فرضو او یا واجبو ځنډ (تاخیر) سبب وګرځي، نو په دې صورت کې هم سجده سهو واجب ده. مثلاً: (۱)- له سورة فاتحې وروسته څوک دومره چپ ولاړ واوسي چه یو رکن اداکیدای شي. (۲)- یو څوک چه همدومره وخت له قرائت وروسته همدومره خاموش پاته شي. (۳)- یو څوک که له التحیات وروسته په اوله ناسته کې دومره وخت پټه خوله کښیني چه درود شریف او دعاء ویل کیدای شي، په دې ټولو صورتونو کې سجده سهو واجب ده. (علم الفقه ص۱۲۰ ج۲، فتاوی دارالعلوم ص۴۰۱ ج۴، ردالمختار ص۴۲۷ ج۱)



## که د فرضو په اخیري رکعتونو کې هیڅ و نه ویل شي

**مسئله:** که څوک د فرض لمانځه په خالي رکعتو کې یعني په دریم او څلورم رکعت کې، نه سورة فاتحه او نه بل هیڅ ووایي همداسې خاموش پاتې شي، نو سجده سهو وربانذې واجب نه ده. (که څه هم هیڅ شی ونه وایي، لمونځ یې درست دی. - محمد رفعت قاسمي غفرله)

**مسئله:** د څلور رکعتي فرض لمانځه په وروستیو دوو رکعتونو کې د سورة ویلو سړی اختیارلري که یې وایي او کنه! ځکه چه په دې دوو رکعتونو کې پر فاتحه بانذې اکتفاء کول واجب نه دي. چه په زیادت سره یې ترک واجب لازم شي. که څه هم د سورة نه ویل اولی او بهتره ده او سنت هم همداده چه و نه ویل شي. مګر په قعده اولی (اوله ناسته) کې داسې نه ده، ځکه هلته پر تشهد بانذې اکتفاء کول واجب ګڼل شوي، نو که څوک درود شریف او دعاء ورسره ضم کړي، نو په دې سره د واجب ترک لازم شو، بیا سجده سهو لازمیږي.

(فتاوی دارالعلوم ص۳۹۴ ج۴، ص۳۷۵ ج۴، فتاوی محمودیه ص۵۵ ج۱۳)

## د فرض لمانځه په لومړیو رکعتونو کې د سورة هیریدل

**مسئله:** که چیرې د فرض په لومړیو دوو رکعتونو کې له چا څخه سورة پاتې شي نو سجده سهو وربانذې واجب ده. ځکه چه د سورة ضمیدل واجب دي د واجب د ترک په صورت کې سجده لازمه ده.

(فتاوی دارالعلوم ص۳۹۹ ج۴، عالمگیری مصری ص۱۱۸ ج۱)

**مسئله:** که په سنت، نفل یا فرض لمانځه کې په اول رکعت کې له سوره فاتحې وروسته یې سورة هیر شي، او بیا په رکوع او یا له هغه وروسته کې ورپه یاد شي نو راودې ګرځي بیرته دې فاتحه

اوبیا صورت ورسره ضم کړي ، رکوع دې وکړي. ګویا دا صورت
بهتر دی او که داسې ونکړي یعنی را ونه ګرځي نو سجدې ته دې لاړ شي ،
دا هم صحیح دی خو په دې شرط چه په اخیر کې سجده سهو وکړي.
البته سجده سهو په دواړو صورتو کې لازمه ده.

(فتاوی دارالعلوم ص٣٩٨ ج٢ بحواله ردالمختار ص٦٨٣ ج١ ،ص٤٩٩ ج١، امدادالفتاوی ص٣٣١ ج١)

**مسئله** : که څوک رکوع مکرره وکړي او یا درې سجدې وکړي او یا په
څلور رکعتي لمانځه کې له تشهد وروسته درود شریف ووایي چه د
دې په وجه د دریم رکعت په قیام کې تاخیر راشي نو سجده سهو لازمه
ده. (شرح نقایه ص١١١ ج١، کبیری ص٤٥٢)

## په خفیه لمانځه کې په زوره قرائت ویل

**مسئله** : که چیرې په خفیه لمانځه کې لکه ماسپښین او مازیګر،
څوک په لوړ آواز قرائت ووایي او یا په جهري لمانځه کې سوکه قرائت
ووایي نو سجده سهو به کوي. ځکه چې واجب ترک سو. مګر که چیرې
په جهري لمانځه کې ډیر لږ قرائت په زوره وویل شي چه لمونځ صحت
په پیدا کولای شي. مثلاً دوه درې لفظه په لوړ آواز وویل شي نو رکه په
تیټ آواز وویل شي ، هم څه حرج نشته.

(علم الفقه ص١١٨ ج٢، هدایه ص١٠٥ ج١، کبیری ص٤٦٢، شامی ص٢٩٠ ج١، فتاوی رحیمیه ص١٥ ج١)

**مسئله** : که امام په هیره په جهري لمانځه کې سوکه قرائت ووایي او
تر دریو آیتونو وروسته ور په یاد شو او یا هم چا مقتدي فتح ورکړه ،
نو دی به بیرته سورة فاتحه له سره شروع کوي په لوړ آواز به یې وایې
او په آخیر کې به سجده سهو هم کوي.



**مسئله** : که چیرې امام د ماسپښین او یا مازیګر په لمانځه کې په
جهر سره قرائت پیل کړ د دریو آیتونو تر لوستلو وروسته ور په
یاد شو او یا چا فتح ورکړه نو تر کومه ځایه چه رسیدلی دی ، له هغه ځایه
وروسته دې په ورو آواز شروع کړي ، له سره پیل کولو ته یې
اړتیا نشته. (شامی ص٤٩٢ ج١، مسایل سجده سهو ص٣٣)

**مسئله** : که چیرې د ماخستن او یا ماسپښین په دوو اخیرو رکعتو کې په
زوره قرائت وایي نو سجده سهو لازمه ده ځکه چه د ماخستن په لمانځه کې
که څه هم قرائت واجب نه دی خو چه وایي یې بیا واجب داده چه په تیټ آواز
به یې وایي. دا راز د ماسپښین د فرضو اخیری دوه هم همداسې دي.

(فتاوی دارالعلوم ص٣٨٩، ج٢، ص٣٩٠ ج٢، بحواله هدایه ص١٤١ ج١، شامی ٤٩٧ ج١)

**مسئله** : په کوم لمانځه کې چې په جهر قرائت واجب وي ، په هغه کې
د واجب په ترک سره سجده لازمیږي او په کوم لمانځه کې چې جهر
واجب نه وي هلته یې په ترک سره سجده نه لازمیږي مګر د
اخترونو او جمعې په لمونځو کې د سجده سهوی حکم نشته.

(فتاوی دارالعلوم ص٢٠٣ ج٢)

**مسئله** : د امام لپاره دا واجب ده چه د سهار ، ماښام ، ماخستن ،
جمعه او اخترونو په لمونځو کې به په زوره قرائت کوي او همدا
راز صرف د رمضان المبارک په میاشت په وترو کې هم په لوړ آواز ده.
همدارنګه د ماسپښین او مازیګر په لمونځونو کې په خفیه آواز قرائت
ویل واجب ... ي. (هدایه ص٧٢ ج١، شرح نقایه ٨٣ ج١)

**مسئله** : پر منفرد (یعنی تنهالمونځ کوونکې) باندې، که چیرې جهري لمونځ خفیه او خفیه لمونځ په جهر سره اداکړي، سجده سهو واجب نه ده. (عالمگیری ص٨٢،مسایل سجده سهوص ٣٢، درمختارص ٦٨٢ج١)

«والحاصل أن الجهرية لايجب على المنفرد اتفاقاً وانماالخلاف فى وجوب الاخفاء عليه فى السرية، وفى ظاهر الرواية عدم الوجوب كماخرج بذلک فى التاتارخانيه عن المحيط وكذا فى الذخيره وشروح الهدايه كالنهاية والكفاية والعناية ومعراج الدراية وصرحوابان وجوب السهو عليه اذا جهر فيمايخافت فيه وانماهو على الامام فقط.» (شامی ص٤٩٨)

پر امام باندې واجب ده چه په جهري لمانځه کې په جهر سره قرائت وکړي او په سري لمانځه کې په خفیه سره قرائت ووایي. نو څکه یې په ترک سره په هغه باندې سجده لازمه ده. او منفرد ته اختیار ده، چه په لوړ آواز یې ووایي او یا په ټیټ آواز سره.

**مسئله** : په جهري لمانځه کې د امام له سلام گرځولو وروسته مسبوق ته هم اختیار ده چه د پاتې رکعتونو په ادابنه کې د منفرد حکم لري. البته په زوره سره ویلو کې به د خلکو خیال ساتي او د جهر په هغه کم درجه کې به قرائت وایي. (مسایل سجده سهوص٩٠، ردالمختارص٤٩٨ج١)

## د سجده تلاوت په تاخیر سره د سجده سهوې حکم

**مسئله** : په لمانځه کې چې څوک د سجده تلاوت آیة ولولي نو فوراً سجده وربانذې واجب ده. نو که له یوه اوږده او یا دري کوچنیو آیتونو وروسته څوک سجده تلاوت وکړي، په اخیر کې سجده سهو کول هم وربانذې لازمه ده. او که چیرې له دریو آیتونو څخه کم ولولي



او بیا سجده تلاوت وکړي، نو په دې صورت کې سجده سهو وربانذې لازمه نه ده. (مسایل سجده سهوص٤٥، بحواله شامی ص٧٢١ج١، فتاوی محمودیه ص١٦٩ج٢)

**مسئله** : که څوک د سجدې آیة په یوه رکعت کې ولولي، او په هغه رکعت کې یې د تلاوت سجده هیره شي نودې په دویم، دریم او یا څلورم رکعت کې وکړي یعني په هر رکعت کې چه ورپه یادشي. خو په اخیر کې به سجده سهو هم کوي.

(فتاوی دارالعلوم ص٤٢٤ ج ٤ بحواله عالمگیری ص ١٢٤ج١)

**مسئله** : که څوک د آیة سجدې د تلاوت څخه وروسته فوراً یا دوه درې آیة وروسته رکوع وکړي او په هغې کې د تلاوت د سجدې نیت هم وکړي نو سجده تلاوت اداکیږي او مقتدیانو ته هم د تلاوت د سجدې د نیت ضرورت شته، بې له نیت د هغوی غاړې نه خلاصیږي د امام په نیت. او بل دا چه له دریو آیتونو ویلو وروسته بیا ادا کیدلای هم نشي چه په رکوع او سجده کې دې په نیت کولو سره سجده تلاوت هم اداشي. دا هغه وخت اداکیږي چه تر دوو آیتونو کم وخت وي.

(فتاوی دارالعلوم ص٤٢٣ ج٤، بحواله ردالمختار ص٧١٧ج١)

**مسئله** : که چیرې امام د سجدې آیة ووایي او هیریې شي چه باید سجده وکړي، مقتدي یې فتح ورکړي، امام صاحب بیا هغه آیة تلاوت کړ او بیا سجده وکړي، نو بس سجده اداشوه، دوو سجدو ته ضرورت نشته. (فتاوی رحیمیه ص٤٩ج٢)

## د شک په وجه سجده سهو کول

**مسئله** : که پر چا باندې سجده سهو واجب نه وي، صرف د شک پر بنیاد به سجده سهو نه کوي. که بیا هم په غلطی سره سجده څیني

وشي د سهوي په گمان. نو لمونځ يې صحيح دی ، راګرځولو ته يې هيڅ ضرورت نشته. او آينده به د دی خيال ساتي چه د شک او شبهې پر بنا به سجده سهو نه کوی. (فتاوی دارالعلوم ص۵۶ج۴ شامی ص۵۴۰ج۱، امدادالاحکام ص۵۲۲ج۱)

**مسئله** : که پر چا باندی سجده سهو واجب وی او ادا يې نکړی نو لمونځ راګرځول ور باندی واجب دی. (فتاوی دارالعلوم ص۴۱۴ج۴ بحواله ردالمختار ص۴۲۴ج۱)

**مسئله** : او کله که چا ته دا علم نه وی چه آيا په دې غلطی سره به سجده سهو لازميږی کنه ؟

نو احتياط دا دی چه سجده سهو وکړی. (فتاوی دارالعلوم ص۳۷۸ج۴)

**مسئله** : که پر چا باندی سجده سهو واجب وی خو هيره يې شی ، په ياد ورنه شی تر هغه پوری چه لمونځ ختم شی ، وروسته ورپه ياد شی. نو د غه وخت هم سجده کولای شی ؛ په دی شرط چه له قبلې يې مخ ګرځولی نه وی او يا يې خبری کړی نه وی. (علم الفقه ص۱۲۰ ج ۲)

## په سجده سهو کې ټول لمونځونه برابر دي

**مسئله** : که فرض لمونځ وی که واجب ، او يا نفل وی ، په دی ټولو لمونځونو کې د سجده سهوی حکم سره يو دی. البته د اخترونو او جمعې په لمانځه کې چون مجمع او ازدحام وی ، که سجده سهو کوی ، نو په دی سره انتشار پيدا کيږی او خلک په تشويش کې لويږی نو په دغه صورت کې سجده سهو معاف ده. همدا رنګه د تراويحو په لمانځه کې هم که کله خلک ډير زيات وی او د سجده سهوی په کولو سره تشويش رامنځ ته کيږی ، نو سجده معاف ده. د لمانځه د راګرځولو هم څه اړتيا نشته. (فتاوی رحيميه ص۲۲ج۵ درمختار ص۶۹ج۱)



## په سنت او نوافلو کې د لومړۍ قعدې (ناستی) حکم

سوال : که څيري په څلور رکعتی سنت لمانځه کې او يا په دوه رکعتی سنت يا نفل کې اول التحيات له چا څخه هير شی او بيا په همدی حالت کې کښيني سجده سهو وکړی ، لمونځ پوره کړی ، د ده لمونځ صحيح دی کنه ؟

جواب : - حامداً و مصلياً - په څلور رکعتی سنت لمانځه کې اوله ناسته (التحيات) واجب دی. چه په ترک سره يې سجده سهو لازميږی. او په نفلی لمانځه کې پر هرو دوو رکعتو باندی ناستی کول فرض دی. چه په پريښودلو سره ئې لمونځ هيڅ صحت نلری. نو که څوک دريم رکعت ته ولاړ شی او تر سجدی مخکې مخکې راوګرځی ناسته ترسره کړی او بيا د سجده سهوی په کولو سره لمونځ پوره کيږی. او که يې څيري د دريم رکعت سجده کړی وی نو به څلورم رکعت ورسره ضم کړی او بيا به سجده سهو وکړی ، لمونځ يې وشو خو ولی دوه مخکې رکعتونه يې ناسم دی ، يوازی وروستی دوه رکعتونه يې معتبر دی. ځکه چه پر اولو دوو باندی يې ناسته نه وه کړی چه هغه فرض ده نو دی فرض د پريښودو له امله هغه بی اعتباره شوه . او پر همدی تحريمه باندی د دويمې شفعې بناء صحيح ده. مګر سجده سهو په هر صورت ضروری ده. او تشهد واجب ده. او په ترک سره يې سجده لازميږی.

بله خبره داده ، چې که څوک په هيره له اولې ناستی څخه ولاړ شی دريم رکعت ته او بيا ور په ياد شی نو په دی کې د فقهاؤ کرامو دوه قولونه راغلی دی. يو دا چې وايی په بيرته راګرځيدلو سره لمونځ

فاسدیږي ځکه چه دا له فرض څخه واجب ته راګرځیدل دي، بل قول دادی چه لمونځ نه فاسدیږي ځکه چه دلته فرض ترک شوی نه بلکې مؤخرکړل شویدی. (فتاوی محمودیه ص۱۸۹ج۷بحواله درمختار ص۷۷۹ج۱)

مسئله: دعاء قنوت واجب دی که چیري پاتې شی نو په سجده سهو سره لمونځ صحیح کیږي. (آپ کی مسایل ص۳۶۸ج۳)

## د قرائت په منځ کې آیة پریښودل

مسئله: که چیري په جهری لمانځه کې د قرائت په دوران کې د دری آیتونو له لوستلو وروسته یو پوره آیة پریښودل شی او یا څه نور قرآنی آیتونه پریښودل شی او په دی پریښودلو سره د هغه په معنی کې څه تغیر هم رانشی نو په دی صورت کې لمونځ صحیح دی نه یی راګرځول شته او نه سجده سهو لازمه ده. (آپ کی مسایل ص۳۷۲ج۲، عالمګیری ص۶۵ج۱)

## که چیري د رکعتونو په شمیر کې شک پیداشي

مسئله: که د یوسړی دا هیره شی چه ۳ رکعتونه یی وکړل که څلور؟ نو که چیري د ده دغه هیره لومړي ځل وی نو ده ته پکار ده چه له سره بیرته لمونځ وکړی او دا افضل دی او که چیري یی دا شک همیشه په لمانځه کې وی نو بیا به پرغالب ګمان عمل کوی. یعنی څومره رکعتونه چه د هغه په غالب ګمان وی هغه معتبردی. او که یی یوی خواته هم ګمان زیات نه وی نو بیا به د لږو رکعتونو په لوری فیصله کوی. مثلاً د ماسپښین په لمانځه کې یی د ۳ رکعتونو او هم څلورو د کولو ګمان وی خو یقین یی یوې خوا ته هم پوخ نه ؤ نو دی به وایی چه ۳ رکعته دي، یو به بل ورسره زیات کې خو په دی تولو صورتونو کې سجده سهو شته.

(علم الفقه ص۱۲۰ج۲، هدایه ص۱۰ج۱، شرح نقایه ص۱۱۲ج۱ فتاوی دارالعلوم ص۳۹۲ج۴، کتاب الفقه ص۷۲۱ج۱)



مسئله: که چیري شک په لمانځه کې سړی دومره مشغول کړی چه د یوه رکن په اندازه دری واره «سبحان الله» ویلو پوری په شک کې وړباندی تیرشی او د همدې شک په حالت کې په قرائت او تسبیح باندی مشغول هم نه وی، نو د شک په دې ټولو صورتونو کې سجده سهو وړباندی لازمه ده. که په ظن غالب یی عمل کړی وی او د هغه په وجه ځنډیدلی وی. دا سجده سهو د رکن د مؤخرکیدلو په وجه واجب شوی وی. (درمختار ص۶۹۶ج۱)

مسئله: که چا په هیره د سهار لمونځ څلور او یا د مازیګر لمونځ شپږ رکعته وکړ، او س که ده اخیره ناسته کړی وی، نو فرض یی اداء شول او زائد دوه رکعتونه یی نفل وګرځیدل البته په اخیر کې به سجده سهو کوی او پر ده باندی هیڅ ګناه نشته. (فتاوی دارالعلوم ص۴۰۲ج۴، ردالمختار ص۷۰۰ج۱)

(که څه هم د سهار او مازیګر د فرضو وروسته نفل مکروه دی، خو هغه په هغه صورت کې چه قصداً اداء کیږی، دلته خو داسی نه ده بلکې د فرضو په ضمن کې په هیره اداء شول، نو نفل شول، اجرلری او پرده باندی هیڅ ګناه نشته. (محمدرفعت)

مسئله: که چیري امام په څلور رکعتي لمانځه کې اخیره ناسته ونکړی او پنځم رکعت ته ولاړ شی، رکوع او سجده وکړی بیا کښینی. نو د اخیری قعدې چې فرض ده؛ د پریښودو له امله د امام لمونځ ونشو. کله چه د امام لمونځ ونشو نو د مقتدیانو لمونځ هم قطعاً صحت نلری.

(فتاوی دارالعلوم ص۴۰۵ج۴، هدایه ص۱۲۲ج۱، ردالمختار ص۵۶۰ج۱، باب الامامت)

(اخیره ناسته په لمانځه کې فرض ده ، که سړی نه کښیني ولاړشي ، که څه هم په هیره سره وی ، لمونځ یی نه کیږی. محمدرفعت قاسمی غفرله )

مسئله : که چیري امام په څلورم رکعت کې د تشهد په اندازه کښیني اوبیا سهواً پنځم رکعت ته ولاړشي اوبیا د هغه پنځم رکعت سجده هم وکړی ، نودې بیا شپږم هم ورسره ختم کړی اوبیادی سجده سهووکړی ، فرض یی پوره شول. اوس که یوبل څوک په همدی وروستیو دوو رکعتو کې (پنځم اوشپږم ) له امام سره په جماعت کې شریک شی نود ده لمونځ نه صحیح کیږی ځکه چه امام په دغه وخت کې متنفل دی. (فتاوی دارالعلوم ص۴۱۸ج۴بحواله ردالمختار ص۷۰۱ج۱)

## په اوله ناسته کې په هیره سلام ګرځول

مسئله : که چاپه اوله ناسته کې په هیره یوه طرف ته یا دواړو طرفو ته سلام وګرځاوه ، اوسمدستی ورپه یادشوه نوکه څه خبری اتری یابل کوم عمل یی ترسره کړی نه وی ، بس دریم رکعت ته دی پورته شی ځکه په هیره سلام ګرځولو سره لمونځ نه فاسدیږی ، نوپاتی رکعتونه دی پوره کړی اوپه اخیرکې دی سجده سهو وکړی.

(فتاوی دارالعلوم ص۴۱۲ج۴بحواله ردالمختار ص۵۷۵ج۱فتاوی رحیمیه ص۱۶۹ج۱)

مسئله : لومړی ناسته واجب ده اوقاعده داده چه د واجب په ترک سره لمونځ فاسدیږی نه ، بلکې سجده سهولازمیږی ؛ نوکه له چاڅخه پاتی شی ، کښیني دی نه ، بلکې په اخیره کې دی سجده سهو وکړی ؛ لمونځ یی صحیح دی . (آپ کی مسایل ص۳۷۱ج۳)

مسئله : اخیره ناسته فرض ده ، که له چاڅخه پاتی شی ، پنځم رکعت ته ولاړشی ، نواوس که یی د پنځم رکعت سجده کړی نه وی ، بیرته



دی راوګرځی قعده دی پوره کړی اوپه اخیره کې دی سجده سهووکړی. اوکه چیري یی د پنځم رکعت سجده هم کړی وی ، نودی یوبل رکعت ورسره ضم کړی. نوبه یی هغه مخکې څلورچه د فرضوپه نیت یی پیل کړی وو ، باطل شی او دغه وروستنی دوه رکعته به یی نفل وګرځی اوپه اول صورت کې به دغه سجده سهود فرضود تأخیر په وجه وکړی او دغه فرض لمونځ به بیرته له سره راګرځوی.

(آپ کی مسایل ص ۳۷۲ج۳)

مسئله : که څوک پراول یادویم رکعت باندی په هیره کښیني ، بیادویم اویاڅلورم رکعت ته پورته شی ، نواوس که دی دومره کښیناستلی وی چه د یوه رکن مقدار کیږی ، نوبیا سجده سهووراندی لازمه ده. (عالمګیری ص۶۵ج۱)

مسئله : که چیري امام پردویم رکعت باندی کښیني اومقتدی په هیره ولاړشی ، نوپرمقتدی هم واجب ده چه کښیني اوله امام سره التحیات پوره کړی. (درمختار ص۶۸۶ج۱)

که څوک له اولي ناستی پرته دریم رکعت ته ولاړشی نوبالکل سیده نه وی دریدلی بیرته دی راوګرځی. اوکه بیخی سیده دریدلی وی نوبیا دی پسی ودریږی او ناستی ته دی نه راګرځی په اخیره کې دی سجده سهووکړی. (علم الفقه ص۱۱۹ج۲، کبیری ص۲۹۹، شرح نقایه ص۱۱۲، هدایه ص۱۰۶ج۱وفتاوی دارالعلوم ص۳۸۸ج۴، درمختار ص۶۸۵ج۱)

## که د قیام په حالت کې التحیات وویل شی

مسئله : که څوک په لومړی رکعت کې تر سورة فاتحی مخکې التحیات په هیره ووایی نوڅه حرج نشته ځکه چه د تحریمی

اوفاتحې ترمنځ هم د يو دا سې شئ لوستل پکاروي چه د الله تعريف
اوستاينه پکښې ذکروي . اوالتحيات همدا شئ دی. اوکه يې له
قرائت څخه وروسته او يا هم په دويم رکعت کې له قرائت څخه
مخکې یا وروسته ووایی نو په دی صورت کې به سجده سهو کوي ،
ځکه چې له قرائت څخه وروسته بايد سړی رکوع ته ولاړشي دا واجب
ده او همدا راز دويم رکعت په قرائت سره شروع کول واجب دي.
**مسئله** : که له چا څخه قومه اوجلسه پاتې شي نو سجده سهو وربانده
واجب ده . (علم الفقه ص ١١٨ ج ٢)

## د دريو حالتونو يو حکم

پوښتنه : که څوک په وروستي رکعت کې له تشهد وروسته ولاړ شي
او بيا بيرته کښيني نو د دې درې صورتونه دي : يو دا چې په پوره ډول
ودريږي خو پرته له څه ويلو بيرته دستي کښيني ، دويم دا چې
ولاړ شي او څه هم ووايي ، دريم دا چې سورة ټول پوره ختم کړي. په
دې ټولو صورتونو کې يو حکم دی که مختلف ؟
اوبل دا چې کله کښيني سمدستي به سلام ګرځوي سجده به کوي
او که به التحيات وايي بيا به د سجده سهوی لپاره سلام ګرځوي ؟
جواب : په هر دريو حلاتو کې به چه کله کښيني تشهد به وايي
،د سجده سهوی لپاره به سلام وګرځوي بيا به له سره تشهد او نور
ووايي د ختم سلام به وګرځوي . (فتاوی دارالعلوم ص ٣٨٣ ج ۴ بحواله ردالمحتار ص ٧٠٠ ج ١)
**مسئله** : که څوک په اخيره قعده کې ولاړ شي او بيا ورپه ياد شي
او کښيني نو د سجده سهوی پخاطر التحيات ونه وايي فورا سلام
وګرځوي ، سجده سهو وکړي هم څه حرج نشته ځکه چه قعده



اوتشهد خو لا له مخکې شوی دی . نو له کښيناستلو سره سم دی سلام
وګرځوي سجده سهو دی وکړي او بيا دی له سره تشهد او نور ووايي. 23
د ختم سلام دی وګرځوي. (فتاوی دارالعلوم ص ٣١٥ ج ۴ بحواله شامی ص ٧٠٠)
**مسئله** : په اخيره ناسته کې که تر تشهد او درود شريف وروسته څوک
لږ انتظار وکړي ، سلام ونه ګرځوي نو سجده سهو واجب نه ده.
(فتاوی دارالعلوم ص ٤٠٠ ج ۴، ردمختار ص ٧٠٧ ج ١)
**مسئله** : په اخيره ناسته کې په دوه ځله تشهد ويلو سره سجده نه
واجبيږي. (فتاوی دارالعلوم ص ٣٧٧ ج ٣، عالمګيری ص ١١٩ ج ١)

## په ناسته (قعده) کې د سهو مسائل

**مسئله**: که چيري په فرضي ، واجب او يا سنت مؤکد څلور رکعتي
لمانځه کې د دويم رکعت د تشهد څخه وروسته په هيره څو الفاظ د
درود شريف ولولي ، نو سجده سهو وربانده واجب ده.
(فتاوی دارالعلوم ص ٤١٢ ج ۴ بحواله ردالمختار ص ٦٩٢ ج ١، کبيری ص ٤٦٠، شامی ص ٤٧١ ج ١)
**مسئله** : که يو سړی پوره درود شريف او يا د هغه نيمايي تر – اللهم
بارک – انک حميد مجيد – پوري مکرر په اخيره ناسته کې ووايي ،
پر هغه باندې سجده سهو واجب نه ده. (فتاوی دارالعلوم ص ٣٩١ ج ۴ بحواله شامی ص ٦٩٢ ج ١)
**مسئله** : که د چا درود شريف هير شي او د مأثوره دعاء پوهخت ور په
ياد شي نو دې دعاء پريږدي له سره دی درود شريف پيل کړي او سجده
سهو هم وربانده لازمه نه ده. (فتاوی دارالعلوم ص ٣٩٢ ج ۴ بحواله ردالمختار ص ٢٤٥ ج ١)
**مسئله** : که چا درود شريف نيم ووايه ، په هيره يې هغه پريښود
او دعاء مأثوره ئې پيل کړه ، نو بهتره دا ده چه هغه دعاء پريږدي

اوپاتی درود شریف پسی پوره کړی سجده سهو وربانډی واجب نه ده . (شامی ۴۲۵ج۱)

مسئله : که چیري مسبوق له امام سره په اخیره ناسته کي ترتشهد وروسته درود شریف اودعاء هم پوره کړی نو وروسته بیا سجده سهو پرلازمه نه ده .(مسایل سجده سهوص ۹۱)

مسئله : که چیري په امام پسی مقتدی تشهد ونه وایی نو لمونځ یې صحیح دی راګرځول یې ضروری نه دی. اوکه په قصدی توګه داسی وکړی نو بیا هم لمونځ شویدی خو ولی راګرځول یې ځکه ضروری دی چي په دې قصدی عمل سره په لمانځه کي خلل راغلی دی . یعنی قصداً ترک واجب لمانځه ته نقصان رسوی. (امداالاحکام ص ۴۸۳ج۱)

مسئله : که له چا په قعده اولی یا اخیره کي د التحیات څه حصه پاتی شوه ، سجده سهو وربانډی واجب ده ،که فرض لمونځ وی که نفل. (عالمګیری ص۶۶ج۱)

مسئله : په اوله ناسته کي که څوک تشهد ختم کړی او څوشیبې خاموش پاتی وی ، نو که دغه خاموشی د یوه رکن په مقدار (۳خله سبحان الله ویل ) وی نو سجده سهو وربانډی شته او که تر یو رکن کم وی بیا نشته. (عالمګیری ص۶۶ج۱)

مسئله : که پرچا بانډی سجده سهو وی خو ورپه یاد نه وی ترهغو پوری درود شریف ختم کړی بیا ورپه یادشی ، نو هرکله چه ورپه یادشی په هغه ځای دی سجده وکړی ، صحیح ده. بیا دی التحیات روایی او د ختم سلام دی وګرځوی. (عالمګیری ص۶۶ج۱)



که چیري امام سلام وګرځوی ، ولی مقتدی لا التحیات ، درود شریف اودعاء پوره کړی نه وی ، نو بهتره داده چه التحیات پوره کړی او بیا سلام وګرځوی ، درود اودعاء که پاتی شی هم څه خبره نه ده له امام سره دی سلام وګرځوی. اوکه چیري امام دریم رکعت ته ولاړشی ، دمقتدی لا التحیات پاتی وی نو پکار ده چي هغه پوره کړی بیا ولاړشی اوکه سمدستی ورسره ولاړشی هم څه خبره نه ده.
(مسائل سجده سهو ص۶۹،امدادالفتاوی ص۵۱۱ج۱)

مسئله : که پرچابانډی په لمانځه کي سجده سهو لازمه شی ، بیا سجده وکړی خو له سجدی وروسته د التحیات پرځای فاتحه ووایی نو پرده بانډی دوهم ځل سجده واجب نه ده. له فاتحی وروسته دی بیرته التحیات اونور ووایی ،لمونځ دی پوره کړی صحیح دی. (عالمګیری ص۶۶ج۱)

مسئله : که چا په رکوع اویا سجده کي التحیات ووایه ،نو پرده بانډی سجده واجب نه ده. (طحطاوی ص۲۵۰ ج۱)

مسئله : که د اخیری التحیات څخه وروسته څه غلطی وشی په لمانځه کي ، بیا سجده سهو نشته. لمونځ پوره شویدی. (آپ کی مسایل ص۳۶۸ج۳)

مسئله : که د التحیات پرځای کوم سورة ولوستل شی او یا التحیات غلط وویل شی نو په دې صورت کي سجده سهو واجب ده. (آپ کی مسایل ص۳۷۰ج۳)

## په اذکارو او تسبیحاتو کې د سهوي مسائل

**مسئله** : که چا په لمانځه کې اعوذبالله ،یابسم الله یاثناء (سبحانک اللهم) پرېښوده ؛ نو سجده سهو ورباندی واجب نه ده.

(فتاوی عالمگیری ص۶۵ج۱، آپ کی مسائل ص۲۶۵ج۳)

**مسئله** : که څوک په رکوع یا سجده کې د تسبیح پرځای بسم الله الرحمن الرحیم ووایی نو پردې باندی سجده سهو واجب نه ده.

(هدایه ص۱۴۰ج۱)

**مسئله** : که څوک په زوره یعنی په لوړ آواز سره اعوذبالله ،بسم الله یا آمین ووایی نو سجده سهو ورباندی واجب نه ده.

**مسئله** : که څوک د لمانځه په حالت کې د بل څنګلوري سړي څخه فاتحه واوري او د ولا الضالین پرځای آمین ووایی او یا بل څوک دعاء کوي دی دهغه پر دعاء باندی آمین ووایی نو د دغه آمین ویونکی لمونځ فاسد دی. (مسائل سجده سهو ص۷۶)

**مسئله** : په رکوع کې دومره وخت ځنډ کول ؛ چې هر اندام پر خپل ځای باندی قرار ونیسی او یو ځل « سبحان ربی العظیم » وویلای شی ؛ واجب دی. که په هیره دومره وخت ونه دریدلای شو ،نو سجده سهو واجب ده او که قصداً داسی وکړی نو دویم ځل لمونځ کول لازمي دی.

(طحطاوی ص۱۶۶ج۱)

## په رکوع او سجده کې د سهو مسائل

**مسئله** : په یوه رکعت کې دوې رکوع کول سجده سهو واجبوی. که سجده سهو ونکړی نو لمونځ به راګرځوی. مګر که دا مسئله په



اخترونو او یا د جمعې په لمانځه کې رامنځ ته شی نو د ازدحام په وجه که سجده سهو ونشي هم لمونځ صحت لري.

(فتاوی دارالعلوم ص۳۷۹ج۴ ردالمختار ص۷۰۵ج۱)

**مسئله** : که یو څوک له فاتحې او سورة وروسته سمدستې سجدې ته ولاړشی ،رکوع یې هیره شی. نو اوس که دغه رکوع له دویم رکعت څخه مخکې ورپه یاد شی نو پر همغه وخت به پورته شی او رکوع به وکړی ،بیا به سجده ورپسی وکړی او که چیري تر دویم رکعت وروسته ورپه یاد شی نو بیا د دغه دویم رکعت رکوع د هغه اول رکعت رکوع ګڼله کیږی یعنی دغه دویم رکعت لغو او دغه رکعت پخپله اول بلل کیږی له دې وروسته به خپل رکعتونه پوره کړی. خو په دې دواړو صورتونو کې سجده سهو لازمه ده.

(علم الفقه ص۱۱۹ج۲ ،عالمگیری ص۶۷ج۱ ،فتاوی دارالعلوم ص۴۱۶ج۴)

**مسئله** : که چیري په کوم رکعت کې په هیره دوه سجدو و پرځای درې سجدې وکړی نو په دې سره سجده سهو واجب ګرځی.

(آپ کی مسایل ص۳۷۱ج۳)

**مسئله** : که چیري په کوم رکعت کې یوه سجده وکړی او دویمه یې هیره شی ،او بیا په دویم رکعت کې او یا له هغه وروسته د اخیری ناستې تر تشهد مخکې ورپه یاد شی نو دغه سجده به په همدغه وخت کې کوی او په اخیر کې به سجده سهو کوی ،او که چیري په اخیره قعده کې تر التحیات وروسته ورپه یاد شی نو به هغه پاتی سجده وکړی او التحیات به له سره ووایی ،او بیا به سجده سهو وکړی.

(بحر ص۹۲ج۲ ،فتاوی محمودیه ص۲۲۲ج۲ ،علم الفقه ص۱۱۸ ج۲ ،عالمگیری مصری ص۱۱۸ ،فتاوی دارالعلوم ص۳۷۸ج۴ وکبیری ص۴۵۵)

**مسئله :** که په هیره امام دریمې سجدې ته ولاړ شي نو مقتدي به يې متابعت نه کوي، البته پر امام باندې سجده سهو واجب ده چې په هغه کې به يې مقتدي اتباع کوي. (شامي ص۴۳۹ ج۱، فتاوی دارالعلوم ص۴۱۶ ج۴)

**مسئله :** که چا په لمانځه کې يو رکن پر بل مقدم کړ او بل يې وروسته کړ مثلاً اول يې سجده وکړه او بيا وروسته يې رکوع وکړه يا يې يو رکن مکرر ادا کړ نو پر ده باندې سجده سهو لازمه ده. (عالمگيری ص ۶۶ ج ۱)

## که په امام پسې ولاړ وي، رکوع او يا سجده ور څخه پاتې شي؟

**مسئله :** که څوک په امام پسې مقتدي وي خو سجده او يا رکوع ورځني په هيره پاتې شي، نو کوم وخت چې ورپه ياد شوه دغه رکن دې ادا کړي او له امام سره دې شرکت وکړي. او که دغه يې ونکړ، نو بيا دې د امام له سلام کرځولو وروسته دې خپلې رکوع يا سجده وکړي، او بيا دې سجده سهو ورپسې وکړي. که په دې صورت نو کې يې يو ونکړ، نو لمونځ يې نه صحيح کيږي. دوباره به يې اداکوي. (مسائل سجده سهو بحواله عالمگيري ص ۶۶ ج۱)

**مسئله :** پر مقتدي باندې سجده سهو نشته که څه هم واجب ځنې پاتې شي او يا فرض تاخير کړل شي. او نه يې ورباندې اعاده شته. خو دا په داسې حال کې چې دی مقتدي يعني په امام پسې ولاړ وي.
(فتاوی دارالعلوم ص۴۰۲ ج۴ بحواله ردالمختار ص۴۹۵ ج۱)

**مسئله :** که پر امام باندې سجده سهو واجب وي خو ورپه ياد نشي او ځنې پاتې شي نو پر مقتديانو واجب نه ده. (عالمگيری ص۶۶ ج۲)

**مسئله :** که په جمع کې له مقتدي څخه غلطي وشي، نو نه پر مقتدي او نه پر امام باندې سجده سهو لازمه ده. (هدايه ص۱۰۶ ج۱، کبيری ص ۴۶۳)



**مسئله :** مقتدي ته تر خپل امام وړاندې کوم فعل شروع کول مکروه تحريمي دي (بهشتی زيور ص۶۶ ج۱۱، شامی ۴۲۹ ج۱)

**مسئله :** که څوک له قرائت وروسته تر رکوع مخکې د يوه رکن چې ۳ ځله سبحان الله پکې ويل کيدای شي؛ په مقدار منتظر پاتې شي يعني پرته له څه ويلو همداسې په فکر کې ولاړ وي نو سجده سهو ورباندې لازمه ده. (عالمگيری ص۶۵ ج۱، فتاوی رحيميه ص۱۸ ج۱)

## په رکوع کې د سجدې تسبيح ويل

**مسئله :** که چا په رکوع کې د سجدې او په سجده کې د رکوع تسبيح وويلې، نو سجده سهو ورباندې واجب نه ده. البته دا عمل مکروه تنزيهي دی. که په يادشي ورته، د رکوع او يا سجدې تسبيح دې ووايي، تر څو د سنت مطابق شي.
(فتاوی دارالعلوم ص ۳۸۵ ج۴، درمختار بر حاشيه شامی ص۴۶۱ ج۱، آپ کی مسايل ص۳۱۵ ج۳)

**مسئله :** که څوک له سجدې يا قعدې څخه په ولاړيدلو کې تکليف ولري نو که لاس پر مځکه ولګوي او ولاړ شي، څه حرج نشته.
(آپ کی مسایل ص۳۱۵ ج۳)

**مسئله :** که څوک په رکوع کې د تسبيح پر ځای بسم الله الرحمن الرحيم ووايي نو سجده نه لازميږي ځکه چې د رکوع تسبيح واجب نه دي، مګر تشهد چونکه واجب دی که پاتې شي يعني پر ځای يې بل څه وويل شي سجده سهو لازميږي.
(فتاوی دارالعلوم ص۳۹۶ ج۴، هدايه ص۱۴۰ ج۱، باب سجود السهو)

مسئله : په لمانځه کې له تکبیر تحریمه پرته نور تکبیرونه سنت دي ،نو که څوک رکوع ته ځي او تکبیر ځنې پاتې شي په هیره ،لمونځ یې کیږي او سجده سهو هم ورباندې لازمه نه ده. (آپ کی مسایل ص۳۱۵ ج۲)

## په سجده کې شک پیدا کیدل

مسئله : که چاته داشک پیدا شو چې یوه سجده یې کړې، که دوې ؟ نو په دې صورت کې به په غالب گمان عمل کوي او که دا نه وو نو به یوه بله سجده وکړي او په اخیر کې به سجده سهو اداء کړي.

(درمختار ص۱۰۳ ج۱، فتاوی دارالعلوم ص۴۱۸ ج۲)

## په سجده سهو کې شبه پیدا کیدل

مسئله : که چا باندې سجده سهو واجب وي او په اخیره ناسته کې داشک ورپیدا شي چې سجده یې کړې ،کنه ؟ نو په دې صورت کې به پر غالب گمان عمل کوي ،خو که دا نه وي نو دې بیا سجده وکړي.

(مسایل سجده سهو ص۴۸ بحواله شامی ص۵۲۹ ج۱)

## د تکبیراتو صحیح طریقه

سوال : تکبیر تحریمه به کله وایي تر لاس ترلو مخکې او یا چې لاس وتړي ؟ صحیح طریقه یې راته وښیه ؟

جواب : د تکبیر اولی او رفع الیدین په باره کې درې قولونه دي :

(۱)- اول به رفع الیدین وکړي، یعنې دواړه لاسو ته به ترغوږو پورې پورته کړي.

الله اکبر به شروع کړي د تکبیر له ختمیدو سره سم به لاس ترنامه لاندې وتړي.



(۲)- تکبیر او لاس پورته کول به یوځای شروع کړي او یوځای به یې ختم کړي.

(۳)- اول به تکبیر شروع کړي سمدستي به لاس هم ورسره پورته کړي ، بیا به یې یوځای سره ختم کړي. (بحرالرائق ص۳۰۵ ج۱، شامی ص۴۶۵ ج۱)

په پورتنیو صورتونو کې لومړی او دویم صورت افضل دی ، دریم صورت هم جایز دی مگر معمول بها نه دی. (هدایه ص۸۴ ج۱)

او په جوهره کې راغي چه صحیح دادی چه لومړی لمونځ کوونکی دواړه لاسونه پورته کړي ترغوږونو پورې چه کله غوږونو ته ورسیدل هلته دې تکبیر شروع کړي. (جوهره ص۴۹ ج۱)

په صورت مسئوله کې لمونځ کیږي مگر تر لاس ترلو پورې تکبیر ځنډول عادت غلط او مکروه دی. دا د ثناء (سبحانک اللهم) د ویلو محل دی . نه د تکبیر تحریمه. تکبیر به د لاس تر ترلو پورې ختموي. په دې کې یوه بله خرابي داده چه د لوړ آواز اوریدونکې مقتدي یا بل کوم مقتدي د امام رفع الیدین ته گوري بیا تکبیر وایي. نو که امام تر لاس ترلو پورې تکبیر وځنډوي او مقتدي یې تر دې مخکې د لاس پورته کولو پر مهال ووایي نو د هغه اقتداء او لمونځ صحیح نشو. دا ځکه چه که چیرې د تکبیر اول لفظ «الله» په ویلو کې مقتدي تر امام وړاندې شي او یا هم «دالله» لفظ ورسره شروع کړي مگر د اکبر لفظ تر امام مخکې ختم کړي. په دې صورت کې هم د ده اقتداء په امام پسې صحیح نه ده. (درمختار مع شامی ص۲۴۸ ج۱)

نو امام ته دا عادت پریښودل پکار دي.

## د رکوع او سجود د تکبیراتو صحیح او مسنونه طریقه

دې تکبیراتو ته د انتقالاتو تکبیرونه وایي. نو د رکوع تکبیر باید هغه وخت پیل شي چه سړی رکوع ته د حرکت یعنی تیټیدو په حال کې شي تر هغو پورې چې رکوع ته ورسي. دا راز سجدې ته د تګ پر وخت به تکبیر پیل کړي چه کله سجدې ته ورسید تکبیر به ختم کړي. دا ناسمه ده چه څوک رکوع او یا سجدې ته ورسیږي لا تکبیر وایي. په دې کې دوه کراهته لازمیږي یو دا چه د ترک محل خرابي راشي ولې چه دا د انتقالاتو تکبیرونه دي یعنی محل یې هغه ځای دی چه رکوع او سجدې ته د تللو پر وخت باید د انتقال په حالت کې وویل شي او دلته دا تکبیرات بې محله وویل شول ځکه یو په رکوع کې او بل په سجده کې وویل شو. دویم کراهت دا شو چې اداء یې بې محله شوه یعنی په کوم ځای کې چه باید « سبحان ربی العظیم یا سبحان ربی الاعلی » ویل شوي وای، په هغه ځای کې تکبیر وویل شو. نو ګویا د دغو تکبیراتو په بې ځایه کولو سره دوه کراهته راځي یو ترک محل، دویم اداء بې محل شوه نو په همدې وجه دا عمل د سنت خلاف او مکروه عمل دی. (منیة المصلی ص ۸۸، کبیری ص ۳۲۵)

## له تکبیر تحریمه وروسته به لاس پریږدي که به ئې تړي؟

**مسئله**: د تکبیر تحریمه او دعاء قنوت او د اختر د لمانځه د تکبیرونو پر مهال چې لاس پورته شي، سمدستي به یې تړي، دا چې لاس له پورته کیدلو وروسته پریښودل شي، بیا وروسته تر نامه لاندې وینول شي، دا ثبوت نلري. اختلاف په دې خبره کې ده چې د ثناء او قرائت په حالت کې لاس باید وتړل شي او که پریښودل شي.

(فتاوی رحیمیه ص ۳۷ ج ۳، نور الایضاح ص ۷۶، امداد الاحکام ص ۳۶۵ ج ۱)



**مسئله**: که څوک تکبیر تحریمه د قیام په حالت کې نه، بلکې رکوع ته د ټیټیدو په وخت کې ووایي، نو دی په لمانځه کې داخل نه دی. یعني لمونځ یې صحت نلري. ځکه چه په لمانځه کې د داخلیدو شرط دا دی چې تکبیر به د قیام په حال کې ویل کیږي که چیرې د «الله» لفظ د قایم او «اکبر» لفظ په رکوع کې وویل شي نو په لمانځه کې داخل نه دی. (فتاوی رحیمیه ص ۳۱۵ ج ۴، فتاوی محمودی ص ۱۲۱ ج ۲)

**مسئله**: ځیني مقتدیان داسې غلطي کوي چه د هغه په وجه یې لمونځ فاسدیږي مثلاً: مخکې له دې چه امام تکبیر تحریمه پوره کړي مقتدیان «الله اکبر» وایي. او یا دا چه امام لا د الله لفظ ختم کړی نه وی، مقتدي بیا ټول تکبیر پوره کړي. نو په دې دواړو صورتونو کې د لمانځه شروع صحیح نه ده، دوی ته پکار ده چه دویم ځل خپل نیت وتړي او په امام پسې اقتداء وکړي. (صغیری ص ۱۴۳)

**مسئله**: که څوک په امام پسې هغه وخت په جماعت کې شامل شي چه هغه د رکوع په حال کې وي. نو ده ته سنت دا ده چه تکبیر تحریمه ووایي او تر نامه لاندې لاس وتړي خو که یوازې تکبیر په ولاړه ووایي او لاس ونه تړي هم لمونځ صحیح دی. (فتاوی دار العلوم ص ۲۹۹ ج ۲، بحر الرائق ص ۳۲۰ ج ۱)

**مسئله**: که چیرې امام په رکوع کې وي او یو سړی راشي په رکوع کې ورسره شرکت کوي، نو د تکبیر تحریمه تر ویلو وروسته به بل تکبیر ووایي او په رکوع کې به ورسره شریک شي، خو که دا دویم تکبیر ونه وایي همدا یو تکبیر تحریمه کفایت کولای شي، لمونځ یې صحیح دی. او دغه رکعت یې پیدا کړی دی. (فتاوی دار العلوم ص ۲۹۸ ج ۲، شامی ص ۳۲۲ ج ۱)

**مسئله** : مقتدیانو ته پکار ده چه هر رکن له امام سره یوځای اداء کړي بې له تعجیل او تاخیره . له تحریمه نیولي په ټولو ارکانو کې به یې مکمله توګه متابعت کوي ، نه به ذره ځنې مخکې کیږي او نه به ورځنې وروسته کیږي. مګر په اوله ناسته او اخیره ناسته کې که چیرې مقتدي التحیات پوره کړي وي ، امام پورته شي نو مقتدي به خپل پاتې تشهد پوره کوي بیا به ولاړیږي ، اما په نورو ارکانو کې که تسبیحات یا بل داسې څه پریږدي بې له دې چه تکمیل شي ، څه پروانلري ، نبه داده چه د امام متابعت ټینګ کړي. (علم الفقه ص۹ج۲)

**مسئله** : حکم دادی چه که امام په رکوع کې وي نو یو شخص راشي او په رکوع کې ورسره شرکت کوي سمدستي به تکبیر تحریمه ووایي بیا په ولاړه انتظار کول لازمي نه دي رکوع ته دې ولاړ شي هلته که امام په رکوع کې صرف پیدا کړي که څه هم د تسبیح ویلو موقع ورته مساعده نشي نو رکعت یې پیدا کړ لمونځ یې صحیح دئ. او که د ده له رسیدلو څخه مخکې امام راپورته شي له رکوع څخه ، نو یې رکعت نه دی پیدا کړی. (آپ کی مسایل ص۲۹۱ج۳)

## د رکوع او سجدې تسبیحات په زوره ویل

**مسئله** : په فرض لمانځه او نورو کې ثناء ، د رکوع او سجدې تسبیحات ، او په لمانځه کې نور اذکار په دومره لوړ آواز سره باید وویل شي چه د نورو د توجه د خرابولو سبب ونه ګرځي. بل څوک چې پر لمانځه ولاړ وي او یا په وظیفه مصروف وي، یا څوک په اعتکاف کې وي او یا هم څوک ویده وي ، که د دې خلکو د زور تکلیف او توجه



د اړولو باعث وګرځي نو دا ډول اذکار ویل که په لمانځه کې وي که له لمانځه دباندې ، ناسم عمل دی. او د ګناه موجب ګرځي.
(فتاوی رحیمیه ص۲۲ج۳ شامی ص۶۱۸ج۱)

## په تکبیراتو کې د سهو مسائل

**مسئله** : له یوه رکن څخه بل رکن ته د تللو پر مهال مثلاً : له رکوع څخه سجدې ته د تلو پر وخت چې کوم تکبیرونه ویل کیږي ، له دوی نه که یو پاتې شي په هیره نو سجده سهو وربانده واجب نه ده. البته د اخترونو په لمانځه کې په دویم رکعت کې که د رکوع تکبیر پاتې شي نو سجده واجب ده . مګر خو په اخترکې بیا د ازدحام لامله د سجده سهوې نه کول څه حرج نشته. (فتاوی عالمګیری ص۶۵ج۱، آپ کی مسایل ص۳۷۱ج۳)

**مسئله** : که یو سړي په تکبیر تحریمه سره لمونځ پیل کړي او قرائت هم ووایي خو وروسته شک ورته پیدا شي چه تکبیریې ویلی کنه ؟ او د دې شک په وجه بیا تحریمه ووایي او قرائت بیا شروع کړي خو دلته ورپه یاد شي چه لومړي ځل یې تکبیر تحریمه ویلی وو ، نو پر ده باندې سجده سهو لازمه ده . (مسائل سجده سهو ص ۷۰ بحواله مبسوط ص۲۳۲ج۱)

**مسئله** : که چیرې امام په هیره پر اول یا پر دریم رکعت کښیني ، خو له شا مقتدي فتح ورکړي او یا خپله ورپه یاد شي نو امام چه ولاړیږي ، د همدې ولاړیدلو په وخت کې به تکبیر ووایي. (کبیری ص۳۱۲)

## د مسبوق او لاحق پیژندنه او په هغې پورې اړوند مسائل

مسبوق هغه چاته ویل کیږي چه د جماعت د لمانځه یو څه برخه او یا اکثره برخه ورځنې تیره وي. د مسبوق لپاره حکم دادی چې له ده څخه چې څومره حصه پاتې شوې وي هغه به د امام له سلام ګرځولو

وروسته اداء کوی. په دغه حالت کې دی د مقتدی غوندی نه بلکې د منفرد حکم لری. یعنی څرنګه چې منفرد (ثناء ، تسمیه ، تعوذ ، قرائت ) کولای شی همدا رنګه به یې مسبوق هم کوی او د خطائي په صورت کې به سجده د سهو کوی. (علم الفقه ص۹۶ج۲)

مدرك : هغه چاته ویل کیږی چې له لومړی سره په جماعت کې شریک شی تر پایه پوری. او دې شخص ته مؤتم او مقتدی هم ویل کیږی. (علم الفقه ص۷ج۲)

لاحق : هغه چاته ویل کیږی چې له امام سره له لومړی سره په جماعت کې شریک وی خو بیا د څه عذر په وجه یو څو رکعتونه او یا ټول رکعتونه ورځنی پاتی شی مثلاً: د غفلت په وجه یا د ویری په وجه او یا د بی اودسی په وجه او داسی نور... او یا بی له عذره رکعتونه خینی پاتی شی ، مثلاً: تر خپل امام وړاندی رکوع او سجده او یا بل رکن اداء کړی او یا یو مقیم شخص په مسافرېسی لمونځ کوی او یا په صلوة الخوف کې اول یو یا دوه رکعته له امام سره کوی ، دا لاحق بلل کیږی د ده حکم د مقتدی دی په باقي پاتی لمانځه کې قرائت نشی ویلای ، نه به سجده د سهو کوی. او نه یې فرض د اقامت په نیت تبدلیږی. دغه سړی د مسبوق بالعکس لومړی به د هغه برخی قضاء راوړی چې له امام سره له اداء کولو څخه پاتی شویده. او که جماعت پاتی وی نو له امام سره به شرکت کوی. له لاحق څخه چه کوم رکعات پاتی دی په هغوی کې دی مقتدی ګڼل کیږی. او له امام سره چه څوک مقتدی قرائت نشی کولای ، لاحق به یې هم نه کوی. بلکې ساکت



(خاموش) به اوسی. او که له ده څخه د سجده سهو ضرورت وی، سجده د سهو به نه کوی. (علم الفقه ص۹۶ج۲)

**مسئله** : که چیري مقتدی په څلور رکعتی لمانځه کې له امام سره صرف یو رکعت پیدا کړی ، نو د امام له سلام ګرځولو وروسته به په لومړي دوه رکعتونو کې قرائت وایی او په وروستی یوه رکعت کې به صرف الحمد لله وایی. (فتاوی دارالعلوم ص۳۸۴ج۲)

**مسئله** : که چیري یې له امام سره دوه رکعته پیدا کړل نو د امام له سلام ګرځولو وروسته به په پاتی دوو رکعتو کې « الحمد » او « سورة » دواړه وایی. (فتاوی دارالعلوم ص۳۸۸ج۲، بحواله ردالمختار ج۱ ص۵۵۲)

**مسئله** : که چیري یو رکعت ځنی تیرشوی یعنی دری رکعته یې له امام سره موندلی وی. نو د امام له سلام ګرځولو وروسته به ولاړ شی دغه رکعت به له « سبحانک اللهم » څخه پیل کړی سورة فاتحه او بل سورة به ورسره پوره کړی. او که دوه رکعته ځنی تیر وی. نو به دغه دوه رکعتونه وروسته په دې ډول اداء کړی ، لکه یوازی چې یې کوی ، یعنی په اول رکعت کې به سبحانک اللهم ووایی بیا فاتحه او بیا سورة ، په دویم رکعت کې به صرف « الحمدلله » ووایی نه « سبحان » او که دري رکعتونه تیروی . نو هم به په اول کې « سبحان » ووایی.

بیا به فاتحه او بیا سورة ولولی او پر همدې رکعت به قعده هم وکړی. او په دویم رکعت کې به سورة فاتحه او سورة ولولی او په دریم رکعت کې به یوازی فاتحه یعنی « الحمدلله » ووایی. او اخیری ناسته به وکړی. (آپ کی مسایل ص۲۹۰ج۳)

**مسئله** : دغه پاتی رکعتونه د قرائت په اعتبار خو اول دی ، مګر په ناسته کې د التحیات په لحاظ دا اخیری رکعتونه دی . نو که چیري له امام سره یو رکعت پیدا شی نو یو رکعت چه بل وکړی قعده کول ضروری دی. او پاتی نور دوه رکعتونه به په بله قعده سره اداء کوی.

(آپ کی مسایل ص۲۹۰ ج ۳)

**مسئله** : څوک چې د ماښام له دریو رکعتونو نه له امام سره دوه رکعته پیدا کړی نو هغه به په قعده کې له امام سره صرف التحیات ولولی او بیا به خاموش کښینی بیا چه کله دغه پاتی یو رکعت پسی اداء کړی نو هلته به ټول هرڅه ولولی. (فتاوی دارالعلوم ص۲۹۳ ج ۲،غنیة المستملی ص۴۲۱)

**مسئله** : او که چیرې یو رکعت پیدا کړی بیا په نورو دواړو رکعتونو کې به ناسته کوي او التحیات وایی. (فتاوی دارالعلوم ص۲۹۶ ج ۳،فتاوی رحیمیه ص۲۲۲ ج ۲)

**مسئله** : څوک چه په څلور رکعتی لمانځه کې مثلاً : ماسپښین ، مازیګر له امام سره صرف یو رکعت پیدا کړی نو دغه سړی به امام له سلام ګرځولو وروسته خپل پاتی رکعتونه داسی اداء کړی چه ولاړ به شي ثناء او تعوذ به ووایی الحمدلله او سورة به ورپسی ووایې ، رکوع به وکړی او بیا به سجده وکړی التحیات ته به کښینی ځکه چه د دې شفعی بل رکعت خو هغه دی شویدی له امام سره . له التحیات وروسته به پورته شی ، الحمد او سورة به ووایی ، رکوع او سجده به وکړی ، دا به یې دریم رکعت شی له سجدی وروسته به فوراً څلورم رکعت ته پورته شی او یوازی الحمدلله به ووایی . رکوع او سجده به وکړی دا یې څلورم رکعت شو ،تشهد ، درود شریف او دعاء به ووایی ، سلام به وګرځوی . (فتاوی دارالعلوم ص۲۹۷ ج ۳،ردالمختار ص۵۵۷ ج۱)

24



**مسئله** : که څوک د مازیګر په لمانځه کې له امام سره یو رکعت پیدا کړی نو د امام له سلام ګرځولو وروسته چې یو رکعت وکړی قعده به کوی او بیا به دوه رکعته نور کوی په اخیره ناسته کې به التحیات ، درود شریف او دعاء ولولی. سلام به وګرځوی.

(فتاوی دارالعوم ص۲۹٦ ج۳ بحواله ردالمختار ص۵۵۷)

**مسئله** : که چیري له مسبوق څخه په رکعت کې کوم فرض پاتی شی او هغه فرض اعاده ونکړی په لمانځه کې ، نو به بیرته له سره لمونځ کوی. (فتاوی دارالعلوم ص۳۹۰ ج۳، بحواله ردالمختار ص۸۱۱ ج۱)

**مسئله** : که له چا څخه د ماښام دوه رکعته تیر شوی وی صرف یو رکعت له امام سره پیدا کړی نو هغه دوه رکعته به داسی کوی چه پر دغه اول اول رکعت به کښینی یعنی قعده به کوی که دا ونکړی نو ګویا واجب قعده یې پریښوده. سجده سهو وربانذی واجب ده. که سجده سهو هم ونکړی نو لمونځ به دوباره کوی.

(فتاوی دارالعلوم ص۲۹۷ بحواله ردالمختار ص۶۹۵ ج۱)

**مسئله** : که پر امام باندی سجده سهو واجب وه ، نو موړی سجده سهو وکړی پر التحیات ناست وی بل څوک راشی په دی حالت کې اقتداء پسی وکړی نو اقتداء یې صحیح ده .سجده سهو به دوباره نه کوی.

(شامی ص۵۲٦ ج۱)

**مسئله** : که چیري څوک مسبوق وی (یعنی څو رکعته ځنی تیر شوی وی بیا له امام سره شریک شی د امام له سلام ګرځولو وروسته خپل پاتی لمونځ هم پوره کړی. او بیا وروسته دا معلومه شی چه د امام

لمونځ په څه وجه فاسد شوی دی. نو د دغه مسبوق لمونځ هم صحت نلري څکه چه بنایی اصلاً صحیح شوی نه ده.

(فتاوی دارالعلوم ص٣١٩ج٣بحواله ردالمختار ص٥٥٣ج١)

**مسئله** : د مسبوق لپاره حکم داده چه کله له امام سره شریک شی ، ثناء اوتعوذ به نه وایی اوکله چه یی وروسته خپل پاتی لمونځ راګرځاوه نو هلته به ثناء اوتعوذ وایی. که قرائت جهری وی که خفیه په دواړوکې همداسی حکم دی. (فتاوی دارالعلوم ص٣٩٢ج٣،بحواله ردالمحتار ص٤٥٦ج١)

**مسئله** : که څوک تنها لمونځ کوی او وخت هم د جهری لمانځه وی نو افضل داده چې په زوره قرائت وایی په دی شرط که نوروته دا په زوره قرائت ویل تکلیف نه رساوه.

**مسئله** : که د ټولو لمونځ قضاء شوی وی ، نوپه راګرځیدلوکې به یی امام په زوره قرائت وایی. (هدایه ص٧٢ج١،شرح نقایه ص٨٢ج١)

**مسئله** : که چیري مسبوق په هیره له امام سره سلام وګرځوی ، که یو طرف ته وی که دواړوخواوته نو یکارده چه دی بیرته ولاړشی اوپاتی رکعتونه پوره کړی ، په هغه سلام ګرځولو سره یی لمونځ نه فاسد یږی. (فتاوی دارالعلوم ص٢٩٣ج٣، ردالمختار ص٥٨١ج١،فتاوی محمودیه ص١٣٠ج٢)

**مسئله** : که چیري مسبوق په هیره سلام وګرځوی ،خوبل څوک یی ورپه یادکړی اوبیا ولاړشی نو په سجده سهوسره یی لمونځ صحت لري. په دی شرط چه د بل چاپه ویناعمل نه بلکې پخپله یی په همدغه حالت کې ور یادکړی اوبیا پردغه خپله یادونه باندی عمل وکړی او ولاړشی. یعنی که ده ته بل څوک دا ورپه یادکړی چه رکعتونه دې څنی تیرکړی نودی سمدستی ولاړشی ،مطلب یی دا شوچه د هغه



پروینایی عمل وکړ اوپه دی سره د ده لمونځ فاسدیږی. اوکه چیري دی په دغه وخت کې چه دابل سړی یی ورپه یادکړی ،په عین حال کې دی داسی لږفکر وکړی ګویاپخپله داورپه یادشوه اوپه همدغه خپل یادیی عمل وکړ، نولمونځ یی صحیح دی خوسجده سهوبه کوی.

(فتاوی دارالعلوم ص٢٩٣ج٣،ردمختار ص٥٨١ج١، فتاوی محمودیه ص١٣٠ج٢)

**مسئله** : مسبوق که په هیره سلام وګرځوی ، نوپرته له دی چې خبری وکړی یاد دعاء لپاره لاس پورته کړی ، د پاتی لمانځه لپاره به ولاړیږي خوکه د دعاء لپاره یی لاس پورته کړی وی اوپه عربی یی دعاء لوستل پیل کړی وی نولمونځ یی صحیح دی په اخیره کې به سجده کوی.(فتاوی دارالعلوم ص٣٨٢ ج٣،ردالمختار ص٥٦٠ج١،باب الاستخلاف)

## په مسبوق پسې اقتداء کول

**مسئله** : هغه سړی چه څو رکعتونه څنی تیرشوی وی ، اوبیا د امام ترسلام ګرځولو وروسته د خپل پاتی لمانځه د پوره کولو لپاره ولاړشی ، اوپه دی حالت کې بل څوک راشی په ده پسی اقتداء وکړی نودا اقتداء یی صحیح نه ده. څکه چه یوسړی هم مقتدی او هم امام کیدای نشی. (فتاوی دارالعلوم ص٣٧٦ج٣)

سوال : که چیري پریوه ځای دوه ٢ نفره له اما سره په جماعت کې شریک شی او دواړه له سلام ګرځولو وروسته د پاتی لمانځه لپاره ولاړشی خویوه ته پخپل لمانځه کې شک وی. نودا خپل ملګری ګوری (یعنی هغه ته فکرکوی) اود هغه په څیر خپل رکعتونه پوره کوی ، نوپه دی صورت کې د دغه مسبوق سړی لمونځ صحت لري؟

خواب : په دغه صورت کې د ده لمونځ صحیح دی او را اګر ځید لو ته یې ضرورت نشته. البته که هغه ملګری ته د خپل امام په سترګه ګوری یعنی د اقتداء په نیت لمونځ پسې پوره کوی ، نو بیا صحت نلری او لمونځ به راګرځوی. (فتاوی رحیمیه ص۱۳۸ج۱،بحواله درالمختار مع شامی ص۵۵۸ج۱)

سوال : په حرم شریف کې د حج پر مهال اکثراً خلک د ډیر والی لامله په لار کې کې درېږي او هغه خلک چه مسبوق وی یعنی رکعتونه ځنی تیروی ، نو هغه پاتی لمونځ کول ډیر ورته مشکل وی ځکه چه دا مخکښی خلک د وتلو کوشش کوی ، او همدا راز نور هم داسی مقامات راځی ، نو سړی به څه چل کوی ؟

جواب : په داسی حالاتو کې که چیري سړی داسی وکړی چه له امام سره په اخیره قعده کې صرف التحیات ترعبده ورسوله پوری ولولی. او بیا ولاړ شی خپل پاتی لمونځ په چټکې سره پوره کړی نو څه حرج نشته ، لمونځ یې صحت لری.

خو که دومره وخت مخکې ولاړ شی چې د التحیات په اندازه نه وي کښېنستلی لمونځ یې فاسد دی. (کبیري ص۴۳۹،فتاوی رحیمیه ص۱۳۶،ج۱)

مسئله : د اخترونو او جمعې او داسی نور اجتماعی ځایونو کې که ځای ډیر تنګ وی نو د وروستی صف خلک د مخکې صف د خلکو پر شاګانو سجده لګولای شی . (شرح نقایه ص۷۹ج۱،کبیری ص۲۸۶)

یادونه : له دغو دوو پورتنیو مسئلو څخه دی هر وخت فایده وانه خیستله شی ځکه چه عامه خلګ په یو دول سرګردانی کې را ایساریږي - محمدرفعت قاسمی غفرله )



## پر مسبوق باندی دسجده سهوی حکم

مسئله : مسبوق که په هر حال کې له امام سره شرکت وکړی ، که امام سجده سهو کوی ، دی به هرو مرو سجده سهو ورسره کوی یعنی امام که د دې مسبوق له ګډون څخه مخکې غلط شوی او که وروسته. خو که پر امام باندی سجده نه وی. پر مسبوق باندی هغه وخت سجده سهو لازمه شی چه دی دامام له سلام ګرځولو وروسته د پاتی لمانځه لپاره پورته شی. په هغه وخت کې به دی خپله جدا سجده سهو کوی ځکه چه په دغه وخت کې دی د منفرد (تنها لمونځ کوونکې) حکم لری. (فتاوی دارالعلوم ص۳۹۱ج۴،درمختار ص۶۸۳ج۱، وغیره ....)

## پر منفرد او مقتدی باندی د سجده سهو حکم

مسئله : د واجب د پرېښودلو په وجه پر منفرد باندی هم سجده سهو واجبیږی او مقتدی باندی هم. مګر پر مقتدی باندی د خپلی غلطی له کبله نه بلکې د امام د خطایی په وجه ورباندی لازمه ده. یعنی که امام د خپلی غلطی په وجه سجده کوی نو پر مقتدی باندی لازمه ده چه د هغه پیروی به کوی. او پر مسبوق باندی لازمه ده ، که څه هم مسبوق مقتدی بلل کیږی. خو هغه وخت به یې کوی چه خپل پاتی لمونځ پوره کوی ، ځکه تر دې مخکې اداء کول یې بیا د امام مخالفت راځی.

(درمختار ص۶۸۳ج۱،آپ کی مسایل ص۳۶۲ج۳)

## مقیم ، مقتدی به په مسافر امام پسی سجده سهو څنګه کوی؟

مسئله : که چیري یو مقیم په مسافر امام پسی د لمانځه اقتداء وکړی چه په دی حال کې له امام څخه داسی غلطی وشوه چه سجده سهو ورباندی لازمه شوه. نو اوس به دغه مقیم مقتدی څه کوی؟

په دې کې دوه قوله دي: یو داچې دی دې له خپل امام سره سجده سهو وکړي او د امام له سلام ګرځولو وروسته دې خپل پاتې رکعتونه پوره کړي.

دويم قول دا دی چه دغه مقيم مقتدي به په سجده سهو کې د امام پيروي نه کوي بلکې هغه وخت چه خپل پاتې دوه رکعتونه هم پوره کړي بيا دې سجده سهو کوي. (درمختار ص۶۸۴ج۱)

## پر لاحق باندې دسجده سهوی حکم

**مسئله :** لاحق (هغه څوک دی چې له امام سره ئې په تکبير تحريمه کې اشتراک کړی وی خو بيا د څه عذر په وجه له لمانځه وتلی او بيرته ورسره ګډ شوی وی ؛ دی ته لاحق وايي ) نو دغه به سجده سهو د لمانځه په اخيره کې هم کوي، که څه هم يوځل يې له امام سره هم وکړي. ځکه چه په لومړي سر کې ده داسې عزم کړی ؤ چې په ټولو ارکانو کې به د امام پيروي کوي ، نو له امام سره سجده سهو به يې هغه اراده پوره کول وي او خپله جدا سجده به يې د سهوي (غلطي ) د اصلاح په وجه وي. (درمختار ص۶۸۴ج۱)

**مسئله :** که چيرې کوم سړی لاحق هم وي او مسبوق هم مثلاً د يو څو رکعتونو له تيريدلو وروسته له امام سره شريک شوی وی او له همدې شرکته وروسته يې څو رکعتونه له منځه ولاړ شي ، نو هغه ته پکار ده چې لومړی خپل هغه رکعتونه اداء کړي چې له شرکته وروسته ورڅخه تيرشوي وی يعنې په هغو کې چې دی لاحق بلل کيږي. له دې وروسته که چيرې جماعت بيا هم باقي وو نو بيا دې په هغه کې شريک وي او که نه نو خپل پاتې لمونځ دې پوره کړي ، خو په هغه کې به د



امام د متابعت خيال ساتي و وروسته له هغه چې خپل هغه رکعتونه اداء کړي چې په هغوی کې دی مسبوق دی.

**مثال :** د ماز يګر په لمانځه کې د يوه رکعت له تيريدلو وروسته څوک له امام سره شريک شو خو له شرکته وروسته يې اودس مات شي ، دی د اوداسه لپاره ولاړ شي په دغه حالت کې لمونځ ختم شي. نو دی به اول هغه درې رکعتونه اداء کوي چه له شرکته وروسته ځنې تيرشوي وی ، او بيا به هغه رکعت اداء کوي چه تر شرکت مخکې ورڅخه تير شوی وی. او دغه درې واړه رکعتونه به د مقتدي غوندې اداء کوي يعنې قرائت به نه وايي او د دې درې رکعتونو په اول رکعت کې به قعده کوي ځکه چه دغه د امام دويم رکعت دی. او امام په دې کې ناسته کړې وه. بيا به په دويم رکعت کې هم ناسته کوي ځکه چې دغه دويم رکعت شو. او بيا به په دريم رکعت کې هم ناسته کوي ځکه چه دغه د امام څلورم رکعت دی. او امام پکې قعده کړې وه او بيا يې سلام ګرځولی وو. له دې وروسته به هغه رکعت چه د ده له شرکت څخه مخکې ورڅخه تيرشوی وو، اداء کوي او په رکعت کې به هم ناسته کوي ځکه چه دغه رکعت د ده څلورم رکعت دی او بل دا چې په دغه رکعت کې به دی د مقتدي غوندې نه کوي ځکه چه په دې رکعت کې دی مسبوق دی يعنې د منفرد حکم لري. دلته به قرائت هم وايي.

(علم الفقه ص۹۷ج ۲ ، ردمختار نماز مسنون ص۱۲۸)

**مسئله :** په صلوة الخوف کې لومړی ډله د لاحق حکم لري ، يعنې خپل پاتې يو يا دوه رکعته به بې له قرائت اداء کوي. او دويمه ډله بيا

د مسبوق حکم لری چې خپل پاتې رکعتونه به د منفرد غوندې اداء کوی. (نمازمسنون ص۸۲۷—۸۲۸)

همداراز که کوم مقیم شخص په مسافرامام پسې لمونځ کوی نوهغه سرې د امام ترسلام ګرځولو وروسته لاحق دی.
(بحواله مسلم ص۲۲۰ ج۱، اعلاء السنن ص۳۷۶)

**که امام له سلام ګرځولو څوشیبې وروسته سجده سهو وکړی نو مسبوق به څه کوی؟**

**مسئله** : که چیري پرامام سجده سهو واجب وه ، خوهیره یې وه ، دواړوطرفونوته یې سلام وګرځاوه ، په دې حال کې مسبوق دخپل پاتې لمانځه لپاره ولاړشی وروسته امام ته وریه یاد شی اوسمدستی سجدې ته ولاړی ، نومسبوق به په دغه حالت کې بیرته راوګرځی اوسجده سهو به له امام سره وکړی ، په دې شرط چې سجده یې کړی نه وی. که یې سجده کړی وه ، بیابه نه راګرځی ، خپل لمونځ به پوره کوی اوکه را وګرځی نولمونځ یې فاسدیږی. اوکه چیري یې سجده هم کړی نه وی خوبیاهم له امام سره سجده سهو کولوته را ونه ګرځی ، بیایې هم لمونځ صحت لری خوپه اخیره کې به سجده سهو کوی.
(فتاوی عالمګیری ص۶۶ ج۱)

**مسئله** : که چیري یومسبوق له امام سره سجده سهو ونکړی او دخپل پاتې لمانځه لپاره ولاړشی خوپه دغه پاتې لمانځه کې بیاله ده څخه هم کومه غلطی وشی نوپه اخیرکې یوه سجده کول ورته کافی دی. د اولې اودویمې دواړو غلطیو لپاره. البته که دغه مسبوق سلام ته له انتظارکولو پرته ولاړشی ، ګنهګار دی. (فتاوی عالمګیری ص۶۶ ج۱)



## که په لمانځه کې له خطاکیدلو وروسته د امام اودس هم مات سی؟

**مسئله** : که چیري یوامام په لمانځه کې سهوشی ، له دې وروسته حدث (بې اودسی) هم ورته ورسیږی ، اوامام یومسبوق مقتدی خپل خلیفه یانائب وګرځوی نوترسلام ګرځولوپوری دی دغه مسبوق لمونځ پوره کړی خوسلام به نه ګرځوی ، څه وخت چې دسلام ګرځولو وخت شی نوهغه به یوبل تن چه مدرک وی (یعنی له امام سره یې پوره لمونځ نیولی وی ) هغه به مخ ته کړی ، هغه مدرک چې راشی که سجده سهو کوی ، د هغې خطاچې له امام څخه صادرشوې وه ، نودغه مسبوق به هم سجده سهو ورسره وکړی. بیابه خپل پاتې لمانځه ته ولاړشی. (عالمګیری ص۶۶)

## په لمانځه کې د بې اودسۍ بیان

په لمانځه کې که چیري څوک بې اودسه شی په حدث اکبرسره نولمونځ یې فاسد دی. اوکه په حدث اصغرسره بې اودسه شی نوله دووحالوبه خالي نه وی یابه اختیاری وی اویابه غیراختیاري. که اختیاری وی نولمونځ فاسد دی. مثلاً څوک په لمانځه کې قصداً په قهقه سره وخاندی ، یاپه بدن کې دیوځای په وهلوسره یې له بدن څخه وینه ووزی ، یایې هواووزی عمداً او داسې نور.... په دې ټولوصورتونوکې یې لمونځ فاسدیږی. ځکه چې دا ټول افعال دانسان په اختیارسره له سرې صادریږی. اوکه غیراختیاري وی نوبیا دوه صورتونه دی یودا چې نادرالوقوع وی لکه په قهقه سره خندل ، لیونی کیدل ، بې هوښې راتلل وغیره اوبل دا چې کثیرالوقوع وی لکه د هوا وتل ، بولی ، نجاست مذی اوداسې بل شی... نه د

نادر الوقوع په صورت کې لمونځ فاسدیږي او که کثیر الوقوع وي نو بیا نه فاسدیږي. بلکې هغه سړي دا اختیار لري چې له بې اودسۍ وروسته اودس وکړي خپل لمونځ پسې پوره کوي او که اودس کوي بیا له سره لمونځ کوي. خو که داسې وکړي نو أفضل او بهتره دا ده.

په دې صورت کې دلمانځه د نه فساد څو شرطونه دي:

(۱)- یو رکن به د حدث (بې اودسۍ) په حالت کې ادا کوي نه.

(۲)- کوم رکن به د تللو په وخت کې اداکوي نه. مثلاً کله چې اوداسه ته ځي یا له اوداسه راځي، د قرآنکریم تلاوت به نه کوي ځکه چې قرائت دلمانځه رکن دی.

(۳)- کوم داسې عمل به نه کوي چې دلمانځه سره منافي وي. او نه به داسې یو فعل کوي چې ځان ساتل ورځخه ممکن وي.

(۴)- د بې اودسۍ له پېښیدو وروسته به له څه عذره پرته دیوه رکن د ادا کولو په مقدار توقف نه کوي. بلکې فورا به د اوداسه لپاره ځي. مگر که عذر وي، سمدستي نشي تلای، مثلاً صفونه زیات وي او دی خپله په لومړي صف کې تر نورو صفونو راتیریدل ورته گران وي، بیا که څه وځنډیږي، څه حرج نشته.

(۵)- مقتدي به په هرحال کې او امام به په هغه صورت کې که چیري جماعت باقي وي، لمونځ پر هغهٔ ځای اداکوي چې اول یې شروع کړی وي.

(۶)- امام که یو داسې څوک د ځان خلیفه گرځوي چې په هغه کې د امامت صلاحیت او وړتیا نه وي.



منفرد که چیرې بې اودسه شي نو هغه ته پکار ده چه فوراً سلام وگرځوي او اودس وکړي او څومره چې ژر ممکن وي له اوداسه نه دې ځان وزگار کړي مگر اودس به د خپلو ټولو شرائطو سره کوي. او به که نژدې پیدا کیږي لیرې به نه پسې ځي. له اوداسه وروسته یې خو بنه ده لمونځ پر هغه ځای کوي او که هغه ځای ته ورځي چې ترمخه یې پیل کړی وو.

**مسئله:** مقتدي ته په هرحال کې پکار داده چې خپل ځای ته ورشي او لمونځ تمام کړي که جماعت پاتې وي کنه؟ که چیري امام مسبوق مقتدي پر خپل ځای خلیفه کړي نو هغه ته پکار ده چې څومره رکعتونه د امام پر ذمه پاتې دي هغه پوره کړي او بیا یو مدرک خپل ځ ځای ته ولاړ شي او د پاتې رکعتونو په ادا ینه کې مصروف شي.

**مسئله:** که چیري چاته په اخیره قعده کې له دې وروسته چې د التحیات په قدر کښینستی وي، لیونتوب ورپیښ شي یا حدث اکبر ورپیښ شي او یا عمداً حدث اصغر وروړ سبیږي. یا بې هوښه سي او یا په قهقه سره وخاندي نو لمونځ فاسدیږي د دغه لمانځه راگرځول لازمي دي. (علم الفقه ۱۱۱ تر ۱۱۳ ج ۲)

(د دې مسلې د تفصیل لپاره د مؤلف یو بل ترتیب شوی کتاب (مسائل امامت) وگورئ. محمد رفعت قاسمي غفرله)

## که امام سورة الناس ولولی نو مسبوق به کوم یو وایي؟

**مسئله:** که یو سړی د ماښام په لمانځه کې په دویم رکعت کې شامل شو او امام په همدې دویم رکعت کې د الناس سورة (قل اعوذ برب الناس) ووایی نو په دې صورت کې مسبوق ته پخپل پاتې لمانځه کې اختیار ده چې له ټول قرآن شریف څخه چې کوم سورة وایي او له کومه

ځایه یې وایي. ځکه چې د قرائت په سلسله کې دغه پاتې لمونځ د ابتداء په حکم کې وي. (فتاوی دارالعلوم ص۳۷۷ ج۳ بحواله درمختار ص۵۵۷ ج۱)

**مسئله** : د أحنافو مسلک دا دی چې مسبوق چې کوم رکعات د امام له سلام ګرځولو. وروسته اداء کوي، که څه هم ظاهراً په اخیره کې اداء کیږي. او د تشهد په لحاظ هغه اخیر دی اوله امام سره چې یې کوم رکعتونه پیدا کړیدي هغوی د تشهد په اعتبار اول دي. او د قرائت په اعتبار اخیر دي. (نمازمسنون ص۸۳۱، کتاب الفقه ص۲۰۱ ج۱)

## دجماعت په راګرځولو کې دنوي لمونځ کونکي شرکت

**مسئله** : که چیري دکوم فرض دپاتـه کیدو په وجه لمونځ بیرته راګرځول کیږي، نو دا صحیح ده چې نوي لمونځ کوونکي په هغه کې ګډون وکړي ځکه چې اول لمونځ راګرځول باطل کیږي او که چیري دواجب دپاتـه کیدو پـه وجه لمونځ بیرتـه راګرزول کیږي نو اوس د نوي لمونځ کوونکي لپاره شرکت صحیح نه دی. ځکه چې فرض لمونځ مخکې ادا شوی دی. او دا صرف د تکمیل لمونځ دی.
(فتاوی محمودیه ص۲۶۸ ج۱۰، طحطاوی ص۱۳۲ ج۱، فتاوی دارالعلوم ص۵۱ ج۲، بحواله ردالمختار ۴۲۶ ج۱)

**مسئله** : که چیري کوم شخص (یاامام) پرذمه باندي سجده سهو لازمـه وي خـو هیره یـې شـي اداء نکړي نو لمونځ یـې نـاقص دی. راګرځول یې ضروري دي. خو د راګرځولو پـه صورت کې هغـه لمونځ نفل دي او فرض لا لـه مخکې ادا شوي. دغـه دویـم ځل لمونځ یې د تکمیل لپاره دده نو همدا وجه ده چې که چیري دوباره دغه لمونځ پـه جماعت سره کیږ او پـه عین حال کې بل څوک راشي دفرض پـه نیت



پسـی اقتداء وکړي نـو ده لمونځ نـه اداکیږي بیابـه یې راګرځوي. ځکه چې په متنفل پسی د مفترض اقتداء صحت نلري.
(مسایل سجده سهو ص۴۷ بحواله شامی ص۴۲۴، فتاوی رحیمیه ص۱۳۶ ج۱، فتاوی محمودیه ص۲۱۷ ج۲)

**مسئله** : که چیري له اول نـاقص لمانځـه وروسته سمد ستي لمونځ راګرځوي نـو د اقامت اړتیابیا نشته لومړی اقامت یې کافي دی. او که څه ځنډ وروسته یې راګرځوي نو بیابه تکبیر یعنی اقامت ورته کوی. (فتاوی رحیمیه ص۲۱ ج۳، شامی ص۳۷۲ ج۱)

**مسئله** : که بیاهم په دواړو صورتونو کې دویم ځل اقامت وکړي، څه حرج نشته. (فتاوی دارالعلوم ص۱۱۰ ج۲، بحواله ردالمختار ص۳۷۱ ج۱)

## د دعاء فضائل او آداب

د آنحضرت ﷺ پـه معتبرو احـادیثو کې د دعـاء ډېر داسـی فضـائل او آداب د تعلیم پـه توګـه بیـان کـړل شـوي دي، چې کـه څوک هغـه تعلیمـات خپـل کـړي نـو بـی لـه شـکه چې دا ډول دعـاء د کامیابی او فلاح کیلي ګرځي. مګرکه چیري څوک یو وخت دغـه ټول یاځینی آداب پوره نه کړای شي نو پکار دا نه ده چې هغـه بـه نـو دعـاء پریږدي بلکی دعاء پـه هر وخت او هر حال کې مسلمان باید پرینږدی او همیشه له الله ﷻ د هغه د قبولیت امید ولري.

د دعاء دغـه آداب پـه بیلابیلو احادیثو کې بیان شوي دي. د ټولو احادیثو رانقلول د دې کتاب حجم زیاتوی نو ځکه موږ دلتـه صرف د یوه حدیث مضمون او خلاصه او د هغه کتاب پرحوالـه اکتفا کوو چې دغه حدیث له سنده سره پکښې موجود دی.

(۱ - ادب: په خوراک، څښاک، اغوستلو او ګټلو کې به له حرامو څخه ځان ساتی. (رواه مسلم ، والترمزی عن ابی هریرة رضی الله تعالی عنه )

(۲ - په اخلاص سره دعاء کول ، یعنی په زړه کې داسی پوهیدل چې له الله ﷻ پرته بل هیڅوک زما مقصد پوره کولای نشی . (مستدرک حاکم)

(۳ - له دعاء څخه مخکې یو نیک کار کول، او د دعاء په وخت کې د هغه داسی یادونه کول چې یا الله ما دغه فلانی عمل خاص ستا د رضاء پخاطر ترسره کړ، یا الله ته د همدې عمل په برکت زما کارونه را روغ کړې. او زما دعاء قبوله کړې. (مسلم، ترمذی، ابوداؤد)

(۴ - په پاک بدن او پاکو جامو او پاک ځای باندی دعاء کول. (سنن اربعه، ابنی حبان، متدرک حاکم )

(۵ - په اوداسه سره دعاء کول . (صحاح ستة عن ابی موسی الأشعری )

(۶ - د دعاء پرمهال قبلې ته مخ کول. (صحاح ستة عن عبدالله بن زیدبن عاصم رح )

(۷ - پر دوو ځنګنو کښیناستل. (ابوعوانه، سعدبن وقاص رضی الله تعالی عنه )

(۸ - د دعاء په اول او اخیر کې د الله تعالی حمد او ثناء ویل.

(صحاح ستة عن انس رضی الله تعالی عنه )

( ۹ - همدا راز د دعاء په اول او اخیر کې پر نبی کریم ﷺ درود شریف ویل. (ابوداؤد، ترمزی، نسایی، ابن حبان، مستدرک)

(۱۰ - د دعاء په وخت کې دواړه لاسونه غوړول. (ترمذی، مستدرک، حاکم)

(۱۱ - دواړه لاسونه تر اوږو پوري برابر پورته کول . (ابوداؤد، ترمذی، نسائی)

(۱۲ - په ادب او تواضع سره کښیناستل. (مسلم، ابوداؤد، ترمذی، نسائی)

(۱۴ - د خپلې عاجزۍ او محتاجۍ یادونه کول. (ترمذی)

(۱۵ - د دعاء په وخت کې آسمان ته پورته نه کتل. (مسلم)



(۱۶ - د الله تعالی اسماء حسنی او د هغه د ښتړو صفاتو په ذکر کول.

(ابن حبان ، مستدرک)

(۱۷ - د دعاء په الفاظو کې د قافیه بندۍ له تکیلف څخه ځان ساتل.

(بخاری)

(۱۸ - دعاء که د نظم په بڼه وی نو له ترنم ویلو څخه یې ځان ساتل .

(حصن حصین)

(۱۹ - د دعاء په وخت کې په انبیاء کرام ﷺ او نورو صالحو بندګانو سره توسل کول ، یعنی داسی ویل چې: یا الله د دغو مقبولو بندګانو په طفیل سره زما دعاء قبوله وګرځوی. (بخاری بزاز، حاکم)

(۲۰ - دعاء په ټیټ آواز سره کول. (صحاح سته، عن ابی موسی رضی الله تعالی عنه)

(۲۱ - په هغو دعاګانو سره ډیر دعاء کول چې له آنحضرت ﷺ څخه منقول دی. ځکه چې آنحضرت ﷺ په دین او دنیا کې هیڅ داسی یو حاجت پری ایښی نه دی چې د هغه لارښونه یې کړی نه وی. (ابوداؤد ، نسائی، عن ابی بکرة الثقفی)

(۲۲ - په داسی الفاظو دعاء کول چې ډیری دینې او دنیاوي حاجاتو ته شامل وي . (ابوداؤد)

(۲۳ - په دعاء کې به لومړی ځان، بیا مور او پلار او بیا نو عام مسلمانان یادوی. (مسلم)

(۲۴ - که امام وی نو تنها ځان لپاره به دعاء نه کوی بلکې د جماعت ټول شریکان به ورسره یادوی. (ابوداؤد، ترمذی، ابن ماجه)

روایت: د ابوداؤد روایت چې وایی ،کوم امام چې په دعاء کې یوازی خپل نفس یادوی نو هغه خپل قوم سره خیانت وکړ. مطلب دا چې په

لمانځه کې به امام داسې دعاء نه غواړي چې يوازې تر ده پورې خاص وي مثلاً داسې وواييې « اللهم اشف ابنی » يعنې، اې الله ! زما زوی ته شفاء ورکړې. يا داسې وواييې: « ارجع الی ضالتی » يعنې زما ورک شوی شی راپيدا کړه. بلکې داسې دعاء به کوی چې ټولو مقتديانو ته شامله شي. لکه «اللهم اغفرلی وارحمنی» او يا داسې نور۔ « هذاما افاده شيخنا حکيم الامت حضرت مولانا اشرف علی تهانوی رحمه الله ، ولشراح الحديث فيه مقالات ياباها نسق الحديث والله اعلم»

(٢٥ - په عزم سره به دعاء کوی. (يعنې داسې به نه وايي چې الله ! که ته غواړې زما کار پوره کړې. (صحاح ستة ص٢٢٨)

(٢٦ - په ډېر رغبت، مينه او شوق سره به دعاء کوی.
(ابن حبان، ابوعوانه، عن ابی هريره رض)

(٢٧ - څومره چې ممکنه وی د حضور د برابرولو کوښښ به کوی او د دعاء د قبوليت به ډېر اميدوار وی. (مستدرک)

(٢٨ - په دعاء کې به تکرار زيات کوی يعنې په څو څو واره به د خپل حاجت غوښتنه کوی چې لږترلږه درې ځله به هرومرو وی.
(ابوداؤد - ابن السنی)

فائده :- په يوه مجلس کې درې ځله دعاء مکرر کول او يا په دريو مجلسو کې دعاء تکرارول، دواړه ډول دعاء صادق دی. مگر دا تکرار د انفراد په حالت کې خاص دی. او په جماعت سره دوعاء کول، بيا دويمه او دريمه دعاء کول لکه په ځينو خلکو کې چې دا ډول رواج دی. دا هيڅ ډول ثبوت نه له صحابه، نه له تابعينو او نه له سلفو څخه لري. په دې توگه د دعاء التزام بدعت دی.



(٢٩ - په دعاء کې به الحاح او اصرار ډېر کوی. (نسايي، حاکم، أبوعوانه)

(٣٠ - د کومې گناه يا صله رحمې د پرېکولو دعاء به نه کوی.
(مسلم، ترمذی)

(٣١ - د داسې شي دعاء به نه کوی چې هغه ناشونی وی. (مثلاً ښځه به داسې نه وايي چې زه دې نر شم او يا د لوړ قد والا سړی به نه وايي چې زه دې ټيټ شم او يا بلعکس او داسې نور۔ (نسايي)

(٣٢ - د کوم محال (ناشوني) شي دعاء به نه کوی. (بخاری)

(٣٣ - د دې دعاء به نه کوی چې الله تعالی رحمت تر خپل ځان پورې مخصوص کاندی. (بخاری، ابوداؤد، نسايي، ابن ماجه)

## د دعاء د اجابت (قبليدلو) وختونه

(يعنې د دعاء د قبليدلو خاص وختونه )

لکه څرنگه چې مخکې هم وويل شول چې دعاء هر وخت الله تعالی قبلوی او مسلمان بايد هميشه د دعاء د قبوليت توقع ولری نا اميدی ونکړی. چې دا يوه لويه گناه ده. مگر دلته چې د کومو وختونو يادونه کيږی، دا هغه وختونه دي چې په دې کې دعاء کول ښه فضيلت لری او د قبليدلو يې ډېر زيات اميد وی. نو پکار ده چې دا وختونه را څخه ضائع نه شي:

(١ - شبقدر (د قدر شپه ) د روژې مبارکې لس ورځو کې هغه طاق ورځې لکه ٢١، ٢٣، ٢٥، ٢٧، او ٢٩ ورځې شپې، او په دوی کې بيا خاص د ٢٧م شپه ډېر د اهتمام وړ شپه ده بايد سړی ډېر محتاط واوسي يعنې ډېرې دعاء گانې وکړی .(ترمذی، نسائی، ابن ماجه، مستدرک)

(۲ - د عرفات ورځ: چې دا هم د دعاء د قبولیت لپاره نهایت مبارکه او مخصوصه ورځ ده. (ترمذی)

(۳ - د جمعې شپه او ورځ: دا هم مبارک او د دعاء لپاره مخصوصه اهمیت لرونکې شپه او ورځ ده. (ترمذی، حاکم)

(۴ - د روژې مبارکې میاشت: د روژې مبارکې تولې ورځې او شپې د خیر او برکت ځخه ډکې دی، په دې ټولو کې دعاء قبلیږی.
(بزار عن عباده بن الصامت رضی الله تعالی عنه)

(۵ - په هره شپه کې د شپې لومړی دریمه برخه (احمد ابو یعلی) وروستی دریمه برخه (مسند احمد) نیمه شپه (طبراني) د شپیلی وخت. (صحاح سته)

(۶ - د جمعه په ورځ یوه گړی په صحیح احادیثو کې راځی چې د جمعې په ورځ داسې یوه گړۍ شته چې په هغه کې که دعاء وغوښتله شی، قبلیږی مگر د دغی گړی په تعین کې اقوال او روایات مختلف دی. د محققینو په نزد فیصله دا ده چې د دغه گړی د جمعی په ورځ گرځی او راگرځی، کله یو وخت او کله بیا په بله شیبه کې راشی. خود نورو صحابه وو او تابیعینو له اقوالو ځخه د دوو وختونو ترجیح ثابتیږی:

(۱ - یو هغه وخت چه امام خطبې ته کښینی او بیا له لمانځه ځخه د فارغ کیدو تر وخته پوری. (مسلم عن ابی موسی الأشعری رح والنووی)

یادونه: مگر د خطبې په منځ کې که دعاء کوی نو په ژبه به یی نه وایی چه دا منع ده. بلکې په زړه کې به یی دعاء کوی. یا هغه دعاگانی چه خطیب یی کوی پر هغوی باندی په زړه کې آمین آمین وایی



او دویم د ماز یگر وخت دی، ترلمر لویدو پوری.
(ترمذی، احمد عن عبدالله بن سلام رح ورجعه الترمذی وغیره)

فائده: نو هر صاحب حاجت ته پکار ده چې دواړه وخته په دعاء کې مشغول و اوسی ځکه چې د دومره لوی نعمت د ترلاسه کولو لپاره دومره لږ وخت ځان مصروف ساتل ځه مشکل نه دی. (والله سبحانه وتعالی اعلم)

## د دعاء د مقبولیت ځینی خاص حالات

(۱ - د آذان پر مهال. (ابو داؤد، مستدرک)

(۲ - د آذان او اقامت ترمنځ مهال. (ابوداؤد، ترمزی، نسائی، ابن ماجه)

(۳ - د حی علی الصلوة، حی علی الفلاح نه وروسته د هغه چا لپاره دعاء کول چې په ځه مصیبت کې گرفتار وی، ډیره مجرب او مفیده ده. (مستدرک)

(۴ - د جهاد په میدان کې د صف برابرولو پر مهال. (ابن حبان، طبرانی، موطا)

(۵ - د جهاد په ډگر کې د سختې جگړې په حالت کې. (ابوداؤد)

(۶ - له فرض لمانځه وروسته. (ترمذی، نسائی)

(۷ - د سجدې په حالت کې. (مسلم، ابوداؤد، نسائی، مگر په فرض لمانځه کې نه)

(۸ - د قرآنکریم د تلاوت وروسته. (ترمذی، او خصوصاً د قرآن د ختم نه وروسته، طبرانی، ابویعلی) او په خاصه توگه د تلاوت کوونکې دعاء د اوریدونکې په نسبت زیاته مقبوله وی. (ترمذی، طبرانی)

(۹ - د زمزم د ابو ځښلو پر مهال. (مستدرک، حاکم)

(۱۰ - مړي ته د حاضریدلو په وخت کې. یعنی ځوک چې چاته په داسې حالت کې ورشی چې هغه د ځکندن په حال کې وی. نو که دغه سړی دا مهال دعاء وکړی هم یی الله تعالی نه ردوي. (مسلم وسنن اربعه)

(۱۱ - د چرګ د بانګ کولو پر مهال. (بخاری،مسلم،ترمذی،نسائی)

(۱۲ - د مسلمانانو د اجتماع پر مهال. (صحاح سته عن عطیة الانصاریة)

(۱۳ - د ذکر په مجلس کې. (بخاری،مسلم،ترمذی)

(۱۴ -چې امام «ولاالضالین» وایی پر دا مهال .(مسلم،ابوداؤد،نسائی،ابن ماجه)

یادونه :- ظاهراً له دې نه د امام جزری هغه حدیث دی چې ابوداؤد په باب التشهد کې ذکر کړیدی«واذا قرأغیرالمغضوب علیهم ولاالضالین،فقولوآمین. یحبیکم الله تعالی» یعنې کله چې امام ولاالضالین ووایی نوتاسی آمین وایاست ،الله تعالی به ستاسی دعاګانې قبولې کړی. له دې نه معلومه شوه چې په دې ځای کې له دعاء څخه صرف آمین ویل مراد دی. نوري دعاء ګانې مراد نه دی.(آمین هم په زړه کې سوکه ویل بهتردی

(۱۵ - د اقامت پر وخت. (طبرانی،ابن مردویه)

(۱۶ - د باران اوریدو پر مهال . (ابوداؤد،ابن مردویه عن سهل بن سعدالساعدی) امام شافعی رحمه الله په کتاب الام کې فرمایی چې ما له ډیرې صحابه او تابعینو څخه دا عمل اوریدلی دی چې دباران اورویدو پر وخت به یې په خصوصیت سره دعاء غوښتله.

(۱۷ - پر بیت الله شریف باندې د نظر لګیدلو پر وخت. (ترمذی وطبرانی)

د سورة الانعام په دې آیة کریمه کې:

« واذاجاء تهم آیة قالوالن نؤمن حتی نؤتی مثل ماأوتی رسل الله الله أعلم حیث یجعل رسالته»

که چیري دلته د دوو «الله» دنومونو تر منځ دعاء وشي ،هغه هم مقبوله وی. امام جزری رحمه الله فرمایی: چې ماد دې څوځله



تجربه کړیده او له ډیرو نورو علماؤ څخه دا منقوله ده چې دا یو مجرب عمل دی.

## د دعاء د قبلیدلو خاص ځایونه

په ټولو متبرک مقاماتو کې د دعاء د مقبولیت زیات امید شته. حضرت حسن بصری رحمه الله د مکې او سیدونکو خلکو ته په یو لیک کې لیکلی چې: په مکه مکرمه کې (۱۵) ځایونه د دعاء د مقبولیت لپاره مجرب دی: په «طواف» کې او له «ملتزم» سره (یعنې د بیت الله او حجراسود ترمنځ چې کوم ځای دی ) او په «میزاب رحمت» کې (یعنې د بیت الله شریف د پرناله لاندې ) او په (بیت الله شریف کې دننه ) او د «زمزم له څاه» سره او د صفا او مروه» د څوکو پرسر. او د «سعی» په میدان کې چې د صفا او مروه ترمنځ دی. او په «مقام ابراهیم» کې (یعنې د ابراهیم مقام ترشا او په «عرفات» کې او په «مزدلفه» کې په «منی» کې. او د دری واړه جمرو سره. (جمرات) هغه درې ډبرې دی چې په منی کې نصب کړل شویدی، او حجاج کرام یې په شګو ولی. امام جزری رحمه الله فرمایی چې که د آنحضرت ﷺ په حضور کې (یعنې د هغه مبارک د مقدسی روضې سره دعاء نه قبلیږی نو بل به چیرې قبلیږی.

## هغه خلک چې دعاء ئې زیاته مقبوله وی

«مضطر » یعنې د یو مصیبت ځپلي شخص دعاء ډیر ژر قبلیږی. (بخاری،مسلم،ابوداؤد)

«مظلوم» که څه هم فاسق او فاجر وی ،دعاء یې نه ردیږي. (مسنداحمد،بزار،ابن ابی شیبه) بلکې مظلوم که کافر هم وی، دعاء یې نه ردیږی. (مسنداحمد،ابن حبان)

دپلار دعاء : یعنې د اولاد په حق کې د مور او پلار دعاء (ابوداؤد،ترمذی،ابن ماجه)

دعادل باچادعاء ، هم مقبوله وی. (ترمذی،ابن ماجه،ابن حبان) د نیک سړی دعاء هم مقبوله وی. (بخاری،مسلم،ابن ماجه) د هغه اولاد دعاء هم نه ردیږی چې د مورا و پلار فرمانبردار وی.

د مسلمان مسافر دعاء هم ښه مقبوله وی .(ابوداؤد،ابن ماج،بزار) د روژتی سړی دعاء هم مقبوله وی چې د افطار (روژه ماتی) پرمهال دعاء وکړی (ترمذی،ابن ماجه،ابن حبان).

غایبانه دعاء: یعنی چې یو مسلمان د بل مسلمان لپاره په غائبانه توګه دعاء وکړی، الله تعالی یی قبلوی . (مسلم،ابوداؤد،ابن ابی شیبه).

د حاجیانو دعاء: دحج پرمهال چې تر خوخپل وطن ته بیرته راځی دعاء ګانی کوی ،قبلیږی. (جامع ابی منصور)

په یو صیح حدیث کې راځی چه نبی کریم ﷺ به د پریشانی او مشکلاتو پرمهال دعاء قنوت کاوه او دعاء به یی کوله.یعنی د سهار لمانځه په دویم رکعت کې تر رکوع وروسته امام په لوړ آواز سره دا دعاء لوستله او لمونځ کوونکو به آمین وایه. د دې دعاء لپاره نه تکبیر ویل کیږی او نه لاس پورته کیږی. له دعاء وروسته به تکبیر ووایی امام او مقتدیان به سجدې ته ولاړشی.

نو موړې دعاء په حصن حصین شریف او د احادیثو په نورو کتابونو کې هم موجوده ده. همدارنګه له اهل علم خلکو څخه یی هم معلوم ولاشی . بنده محمدشفیع عفی الله عنه فی یوم عاشوره سنة ۱۳۸۱هـ )

## د اسقاط د حیلی شرعی حیثیت

دا چې فوت شوی (قضاء شوی )لمونځونه ،روژې،حج،زکوة او داسی نورو واجباتو او فرائضو ادا ینه یا کفاره څنګه کیږی چې



دهغې په وجه سړی له ګناه څخه خلاص شی،ددې ټول تفصیلی بحثونه دفقهی په کتابونو کې موجود دی. چې دهغوی لنډیز،او خلاصه په مختصرډول دلته ذکر کیږی ترڅو عامه خلک ورڅخه ضروري استفاده وکړی.

په اوسني وخت کې ډیری داسی ښاری او صحرایی خلک شته چې «دور» یا «اسقاط» ګرځول یې یو رسم ګرځیدلی دی ،او ځینی ناخبره خلک بیا دا ګمان کوي چې په دیې سره سړی د ټول عمر له قضائي لمونځونو ،روژو، حجونو او زکاتونو له مسؤلیة خلاصیدای شی.او دا رسم داسی ضروري ګڼی لکه تجهیز او تکفین یو ډېر خاص فرض رکن چې وی. څوک چې یی نه کوی، هغه ډېر بد ګڼی او توروونه وریاندی لګوی.

بی له شکه چې د فقهاؤ په کلام کې د دور او اسقاط صورتونه ذکرشویدی. مګر هغه چې له څه شرایطو سره ذکرشویدی په هغوی باندی عوام نه پوهیږی او نه د هغو شرائطو څه خیال ساتی. بلکې د فوت شده فرائضو او واجباتو په اړه ټول احکام نور له پامه غورځوی او یوازی دغه رسم د ټولو څخه د خلاصون یوه ښه کامیابه نسخه ګڼي .په داسی حال کې که چیري دغه رسم ورواج بلکل کافی وګڼل شی او په یو څو پیسو باندی دغه کار حاصیلیدای شی ،تو بیا څه اړتیاده چې سړی په ژوند کې ددې عباداتو دا محنت او زحمت پرځان تیروی .په هرصورت نود دې مسئلې په اړه څه زمانه وړاندی دیوه سترعالم حضرت مولانا مفتی محمد حسن صاحب چې د جامعه اشرفیه لاهور مهتمم او بانی دی؛ د نوموړې څخه دا پوښتنه وشوه چې هغه یی

د جواب دلیکلو دنده ماته وسپارله چې ما هم په شبه تفصیل او استدلال سره جواب ورته ولیکه ،او ډیره می دا مناسبه وګڼله چې دعوامو د اصلاح لپاره دیوې وړې رسالې په بڼه چاپ شی ،نو چونکه دلته یی هم له موضوع سره اړخ لګاوه او د خلکو د پوهاوی لپاره هم مناسب دی ؛ دا دی دلته یی لیکو:

الاستفتاء

د دې مسئلې په باره کې علماء کرام څه فرمایي چې زموږ په سیمه کې حیله رواج شوې ده ،هغه په داسی شکل چې له جنازې وروسته څه خلک دائره جوړه کړی ،د مړی وارث یو قرآن شریف او څه پیسی په دستماله کې غوټه کړی پر دې خلکوئی ګرځوی. دکلی د مسجد امام چې دلته په خلکو کې ناست وی دا غوټه ور واخلی او دا الفاظ ووایی:

کل حق من حقوق الله تعالی من الفرائض والواجبات والکفارات والمنذورات بعضها ادیت وبعضها لم تود الان عاجز عن ادائها واعطیتک هذه المنحة الشریفة علی هذه النقودات فی حیلة الاسقاط رجاءً من الله تعالی ان یغفرله.

او د یو وبل په ملک کې یې ورکوی بیرته یی ځنی اخلی څو درې څله پردی دائره باندی راوګرزی بیا یی نیمی کړی نیمه برخه د کلی امام ته ورکړی او نیمه یی پر غریبانو تقسیم کړی. د یو مسجد امام چې زید دی ؛ هغه دا مروجه حیله پرېښوده او وایی چې د کتاب او شریعت له مخی د دې هیڅ ثبوت نشته لهذا دا بدعت دی.



د زید پردې کار باندی خلک زید ملامته وی له دې سره سره چې زید حنفی مذهبه دی خو خلک یی وهابی بولی او د دې حیلې پر جواز باندی د پلرونو او نیکه ګانو په عمل استدلال کوی نو آیا زید پر حق دی که پر باطل؟

د دې مروجه حیلې حکم څه دی زید د همدی رواج او التزام د ختمولو شرعاً حقدار او مصیب دی او که نه؟ دا رنګه ځینی صورتونه داسی وی چې له مشترکې ترکې څخه روپۍ راوړلې کیږی په داسی حال کې چې ځینی وارثان موجود هم نه وی ، او کله کله خو یتیمان هم په دې منځ کې وی ، نو آیا دغه مال په دې شکل د حیلې لپاره راوړل کیدای شی کنه؟ او دغه ناست خلک یی اخیستلای شی کنه؟ «بینوا بالدلائل الشرعیة »؟

الجواب :- د دور یا اسقاط حیله ځینی فقهاء کرامو د داسی یو شخص لپاره جائزه بللې ده چې له هغه څخه څو لمونځونه ،روژی او یا داسی نور. عبادات اتفاقاً پاتی شوي وی خو د قضاء راوړلو موقع یی نه وی موندلی او بیا یې د مرګ پر مهال وصیت کړی وی. ولی د ده ترکه مال دومره نه وی چې د ټولو فوت شویو لمونځو او روژو فدیه ورکولای شی. داسی نه چې د هغه په ترکه کې مال موجود وی هغه مال وارثین را واخلی ،سره تقسیم یی کړی. وینی خوری او څه لږ پیسی را واخلی دا حیله ورباندی جوړه کړی ، خدای او خلکو ته فریب په ورکړی. په درمختار ،شامی او د فقې په نورو کتابونو کې دا په صراحت سره ذکر شوی او ورسره یی د حیلې شرائط هم واضح کړی چې کومی پیسې چې چا ته د صدقې په توګه

ورکولی کیږي ؛ هغه به د دې روپو حقیقي مالک ګرځول کیږي یعنې هغه چې څه غواړي هغه په کولای شي ،داسې نه چې په یوه لاس کې ورکولی شي او په بل لاس کې یې فوراً څنې کش کړي او یوه لوبه یې څنې جوړه کړې وي. لکه دا نن سبا چې یو عمومي رواج ګرځېدلی دی .دا یو لغو او عبث حرکت دی ،په دې سره نه مړي ته کوم ثواب رسیږي او نه د هغه ذمه له فرائضو او واجباتو څخه خلاصه شوه ،نه یې کفاره ادا شوه. یوازې د دغه عمل سرته رسونکي وربانذي ګنهګار شوو.

د ابن عابدین په رسائل کې پردې مسئله: باندې یوه مستقله رساله لیکل شوې چې د «منة الجلیل» په نوم یادیږي ،په هغې کې راغلي چې :

«ویجب الاحتراز من ان یدیرها اجنبی الا بوکالة کماذکرنا وان یکون الوصی اوالوارث کما علمت ،ویجب الاحتراز من ان یلاحظ الوصی عنددفع الصرة للفقیر الهزل اوالحیلة بل یجب ان یدفعها عازماً علی تملیکلهامنه حقیقة لا تحیلا ملاحظاً ان الفقیر انا ابی عن هبتها الی الوصی کان له ذلک ولایجبر علی الهبة »

(ترمنة الجلیل فی اسقاط ماعلی الذمة من کثیروقلیل خاتمه رسائل ابن عابدین شامی ص۱۲۵ج۱)

خلاصه دا چې د دې حیلې ابتدایي بنیاد ممکن دی چې د شریعت د صحیح قواعدو سره سم وي مګر دا نن سبا چې څنګه رواج او التزام دی ،دا بې له شکه چې ناجائز او نادرست عمل دی.

حتی چې د ډیرې مفاسدو باعث ګرځي چې څو یې په لاندې ډول ذکر کیږي

(۱)- ډیرخله دا ټولې پیسې وي چې دغه پیسې ګرځولې کیږي دا د میت له متروکه مال څخه وي ، او وارثین اکثراً یا موجود نه وي



او یا ځینې نابالغ ماشومان وي نو دا مشترکه سرمایه له اجازې پرته استعمالول حرام دي. په حدیث کې راغلي « لایحل مال امرء مسلم الابطیب نفسه منه » همدارنګه نابالغ خو که اجازه هم وکړي ،د اعتبار وړ نه ده. شرعاً جواز نلري او ولي ته یې هم په دا ډول تبرعاتو کې د ماشوم له لوري د اجازې ورکولو اختیار نشته ،بلکې په داسې ځایونو کې د هغه مال خرڅ کول حرام دي. د قرآنکریم صریح نص موجود دی:

«إِنَّ الذِينَ يَأْكُلُونَ أَمْوَالَ الْيَتَامَى ظُلْمًا إِنَّمَا يَأْكُلُونَ فِي بُطُونِهِمْ نَارًا»

ترجمه: کوم خلک چې د یتیمانو مال په ظلم سره خرڅ کوي ،هغوی په خپلو نسونو (ګیډو) کې اور اچوي.

نو له دې نه ثابته شوه چې د داسې مال ورکول او اخیستل دواړه حرام دي.

(۲) که بالفرض دا شروط هم پرځای شو و مثلاً مال مشترک نه وي یا ټول وارثین بالغان وي او له ټولو څخه اجازه هم ترلاسه شوې وي نو په دې صورت کې بیا دا معلوم مول آسانه نه دی چې آیا دغو ټولو په ښه خاطر او خوښه سره د دې اجازه کړې ،او که یې د سبا د پیغور څخه د ځان ساتلو پخاطر دا کار کړی. که داسې وي نو د مذکور حدیث د تصریح په اساس دا ډول اجازه کالعدام داسې ده ،هیڅ اعتبار نلري.

(۳)- او که فرضاً دا خبره هم نه وي دا ټول مشکلات حل وي. نو بیا هم له مفاسدو څخه خالي کیدای نشي ،مثلاً:

د حیلې فقهي صورت داسې دی چې چا ته اول ځل دغه قرآن او نقدي پیسې ورکولی شي ،نو دهغه ملک به یې ګرځوي یعنې په ښه وضاحت سره به ورته وایي چې اوس ته مالک مختار شوې ، څه

چې دی زره غواړی وریاندی کولای شی. بیایی هغه پخپله خوښه بی له کومه لحاظ د مړی له طرفه کوم بل شخص ته په همغه ډول ورکړی اوهغه یی مالک وګرځوی. او بیایی هغه همداسی دریم تن اوهغه یی بیاڅلورم ته په دی شکل پسی ورکړی، یعنی چې هریو یی داسی مالک وګرځی چې هغه که هرڅه وغواړی وریاندی کولای شی، که وغواړی له ځان سره یی یوسی هم کولای شی مګر دا اوسنی مروج رسم داسی نه دی. اول خو کوم چاته چې ورکول کیږی نه هغه دا فکر کوی چې دا زما شوی اونه یی دا ورکونکی په دې خاطر ورکوی چې بس دا دهمدې سړي چې دا پیسې یی ورته ورکړی، هغه له دې ځای ولاړ شی پرخپله مخه ځی، نو دا نور خلک به اجازه ورکړی، نه هیڅکله نه. نوپه دی صورت کې تملیک صحیح نشو چې تملیک صحیح نه شونو ګواکې فدیه ادا نشوه.

نو نتیجه دا شوه چې دا عمل بی کاراوبی فائدې عمل دی.

(۴)- په دغه مذکور صورة کې دا هم ضروری ده چې کوم سړی مالک ګرځول کیږی هغه به مصرف صدقه وی، صاحب د نصاب به نه وی. مګردلته د دې هیڅ خیال نه ساتل کیږی. عموماً د مساجدو امامان چې صاحب نصاب هم وی، د هغوی په وسیله دا کار کیږی. په همدې وجه هم دا کاروبار غلط دی. سړي ته یی هیڅ ګټه نه رسیږی.

(۵)- اوکه بالفرض د مصرف صدقه په برخه کې هم صحیح انتخاب شوی وی، اوهغوی ته مسئله: پوره معلومه وی. چې هغه د دی پیسو له ترلاسه کولو وروسته دهغه مالک مختار وبولی. اوپه دې



توګه یی دویم، دریم، څلورم ان تر اخیری شخص پوری ورسیږی نو اخیری سړی خوبی هرومرو مالک وی.

له هغه څخه بیرته اخیستل، نیمایی امام ته ورکول اونیمایی نوره پرغریبانو ویشل، دا د بل چا په ملک کې د هغه له اجازې پرته تصرف کول دی. چې دا یو ظلم او حرام عمل دی. د پورتنی حدیث د تصریح په استناد.

(۶)- اوکه فرضاً دغه اخیری شخص بیا له زړه څخه پخپله خوښه دغه پیسی بیرته دوی ته وسپاری اوهغه یی تقسیم کړی د ده په خوښه. نو بیاهم دا ډول حیله د هرمړي لپاره په هر وخت کې ضرورت ګرځول او د تجهیز او تکفین په درجه کې له واجباتو څخه شمیرل یعنې د واجب په درجه کې هغوی ته اعتقاد لرل، دا احداث فی الدین بلل کیږی. چې د شریعت په اصطلاح دې ته بدعت ویل کیږی. او هغه له خپل ځان څخه په شریعت کې ترمیم او زیاتونه ده. نعوذ بالله )

همدارنګه یو بل نقصان چې له دغی حیلې سره تړلی دی، هغه دا چې په عوامو خلکو کې ځینی جاهلان او ناخبره خلک د دې جرات کوی چې ټول عمر به نه لمونځ کوی، نه به روژه نیسی، نه به حج کوی، نه به زکوة ورکوی او دا ګمان به کوی چې له مرګه وروسته به د څو پیسو په خرڅولو سره دا هرڅه بیرته ترلاسه کړی اوله ګناه به یی خلاص وی.

چې دا نو په اصل کې د ټول دین د بنیاد د ړنګولو مترادف دی. الله تعالی دې مونږ ټولو مسلمانانو ته د دین او شریعت صحیح لاره راوښیی او د رسول کریم ﷺ د سنت طریقې اتباع دې رانصیب کړی.

محمد شفیع عفا الله عنه ۷ ربیع الاول سنة ۷۰ھ

## د لمانځه،روژې،او نورو ..د فدیې مسائل

**مسئله** : کوم سړي چې د لمانځه ، روژې ، حج یازکوة څه وصیت کړی وی نودا وصیت د هغه له ترکې څخه صرف یوه دریمه برخه جاری کول پر وارثانو لازم دی. که له دی څخه زیات وصیت وی یعنی که د یوی دریمې برخی څخه یی د زیات وصیت کړی وی نوبیا د ټولو وارثانو پر رضامندی اوخوښې باندی موقوف دی. که چیري هغوی ټول یاځینې یی اجازه ونکړی نوله مشترکه ترکې څخه د هغه وصیت پوره کیدای نشی. اوکه چیري په دې وارثانوکې کوم نا بالغ وی ، د هغه اجازه هم معتبره نه ده. د هغه پرحصه باندی د میت هغه وصیت چه تر یوی د ریمې برخی یې زیات کړی وی ، اثرنشی غورځولای.
(هدایه ،عالمگیری،شامی اوداسی نور......)

**مسئله** : که چا وصیت کړی وی او مال هم دومره ورڅخه پاتی شوی وی چې د هغه په دریمه برخه کې ټول وصیتونه پوره کیدای شی نو د وصی او وارثانو پرذمه واجب داده چې دغه وصیت به پوره کوی اوپه دی کې به کوتاهی نه کوی. یعنی که راولاړ شی چې د میت مال هم موجود وی ، دوی د هغه د روژواو لمونځو لپاره د حیلې میلې لاره جوړه کړی او مال یی پخپلو منځوکې سره وویشی نوګناه به یی د دوی پرذمه وی.

**مسئله** : د وصیت کولو په صورت کې به د واجباتو اوفرائضو د ادایني صورت داوی:

(۱)- د هری ورځی لمونځونه به د وترو سره شپږ حسابیږی اود هرلمانځه فدیه به پاوکم دوه سیره غنم اویا د هغوی قیمت وی یعنی دیوی ورځی د لمونځونو فدیه به لس نیم سیره غنم او یا د هغوی قیمت وی.



(۲)- د روژې فدیه هم پاوکم دوه سیره غنم یاد هغوی قیمت دی. د رمضان المبارک د روژو برسیره ،که بله یعنی د نذر روژه وی د هغه هم فدیه شته.

(۳)-زکوة چې د څومرو کالو وی او د څومره مقدارمال وی ، هغه به حساب کړی له هغه قراره به یی اداء کړی.

(۴)- که فرضی حج یی اداء نشو کړای نو د میت له مکان څخه دی د حج بدل لپاره څوک ولیږل شی چې ټول مصارف اوخرچې به یی ضرورواداء کوی.

(۵)- که د چا قرض وربان‌دی وې نود هغه دحق سره سم به یی ورته اداء کوی.

(۶)-څومره صدقة الفطرچې شوی وی ، د هریوه په بدل کې به پاوکم دوه سیره غنم یا د هغه قیمت ورکوی.

(۷)- که قربانی ځینی پاتی شوی وی ، نود هغه کال په قیمت دی د یوې اوزې یا د غوایی د یوې حصې د قیمت اندازه ولګوي ، صدقه دی کړی. (منة الجلیل)

(۸)- که سجده تلاوت ورڅخه پاتی شوی وی ، نو احتیاط په دې کې دی چې د هرې سجدې په بدل کې به پاوکم دوه سیره غنم یاد هغه قیمت اداء کوی.

(۹)- که د فوت شده لمونځونو یا روژو حساب معلوم نه وی نو دې تخمینی حساب وکړی دا ټول احکام په هغه صورت کښې دی چه په هغه کښې میت وصیت کړی وی.
او د وصیت په اندازه یې مال پرې ایښې هم وی. او که وصیت یې نه وی کړی او یا یې د وصیت د ادائینې مطابق مال نه وی پرې ایښې، نو پر وارثانو باندې د هغه د فرائضو او واجباتو فدیه اداء کول لازم نه دی. مګر که پخپله خوښه د همدردۍ په وجه څه ورکړی په دې لاره کښې، نو د ثواب موجب هرو مرو ګرځی.

بنده محمدشفیع عفی الله عنه

محرم الحرام ــــ کراچی

تمت بالخیر بفضل الله تعالی

۲۰ـ۲ـ۲۰۰۶

ستاسو ددعا محتاج دنور القرآن اداری خادم «ابو خالد»

